## اهداء

دا کتاب د پښتانه اولس هغو ننګیالیو او دردمنو ځلموته چه د پښتنو له پرم سره لېو نور مینه لري وړاندې کړم .

پرله پسې لمبر . . . . . . . . (۱۳۸)

# لودي پښتانه

د

عبدالشکور رشاد

تالیف




د پښتو ټولنې د ادبیاتو او تاریخ د څانګې له خوا

د چاپ شمېر (۱۰۰۰) جلده

## منـنـه

ددې کتاب دعکسو په را غونډو لو کښې دښاغلي انوارالحق ګران اودځینو یادداشتو (چه په متن کښې ځای په ځای شاره ورته شوېده) په تهیه کښې دښاغلي خان غازي زيار اوتوجه دیادوني حق لري .

زه په دې توګه ددوی دواړو له دې مرستو څخـه تشکر کوم    «رشاد»



بسم الله الرحمن الرحیم



د پښتنو تاریخ ډیر و څېړنو ته اړدی او د پښتنو پوهانو ډیره درنه وظیفه همدغه ده چه خپل تاریخ روڼ او روښانه کړی.

ددی اولس ډېرې کارنامې او ډېر حالونه د زمانې په تیارو کښې پټ پاته دی او په همدغه وجه زموږ آشنائی له ماضی سره ډېره کمه ده.

په دغسې پلټنو کښی طبعاً ځینې سهوې هم پیښیږې او لیکوال په ځینو موارد و کښې کله کله له اشتباهاتو سره مخامخ کیږی، مګر بیا هم د تېرو حالونو او پېښو پلټنه ډېر لوړ قیمت لری او پوهان ورته په ډېر درانه نظر ګوری.

د مجهولاتو څرګندونه او د معلوماتو زیاتونه که په ابتدائی ډول هم وی د پوهې په وده او څېړونه کښې ډېره اغېزه لری او پدې کتاب کښې خو له ډېری څېړنې او تحقیق نه کار اخستل شوی دی.

ښاغلی عبدالشکور «رشاد» د پښتو ټولنې مرستیال له ډېرې مودې نه دلودیانو په باب په مطالعه بوخت ؤ او کله چه د پښتو ټولنې په همکارانو

ددې کتاب له ما خذونو څخه هم څرګندیږي، چه د تاریخي پېښو په لړون کښې ښاغلي لیکوونکي ډېر زیار کښلی او ډېرې پاڼې ئې اړولې را اړولي دي.

څنګه چه ددغسي کتابونو د لیکلو دوداود ستور دا تقاضاء لري چه هره خبره باید سند او حواله ولري؛ هم دغه رویه غوره کړېده او ځای په ځای ئې خپل ماخذونه ښودلي دي.

هیله ده چه دا کتاب به خپل اهمیت پخپله ښه څرګند کړي او د نورو تاریخي لیکنو دپاره به یو ښه ماخذ شي.

ددې کتاب په سینه کښې دمعلوماتو او تحقیقاتو ډېره ښه ذخیره موجوده ده چه هر څوك به ورته په ښه نظر وګوري او یومفیدا ثر به ئې وګڼي مګر څه شي چه دغه افاده لېز غوندې ګرانوي، هغه به د پښتو دسپېڅلو لغاتو تاثیروي، ځکه چه ښاغلی «رشاد» په پښتو لیکلو کښې دغسې لغاتو ته زیات مایل دی او د پخوانو په شان ځینې زاړه لغات په زړه پوري استعمالوي، دا کار د ځینو مړو یا نمیږ واندو لغاتو د ژوندي کولو دپاره ښه دی او ده پکښې هم دغه ګټه لیدلې ده، زه دا کتاب یو درو ند اثر ګڼم او خپل ملګري ته دغه بریالیتوب تبریك وایم.

ګل پاچا الفت د پښتو ټولنې رئیس

# اودی پښتانه

که چیرته د هند(۱) او افغان تاریخ له سر نه تر پایه پورې مطالعه کړی شي؛ نو ښکاره به شي چه د دغو دوو ولسونو ترمنځ تاریخي ارتباط او تعلقات له بلخ نه د آریائیانو د مهاجرت له نېټې نه (۲۵۰۰-۱۵۰۰ ق م) شروع کیږي او تر دې وروستیو پېړیو پورې رسیږي .

په دغو مره موده کښې د هند او افغان تاریخي اړیکو او مناسباتو کله یو رنګ او کله بل رنګ غوره کړی دی

کله دیوه افتخار او خوشحالی د بل د خوابدی موجب شوی او کله بیا افتخارات سره مشترک ګڼل شوی دی، چه د تاریخ پاڼو دغه ټولې خوږې او ترخې خاطرې د همیشه دپاره محض د دې منظور په یادګار ساتلې؛ چه له سترګو نه یې ته داو ښیئي چه د هند او افغان تاریخ سره مشترک دی او دا دوه ولسونه سره لېرې او بېګانه نه دي او دا تاریخي خوږې او ترخې خاطرات د زمانې دا یجاب تو سره سم همېشه پخپلو منځو کښې او د ګاونډیانو سره پېښېږي، نه د نورو لېرو او بېګانګانو سره .

دغه تاریخي مناسبات او تعلقات یا خوږه او ترخه خاطرات چه په مسلسل او متناوب ډول منځ ته راغلي؛ زښت زیات دي، چه د هغو له جملې نه هغه څه چه ډېر ستر او دلته د مثال په توګه د یادونې وړ دي مونږ یې په دغو دوه لویو برخو وېشو:

**الف: فلسفي او مذهبي او نور اجتماعي مناسبات او تعلقات:**

په دغه لړ کښې:

**۳ـ بودیزم:** چه په هند کښې وزیږېد او په آریانا کښې ئې وده وکړه .

**۴ـ اسلامیزم :** چه د افغانانو له خوا په هند کښې خپور شو .

**ب : اقتصادي او سیاسي مناسبات او تعلقات:**

د هندو افغان اقتصادي او تجارتي مناسبات چه له ډېرې پخوا زمانې نه شروع شوي او تر نن ورځې پورې ادامه لري، څرنګه چه د هندو افغان د اجتماعي او فلسفي او سیاسي او نورو تولو مناسباتو او اړیکو اساس او منشاء ګڼل کېږي؛ نو د تاریخي مثالونو له تذکرنه ئې د لته د کلام د اوږدېدو له وېرې صرف نظر کوو او یوازې د سیاسي او نظامي مناسباتو او روابطو یو څو ستر مثالونه پدې ډول راوړو:

۱ـ د (۱۲۰ نه تر ۱۶۰ ق، م) کال پورې ټول شمالي هند دوندیا تر غر و د لوی **کنیشکا** (د آریانا امپراتور) له خوا اداره کېده.

۲ـ **د سلطان محمود غزنوی** (۹۹۸ـ۱۰۳۰م) فتوحات په هند کښې او بیا د هغه د اخلافو دوا کمنۍ دوره.

۳ـ د پښتون **سلطان شهاب الدین غوری** (۱۲۰۲ـ۱۲۰۶ م) فتوحات په هند کښې او د هغه د اخلافو دوا کمنۍ زمانه .

۴ـ **د لودیانو** دوا کمنۍ لومړۍ او دوهمه دوره، چه د هند دزیاتې برخې واک تر ډېره وخته د دوی پلاس کښې ؤ چه تفصیل ئې پدې کتاب کښې شته .

۵ـ **بابر مغل** (۱۵۰۶ ـ ۱۵۳۳م) چه د هندوستان او افغانستان د چارو واګې ئې پلاس کښې وتلې وې .

۶ـ د (۱۵۳۳ ـ ۱۵۴۸م) کالو په شاوخوا کښې د پښتون **سوری شېر شاه** دوا کمنۍ دوره په هند کښې .

۷ـ د اعلیحضرت احمد شاه بابا (

فنون ، صنائع ، رسوم ، عادات ، طرز تفکر ، دژوندانه‌سبك او معتقدات او
نور يوبل ته سره نقل او مبادله کړي، اوپه نتيجه کښې يو متشابهه کلتور
اويو مشترك‌مدنيت منځ ته راوړي .

لکه څرنګه‌چه دمخه مو وويل، دهند وافغان تاريخ زياتره مشترك او يودبل
متمم اومکمل دی، نولدې کبله هغه څوك چه غواړی دهندتاريخ وليکی‌اويائې
ولولي ، هغه مجبوردی چه دافغان تاريخ هم وسپړی او وئې لولي،اوبرعکس
که څوك د افغان تاريخ ليکی او يائی لولی، هغه دهنددتاريخ له څېړنې ا و
مطالعې نه په هيڅ صورت نشی مستغنی اوبې نيازه کيد ای.

دهندوافغان‌دمشترك تاريخ له هغو مشترکو نصاونونه يوهم په هند کښې
دلودی‌تبر دوا کمنۍ دوره ده، چه‌له‌يو خوادهند وستان‌اوله‌بلی‌خواد افغانستان
دپاره دافتخار اومباهات وړ ګڼل کيږی .

دهنددپاره خوځکه‌دافتخار وړده، چه‌يوخودغه‌تبر ديومهاجر په‌حيث، هندته
تللی‌اوهلته مېشت شوی دی، نه ديومهاجم اوبرغلګر په حيث، چه پدې اساس
دهندولس‌دوی اود دوی ښه اوبدتول دځان ګڼي .

بل‌داچه‌دغه‌تبر تر يوې اندازې پورې دهند واړه واړه‌مستقل حکومتونه چه
دهند و لس ئې په ډېرو کړو چنيو بر خو ويشلی ؤ ، له منځه
يووړل اوسياسی‌بحرانونو اواړ ودوړو ته ئې حتی الوسع خاتمه
ورکړه اوتقريباً يومقتدر مرکزی حکومت ئې منځ‌ته راوړ اوملي وحدت ئې
تأمين کړ .

اوسربېره په‌دې، کوم‌اصلاحات‌چه‌ددغه‌تبر دوا کمنۍ په‌دوره کښې دهنددولس

هلته مېشت شويدي . او په تېره بيا هغه وخت چه دوی ته د هند د زياتې برخې د حکومت واگې په لاس ورغلې ، پښتني کلتور او ثقافت ئې هلته په ښه شان خپور کړ ، چه د پښتني کلتور او ثقافت نښې د هغه وخت په معمارۍ او حجارۍ او نورو مستظرفه صنائعو ، رسوم او عاداتو او ادبياتو او حتی په معتقداتو کښې پوره څرگندې دي .

او بل دا چه دوی ښکاره کړه چه پښتانه د زمانې او دهغې د اوضاع و په نبض او د مملکتونو په اداره او سياست ښه پوهېږی او کولای شي چه يو ډېر لوی ملك او زيات شمېر وگړی او متعدد او مختلف اقوام او متضاد طبقات هم ډېر زيات وخت د پاره په ښه وجه اداره کړی ، نو ښا يدغو پورته ذکر شويو دلائلو حق لرو چه ووايو :
**د لودیانو دواکمنۍ دوره په هند کښې د هندی افغان په تاریخ کښې یو مشترك فصل او یو مشترك تاریخی افتخار دی .**

ددغې شاندارې دورې ټول تاريخی تضمن و شمول او کم و کيف په مفصل او مستند ډول تر اوسه پورې په تېره بيا په پښتو ژبه په مستقل ډول چا نه ؤ ليکلی ، خو له ښه مرغه ، لس کاله دمخه ښاغلی عبدالشکور «رشاد ، قندهاری» ارا ده وکړه چه د لوديانو او په هند کښې د هغو دواکمنۍ په متعلق څېړ نه او تحقيق وکړی او ثقه اسناد او وثائق په لاس راوړی او بيا له هغو نه ددغه ټېر يو مفصل تاريخ ترکيب او تاليف کړی ، بالاخره ښاغلی «رشاد» خپل دغه معقو ل پښتني عزم و اراده تر سره کړه او وروسته له لسو کا لو ډېر له پسې تحقيق ا و پلټنې نه دا دی د **(لودی پښتانه)** په نامه ئې يو ثقه او مستند د تاريخ وليکه او پښتو ټولنې چه په افغانستان کښې د پښتني افتخاراتو د روښانه کولو او ژوندی کولو يوه مسئوله موسسه ، ده هم د تاريخ او ادبياتو د خزانو په تصحيح او اهتمام چاپ او پښتني

مؤلف، لپاره ددې چه یو ثقه اومستنده اثرئې منځ ته راوړی وی؛ لکه څنګه چه دماخذو له فهرست نه ئې هم څرګندیږی، تقریباً له (۷۰) مختلفو آثارو اومنابعو نه چه په پښتو، پارسو، اردو، هندی، انګلیسی او عربی ژبو کښې لیکل شوی وو؛ استفاده کړې ده.

پدغه کتاب کښې دلودی ټبراودهغو واکمنی پهمتعلق په کافی اندازه اسناد اومواد راټول شویدی اودهغه چاد پاره چهغواړی په آینده کښې دلودی ټبر دوا کمنی پهوخت کښې دهند دو ګړو اقتصادی او اجتماعی اوضاع اوشرائط تحلیل اوتفسیر کړی؛ دیوجامع او کامل ماخذ پهحیث ور سره پوره پورهمرسته کولای شی.

سربیره پدې، دغه کتاب پهخپل ذات کښې هم دهغو ښاغلیو دپا ره چه له پښتنی افتخاراتو سره مینه اوعلاقه لری اوغواړی چهدپښتنی تاریخی عظمت او جلال رښتینې کیسې اوڅلونه وا وری، اویادهند وافغا ن په سیاسی او کلتوری تاریخی روابطو او مناسباتو باندې ځان پوه کړی، دیره ښه مرسته کوی.

(والسلام)

**محمد حسن «ساپی» دادبیاتو او تاریخ**

**دمدیریت کفیل**

# لمړی خبری

په زړه کښې له ارغونه داؤود دې چه ملکونه ، اولسونه ، کامونه ، کورنۍ او حتی شخصیتونه لوړېږي، ځوړېږي، ودانېږي، ورانېږي، لوئېږي، وړېږي واک مومي، بېواکه کېږي، ژوند مومي او معدوم کېږي .

دا ټولې اوښتنې (تغیرات) ځانته سببونه لري د دغو سببونو پلټنه او کروېږنه او دهغو د اغېزو او نتائجو څېړل او شنل د تاريخ غايه ده (۱)

ديوناني مورخ (تهيوسي ډايډز) (۴۷۱-۴۰۱ ق م) د دې نظريې پراساس چه وائي:

«د پخوانيو پېښو پوهنې ته ځکه اړه ده چه د داسې پېښو د بيا پېښېدو او بېرته راګرځېدلو بشپړ امکان شته (۲) .

بايد ژوندي نسلونه پر دغو سببونو غور وکړي او دهغو په رڼا کښې دزمانې له غوښتنو سره سم پرمخ وخوځي .

ځکه نو ما دهمدغه فکر له مخې د پښتانه درانه او لس د يوه وار بيا تېر د نوميالیو حالات سره راغونډ کړل. دا تېر (لودي) دی، د دې تېر مېړنيو زامنو لمړی ځل په (ملتان) کښې نيمه پېړی پاچهي لره چه دغزني د ستر تولواك (سلطان محمود) (۳۸۷_۴۲۱ هـ) له خوا په ۴۰۱ هـ کال ورانه کړه شوه ، بيا يې له نوموړي سلطان سره داسلام د خپرولو له پاره دهندوستان په غزاو کښې د (لودي ملك سليمان) ترمشرتابه لاندې دستاينې وړ توري ووهلې .

دغور زمری (سلطان شهاب الدين) چه پرهندوستان لښکري وروبهولې هم

دنوموړی (سلطان شهاب الدین) غښتلی جرنیل (خلجی بختیار) چه بر آسام

او تبت بریدونه وکړل هم د (اودیو) لوی بهیر ور سره ؤ (۱)

داتمی هجری پیړۍ په پای کښی د ملتان د پاچاهی کورنۍ اخلافو پر ملتان او (ډهلی)

واکومونداو د گوډ تیمور (۷۷۱ ـ ۸۰۷ هـ) پر غلو نو نه یی خپل تېرونه سپر کړل.

بیا (شاهو خېل سلطان بهلول) دنهمی هجری پیړۍ په نیما یی کښی

دهندوستان په شمالی سیمو (ډهلی) کښی د (۸۳) یا (۷۸) کلنۍ درنی پاچهۍ

تیېزه کښېښودله، چه (بابر مغل) ړنگه کړه. ددغی کورنۍ دوپاچا (سلطان

سکندر) له بنگاله څخه تر ملتانه پوری پر درست شمالی هندوستان هسی درنه

پاچهی وکړه چه دنیا و (عدل) او سیاست نړغ یی تر ډېرو ملکو پوری ولاړ

او تاریخونه یی په ضبط ډک شول.

بیا په دغه تېر کښی (دلودی خان جهان) کورنۍ راووتله چه په هندوستان

کښی ئې په (۱۱) هجری پیړۍ کښی پر بابری مغلو ډېری شپی ورځی

میاشتی او کلونه ترخه تېر کړل او د پښتنی پاچهۍ د بیا درولو په نیامت (قصد)

ئې ځانونه سپلنۍ کړل.

په دې درانه او نومیالی تېر کښی هر کله هسی ښاغلی مېړونه زېږېدلی دی

چه د پښتنو تاریخ یی په برم، مېړانه، توره او تدبیر باید وویاړی او د ژوند

حالاتو ته یی په منظم او مفصل ډول سره په ډېره مینه په زړه کښی ځای ور کړی.

ژوندی نسل ته بویه ددی تېر پراوسنۍ بی نومو نښانه ورځ غور وکړی

چه داولی؟؟؟ او د (ابن خلدون) داجتماعی حرکت د اسیر چه:

«هر کام په لمړی دوره کښی د بدویت ژوند لري، په دوهمه دوره

کښی د پاچهۍ تیېزه کښېږدی. له قانونه خبر شی، ځان له نظام جوړ کړی

او په دریمه دوره کښی د مغلوبو او مربیو کامو اخلاق غوره کاندی، منځ

# لودي ټبر

دغور دپښتنو يوه شهزاده (اوسېن) (۱) د کسی غرهدپښتنو د يوه منلی ستانه (بيټ نيکه) (۲) دلور (متو) (۳) سرهو ادهو کا، ددوی يوزوی (براهيم) (٤) په (لودی) اوښار شو (٥) پښتانه هغو دووسره څرموستو رو ته (لوديان) وايی چه سپيدو چا و د مهال جنوب شرقی کوټ ته راخپېږی (٦) اودرنا مقدمه باله شی.

دپښتنو مشهوری قبيلې لودی، مروت، دوتانی (دپټانی)، لوانی، نيازی او مياخېل ددغه (براهيم لودی) لهپښته دی (۷) وايي بيټ نيکه (براهيم) لره دعاو کړه د (براهيم) کهول په برکت شو، ډېر نوميالی مېړونه پکښی پاخېدل او دپښتنو نوم ئي لوړ کا (۸) د «شوکت افغان» مولف ليکی:

دنوموړی ابراهيم په زاوزات کښی يوالحی دده دلمسی (دسيانی ياسامی دزوی) پرانګی اولادې ته (لودی) وايهشی اولودی ټبرته راوروسته وختو کښی پردوو پښو (يوسف خېل) او (شاهو خېل) وويشه شو (۹)

---

(۱) دانوم پهراوروسته کښی (حسېن) شويدی (اوسونی) Uswinee پهمؤنث صورت په سانسکريټ کښی هغه لمړی ستو ری ته وايی چه دسپوږمۍ پهمدار کښی واقع دی اود سپوږمۍ لمړی مزله تههم وايی (دليل ساطع ۲۱، ۲۳ مخ).

(۲) په سانسکريټ کښی بټ Bhutt دانشمند، فاضل، او بټ Bhut دپهلوان اوسرباز په معنی راغلی په پښتنو کښی (بيټ) دقوت الظهر او (بيټه) دغره دلمنی په معنی اوس هم شته. اودبټه ګوته (انګشت نر) اوبوټکی (مراهق) په الفاظو کښی ئي په ضمنی صورت دلوی اوغټ معنی هم مضمره ده.

(۳) مت mait په سانسکريټ کښی دمست، نشه، بيخود پهمعنی راغلی (سانسکريټ ډکشنری ٦٥۲ مخ)

(٤) دانوم تراسلام دوه درې زره کاله پښتوا معمول ؤ، په عبرانی کښی (ابراهيم)
... Bruhm برهم، برهم Birhm او برهما Brahma

(٤)

# لودي او سامیت

دلومړی هجری پیړی په اواسطو کښی عربی لښکرې پښتونخوا ته راورسېدلي وو، وروداسلام دین خپر بده اوددې اولس دژوندانه پر هره څانګه ئې لکه ثقافت، ذوق، ذهنیت، دودودستور، ژبې، کلتور او ادب خپل اثرات اچول په زیاته بیا کله چه تر تللی عربی حاکم (اموی یامخزومی خالد بن عبدالله) (۱) له خپلی کورنۍ او تا بعا نو سره دمشهور ظالم (حجاج) له بیری به پښتنو ننووت اوله پښتنو سره ئې جنسی او اجتماعی تعلقات قائم کړل (۲) دا اثرات ښه پسی غښتلی شول په تېره بیاپرا علاموئې څر ګندی اغېزې وکړې دفاتح اومذهبی رهنما کام، نومو نه هم لکه نوراثرات په پښتنو کښی باب شول خو تر یووخته پورې داعربی اعلام علاوه پر محیطی اسماو تا کل کېدل لکه قیس عبدالرشید، محمدسام (شهاب الدین) او نور ....

وروورو زیاتره محیطی نومو نه له منځه ولاړل اوځای ئې یوالځی عربی نوموته ور پر ښنو د حتی چه د غو قحوا ومجر دوعربی اعلامو لکه محمد، حمید، نصر او...

ځینې مور خین د پښتنی شخصیتو په ضبط کښی متر دد کړل اومرحوم سید سلیمان ئی ادیبوست چه پخپل کتاب (عرب و هند کی تعلقات) کښی دملتان د څلور می هجری پیړی (لودی یا چهی) سا می او قریشی و ګڼی .

که څه هم نو موړی محقق مولف ددغه کتاب په ۳۰۷ مخ کښی د ا بن

«ابن خلدون غوندې منلی اوځیرك مؤرخ دخپل تاریخ دلو مړی جلد په ۳۲٤ مخ اودڅلورم جلدپه ۴۹۳مخ کښی د(بنو سام)یا (بنو سامه) نسبت قریشوته جعل کړیدی . اولیکی چه هیڅ نساباو یاد انسابو کتاب په قریشو کښی (بنوسام) یا(بنوسامه) پښه نه‌ده شوولې»

خو بیا هم زه لاندنۍ شرح پسی‌زیا توم چه ښه تر اد (سام) او(قرشی) توری تحلیل شی :

بټی خزانې چه ددغی لودی، کورنۍ پښتو اشعار ضبط کړیدی . تاریخ فرشته اوقاموس المشاهیرچه ئې په صراحت سره (لودی افغان) لیکی، لوی احمدشاه بابا چه په پښتنی نومیالیو کښی(حمید لودی) ستا یی (۱)شوکت افغان چه‌په لودیو کښی دغه کورنۍ (یوسف خیل) گڼی دابه ټول هیسته پریږدو اوددغی لودی کورنۍ دمعاصر مورخ اوجغرافیه لیکونکی بیان او توروته به رجوع وکړو چه‌هغه څه‌وایی ؟ او څرنگه ددغه توری ددې اشتباه سبب گرزیدلی دی ؟

د حدودالعالم مؤلف په ۳۷۲ هـکال لیکلی دی :

« د ملتان پاچا اوس قرشی او دسام له زامنو څخه دی »

**سام :**

سره ددې چه دعربو دمشرنیکه نوم (سام) دی بیاهم په دوی کښې دسام (مذکر) اوسامه (مؤنث) توری یوخورا کېزلی، بدمرغه، شوم اوزهرلرونکی (۲) توری دی دمرگ ، هلاك (۳) او ناروغۍ (٤) معناوی‌ئې عمومیت او شهرت لری-دومره مطروداومتروك دی‌چه دصحابهٔ کرامو په (۹۵۰۰) مضبوطو نومو کښې یو (سام) لاهم نه موندل کیږی (٥)

پرعکس دمنځنۍ اسیا په آریائیانو کښې (سام) یو مقدس ، نیك‌مرغه

څنګه چه روغه اودوستي خوږه اومحبوبه ده هغومره ئې نوري هم پر ګران
اوبه زړه پوري وو- په زردشتیانو کښې ئې د اور غوندي مقدس معبو د معنی
لرله (۲) اوپه بودائیانو کښې د (وید) غوندي متبرك کتاب د ، دریم ټوك
(سام وید) نوم ؤ (۳) ، هغه دپیپل ونه ئې هم (سام بدهی) بلله چه مهاتما بدهه
(۶۰۰-۸۰۰- ق م) ئې په سیوری کښې دبودائیانو دعقیدې سرهسم پیغمبری
ته ورسېد (۳) دغې ونی ته بودائیانو په ډېره درنه سترګه کتل د (مګدهه)
ترټولو مشهور او مقتدر پاچا (راجه اشوك) ئې په (۲۶۰ ق م) کال زیارت ته
ورغی (٤) او کله چه ئې لنکا ته دلنکا دپاچا او دبودائیت د مبلغی ډلی
د مشر ( شهزاده مهندر) په غوښتنه د دغې ونې یوه څانګه لېږله پخپله
(راجه اشوك) له یوه اعزازی فوځ سره د(ترالیتی) تر بندره ورسره ولاړ ، هلته
چه ئې په بېړۍ کښې په خورا اهتمام او درناوی کښېښووله اوخپله ګرانه
لور (سنګهومترا) ئې هم ورسره کړه (۵) هغه وخت پر ېږده ! اوس هم هغه
څانګه په لنکا کښې شته ! تراوسه ئې هر کال په لکو بودائیان زیارت ته
ورځی (٦) دا دوه نیم زره کاله وشو چه د(سام بدهی) نوم لاله خولو نه
دی لوېدلی او هغسی په احترام ورته کاته کېږی .

په سانسکریت کښې (سیام) د هندوانو د مشهور او محبوب پیغمبر
(سری کرشنا ) له اوصافو څخه یو وصف دی او(سیاما) د (شیوا) د مایني
د( کالیکا) یا( کالی) یوه صفت نه هم ویل کېږی . هندوان هغه ( کالی)
عبادت کوی اوله ډېره محبته څخه ئې انسانان د دروز لپاره و ژ نی (۷)

کښې د ( سام نریمان ) له لرغونو زمانو څخه دسلطان شهاب الدین غازي (محمد سام) ترزمانې (شپږمې هجري پېړۍ) پورې ژوندي وساته ـ دسلطان شهاب الدین (رح) دنیکه نوم سام بن قطب الدین بن عباس غوري ، دده دا پخپله ( محمد سام ) او دلمسی دائي ( سام بن سلطان محمود بن سلطان غیاث الدین غوري) ضبط شوی دی (۱) ـ له دې څخه چه (سام) دیوې کورنۍ په مضبوطو پښتو پښتو (نساو) کښې درې پلا تکرار شوی دی پـه پښتو نخوا کښې ددې نامه دمحبوبیت ، عمومیت او رواج اندازه ښه تر اٌخره کښندیدلای شي.

علاوه پردې چه له دومره عمومیت او محبوبیت سره ترلېده چه د (لودی) په سلسلة النسب کښې به ډېر نومیالی نیکه ګان د ( سام) په نامه تېر شوی وي. پخپله د (لودیو) دمنسوب الیه نیکه (براهیم) بوزوی سیان (سیام-سام) نومید، چه دلودیو سیانی (سامي) پښه هغه ته منسوبه ده (۲)، د (شوکت افغان) په شهادت د (سلطان حمید لودي) کورنۍ د (براهیم لودي) په اولاده کښې سیانی (سامي) وه (۳) او یقیناً چه ٬حدودالعالم د مؤلف (بنوسام) نسبت له همدغه امله ؤ چه په راوروسته وختو کښې ددوړو مطالبو له پاره استخدام شو.

دفتوح السلاطین مؤلف عصامی هم دساميانو او بنوسام په نامه دغوریو کورنۍ یاده کړیده :

| | |
|---|---|
| غیاث الدین آن شاه عالم نماند | بـه عالم بجز جای ماتم نماند |
| تهی ماند بی ذات او تخت غور | کنون (سامیان) را بود زر نه زور |
| ز گیتی سفر کرد آن (پورسام) | که بو دست در دو دمان نورسام |

**قرشي :**

دانوري دحدودالعالم مؤلف (قرشي) ضبط کړیدی، نه ( قریشي) او دا

له اصله څخه یکښې راوستلې دي لکه : صرود (سردسیر) (۱) جروم (گرمسیر)
(۲) مستنج (مستنگ) سجستان (ساگزستان) سجزی (ساگزی) قهستان
(کوهستان) میرواعظ (مهرویس) ضحاك (سهاك) لهوکرد (لوګر) ارغستان
(ارغسان) بریچ (بریخ) توغی (توخی) قرملی (پرملی) قرمل (پرمل) او داسې نور...
لکه څنګه چه مو دمخه و.اوستل په قریشو کښې خو (ابن خلدون) د (بنوسام)
قبیلې له موجودیته څخه کرټ انکار کړی دی مګر په پښتو کښې (غرشین)
د (ساکن الجبل) په معنی قراوسه پورې ژوندی او په پښتنو کښې معمول او
متداول توری دی پوې خاصې قبیلې ته هم (غرشین) وایه‌شي. مخزن افغانی
(غرشین) د (خرشبون) دزوی (میانه) په اولاده کښې راوړی (سلیمان غرشین)
دسلطان ابراهیم لودی له لویو امیرانو څخه ؤ (دپشین) د (غرشین) توری مقابل
دی چه د (ساکن المصر والقری) په معنی راځی قوی امکان شته چه یو وخت دې
د (غرشین) نوري تلفظ (کرشین) او (کرشین) هم ؤ ځکه (غر) د (کر) او (کر) مبدل
دی او د کرسپ (کرفس) کربوړی (چلپاسهٔ کوهی) کروړ (نوعی ازبوته کوهی)
کرشپه، کرسی او کرړکی (گیاه کوهی) کرړه کرند (درخت و گیاه کوهی)
کریوه (پشته) کربج کریجاه (کوهستان) کرنګ (لاش کوه) کردر (راشه
کوه) او داسې نورو الفاظو کښې ئې تغیر ارتطور له‌ورایه څرګندی په (ق)
سره د (ك) د (ګ) او (غ) اړونې په‌دې مثالونو کښې و ګورىء: کندهارا
(قندهار) کندهارا (قندهار) ابرکوه (ابرقوه) لمغان (لمقان) یغمان (یمقان)
فیروز کهندز (فیروز قند) کنباره (قتاله) کرن پهول (قرنفل) ساګزی (اسحاق
زی) کهندز، کهاندز (قند) کوهستان (قهستان) له‌دغو مثالو څخه ددی استنتاج

# پښتانه او ملتان

دلمړۍ هجري پېړۍ په روستيو اتو کلو کښې د مشهور (حجاج) وراره او زوم (ثقفي محمد بن قاسم) (سند) او (ملتان) ونيول تر (قنوج) پورې ولاړ. مګر د دوهمه هجري پېړۍ لانه‌وه راتوې شوې چه (غازي محمد بن قاسم) له‌سند څخه ولاړ او دده په تګ سره د سند غښتلو او له برمه لوېدلو پاچاهې کورنيو دخپلو خپلو سيمو د ښار ښار او کلي کلي د بيانيو لوله پاره لېښې راوغښتلې او د دې سيمو د عربو مفتوحې ملکې ورو ورو بيرته د کفارو په‌لاس کښېوتلې. يوازې کسې غره ته څرمه ملتان او د سند په منځ کښې منصوره دوه داسې رياستونه پاته شول چه تر څلرمې هجري پېړۍ پورې د کفارو لاس پر برنه‌شو. (۱)

ځينې مورخين په ملتان کښې د دغه اسلامي حکومت د پاته کېدلو سبب داسې ليکي:

د په‌ملتان کښې د عاج جوړو ښکلو او مسکرانو د بازارو تر منځ د هندوانو يوه لوړ امنلې بتخانه‌وه چه په کال کښې بو بلاز بارت ته ورتلل هندوانو پر خان لازم بلل او د دوى خور امشهور (بت) (مونتان) يا (چکرسوام) ملته‌ؤ هر کله چه به‌هندو را جاګانو پر ملتان بريد وکا؛ مسلمانانو به دوى د نو مړ ي بتخانې په نړولو او د بت په‌سوځولو او ماتولو وېرول مهاجمو راجاګانو به‌هم له‌دغې وېرې بيرته پر خپله تره ترشانر بلل او بيا به‌يې هيڅ د زور او قوت نوم نه‌اخيست' (۲)

پر فاتحو عربو سره راوغوړ ځيدل ځکه چه د فاتحو عربو ارتباط له خپل مرکز خلافت سره ډېر ضعيف شوی او مرکز خلافت پخپله بخولو (مصايبو) کښې ډوب ؤ عرب و ځپل شول، خو پښتنو دوی ته پناه ورکړه او ددوی ملا يې وتړله (١)

ويلای شو چه په ملتان کښې تر څلرمې هجرې پېړۍ پورې د اسلامی حکومت د پاته کيدلو سبب د پښتنو حمايت ؤ او غالباً له همدغه امله پښتانه په دوهمه هجری پېړۍ کښې د کسی غره له لمنو څخه د اباسين لمرلو يد يزې غاړې ته راوښخيدل. د لهور د راجا سره يې په پنځو مياشتو کښې ٧٠ بريالی جنګونه وکړل، د برشار (پيښور) کرماج او شنوران ښارونه او سيمې ئې ونيولې او تر لغمانه پورې ئې خپل پوځ خپلواک حکومت د لهور په راجا ومانه (٢)

## سلطان حميد لودی

د څلرمې هجری پېړۍ په نيمايی کښې د (روه) او (کسی غره) لمر ختيز پلو ته د (راجاجيپال) پاچهی له کشميره څخه د (ملتان) د پاچهی تر سر حده اوله چنا به څخه تر کابل (٣) يالمغانه پورې (٤) راوزده شوې او پايتخت ئې (ويهند) ؤ (٥)

په (ملتان) کښې د قرمطی جلم يا جيلم بن شيبان د جوړ کړی حکومت نغاړه وهله کېده له (٦) تر پنجاب لېږ کښته د (بهاتيه) حکومت چه دهغه وخت يوه خوراوا کمنه پاچهی وه ېېرغونه رېيدل او د (سند) په منځ منصوره (برهمن آباد) کښې دعباری کورنۍ اسلامی حکومت قائم ؤ (٧)

لمر او پدېز پلو ته يې په ٣٥١ه کال په (غزنی) کښې چه د (زابلستان)

دغزنویانو داوزدې اودرنې پاچهۍ تیږه کښېښوه له دغه (الپتگین) دماوراء النهر دساماني پاچا (رشید عبدالملك بن نوح) (۳۴۳-۳۵۰ھ) له خوا په ۳۴۹ ھ کال دخراسان سپهسالار شو (۱)

یو کال وروسته (رشید عبدالملك) ومړ اوپر ځای یې وروړ (منصور) (۳۵۰-۳۶۵ھ) کښېنوست ځکه چه (الپتگین) دنوموړي رشیدعبدالملك دزوی دپاچا کېدلو پرسیله ولاړنو ئي ځکه د (منصور) په پاچهۍ کښې تېك ونه کړای شو (غزنی) ته راغی اودا سیمې یې د (امیرانوك) یا (امیر ابوبکر لاویك) له لاسه وکښلې (۲)

(الپتگین) چه په غزني کښې نوك تینګ کړ څو ځله یې خپلی لښکری دخپل سپهسالار (سبکتگین) ترمشر تابه لاندې دملتان اولغماناتو دسیمو نیولو ار ه ولېږل دو لې، د (الپتگین) دې بریدونو پښتانه ډېرو ځپل اوز ښت یې وځورول.

پښتانه مشران چه سرجر که شول د (الپتگین) دمنظمو لښکر و مقابلې ار ه ئې دیوه منظم تشکیل ضرورت حس کړ او ددې چارې دترسره کېدلو له پاره یې د (ویهند) پاچا (راجاجیپال) ته سړي ولېږل (راجاجیپال) بخپله ځکه ددوی مرسته نشوای کولای چه دپنجاب لښکرو دپښتونخوا په سرو غرو کښې ژوند نشو کولای او دملتان په هغه وختنی پاچاهۍ پوری ئې هم خپله دفاع لا بشپړه نه لیدله ځکه ئې نود (بهاتیې) دراجا په سلا له ملتان څخه تر لغماناتو پوري دټول زوه او کسي غره دارنی لتی اوملك واك دپښتنو دیوه ستر اومنلي مشر (شیخ حمید لودی) په غاړه کښې واچاوه (۳) یدې تو که دغو پاچا هیو له یوې خوا څخه دپښتنو دسیمو ساتنه اودفاع دپښتنو پر خپله

خورا تینګه کلار او کرزوله چه دپښتنو دآزادی طلبۍ ، حریت پسندۍ همت او توزیالیتوب لهاجزاو څخهجوړهشوې وه. شیخ حمید اودی چه دپښتنو دبوې خوړا ارتی لتې له ملتا نهڅخه تر لغمانا تو پوری سا ننه پرغاړه وا خیستله په هرهرځای کښې ئې لهخپلې خوا حا کمان وټا کل دپښتنو یوهمنظمه پاچاهی ئې جوړه کړه (۱) او ملتان ئې پایتخت کړ .

دالپتګین پهژوند دملتان اوغزنې دپاچاهیو مناسبات سره ښهوه ؤ مګر کله چه سبکتګین دغزنی پاچاشو ؛ سلطان حمید چهنور دمنا سبا تو ورانی او جنګ اوجګړې دخپل یوه مسلمان حکومت سرهورنه پللې؛ دنه پرید دتړون هیلهئې څنې وکړه (۲)

## ددوستی اوښورو ابطو تړون

دالپتګین) او (ابواسحاق) زوی ترمړینی وروسته ئې دغزنی پاچهی په ۳٦٦ ه (۳) یا ۳٦٧ ه (٤) کال سبکتګین سپهسالار اوزوم ته ورسید له شیخ حمید لودی (سلطان حمید) چه په خبرشو استازی ئې ورو لیږل او دا پیغام ئې پلاس ور کړ:

اموز اوناسی مسلمانان ورونه یو هیله کوو کله چه ستاسی لښکرې هندوستان تهدیرغل لهپاره تیریږی دلاری پرپښتنودې بربدونه نه کوی او نه دې ئې څوروی ؛ (۵) سبکتګین دده داهیله ومنله اویه ملتان کښې ئې دسلطان حمید پاچهی تسلیم کړه (٦) دسلطان حمید پخوا لاله شرقی ور پورو پاچهیو

---

(۱) تاریخ فرشته لومړی ټوك ۱۸ مخ

(۲) تاریخ فرشته لومړی ټوك ۱۸ مخ

سره مناسبات ښه وو دیروغې ئې له غربي خوا یعنې دغزني له پاچهۍ سره
هم مناسبات ښه کړل او تر څو چه ناصرالدین سبکتګین ژوندی ؤ دملتان پر
پاچهۍ دغزني د پاچهۍ له خوا کوم برید تاریخونه دي راوړي بلکه دجیپال
سره تر دوهم جنګ وروسته ۳۶۷ ه چه غالباً به دسلطان حمید تر ترون وروسته
وي پښتنو دسلطان ناصرالدین سبکتګین کلکه ملاو تړله او هر کله به چه
مرستې ته اړشو که به دملك په دننه بوجنګو او که به د هند په غزاو کښې ؤ
دپښتنو په زرو سپاره به بې په مرسته ور تلل او دده تر بیرغ لاندې به جنګېدل

(۱) دملتان پاچهي دسلطان حمیدلودي په کورنۍ کښې تر ۴۰۱ ه ک، له پوري
څود ناصرالدین سبکتګین زوی سلطان محمود دده (سلطان حمید) د لمسي
له لاسه کښېله پاته وه.

# دملتان دپاچهۍ حدود

دسلطان حمید دملتان دپاچهۍ تك (حد) شمالاً او جنوباً له لمغانه تر ملتانه ؤ
ملتان په هغو وختو کښې بوالحې دیوه ښار نوم نه ؤ بلکه یو مار ته اطلاقېده لوی
ریاست (پاچهۍ) بې په نامه یادېدله چه بوالکوشل کلي بې لرل (۲)

دملتان دپتې لمر لویدیز پلو ته بنو ګ (بنو) شمال مغرب ته تا لهل (تل)
پروت ؤ (۳)

دملتان دښار غربي پلو ته والس (سیوي) الس مزله لیرې (۴) او جنوب
غرب ته ئې الور (الرود) ښار چه د (منصوري) په پاچهۍ پوري تړلی ؤ پنځه مزله
لیرې پروت ؤ (۵)

[illegible]

د هندوستان له لویو ښارو څخه شمېرل کېده اوښه دفاعي ټینګار یې درلود باچا به یې تر ښار د باندي په (جندوار) یا (جندرود) یا (جندراور) نومي ځای کښې چه تقریبا نیم فرسخ له ښاره لیری یوه عسکري چوڼۍ را وده وه کي ښارؤ اوسېد (١)

(بسمد) تر (جندوار) یو مزل جنوب ته دغه وخت یو سمسور ښار کی ؤ (٢)

(نهرانج) د ملتان در باست یو خورا لوی او لر غونی ښارؤ . د حدود العالم مؤلف په ٣٧٢ هـ کال لیکی چه دغه ښار لبرپاته دی نورو را ن شوی دی

(بیروزه) دملتان په حدودو کښې یو بل ښارؤ (٣)

(جابر سری) دملتان له خورا ودانو او سمسورو کلو څخه ؤ چه هلته خرما او چنبر خیار د یر کېدل (٤) .

دا لمغان) ښار چه د سلطان حمید د باچهی ر بل څنګ ؤ د هغه سین پرغاړه پروت ؤ چه حدود العالم د لمغان د سین په نامه ضبط کړیدی او د لمغان او دینور په خواو کښې له غرو راوت یر بینهار (پیښاور) ملتان، دون، سدوسان، بلری، منصوره او نجا بری بهېده او (کولی) ته نژدې لوی دریاب ته لو یده لمغان یوو دا ین تجارتي ښارؤ د یر مسلمانان سوداګران پکښې اوسېدل او بتخانې هم پکښې وې (٥)

هیون تسانګ چینی زایر دلغمان په باب کښې لیکی :

دزه چه (٦٣٠ ع) کال په دوبی د پنجشیر درود په غاړه ننګرهار ته تلم (د کابل او پنجشیر درود و تر ګډو ځی چه ورتیرشوم د کڅ لاس خواته مې دلمپاکا (اوسنی لغمان) ولایت ؤ. تر لمپاکا چه ورتیر شوم نګارا هارای (ننګرهار) ته ورسېدلم (٦)

په لمپاکا کښې وربجې د یری کېږی اوبه او هوائي پسته ده، واوره نه

ژ وند او له سازو سرود سره مینه لري، هو ښیاران او نیز فکره خلك دی حرکات ئې هم چټك دی۔ کندکین (نخی) کالی اغوندی .

داسیمه د کاپیسا دباچا ترلاس لاندې ده جنوب شرق ته ئې دننګرهار اوی ښار پروت دی (۱)

(دینور) دلمغان دسین پرداېله غاړه دلمغان دښارپرېرابری پوډلو دا ن ښارۀ چه دخراسان سوداګر هلته اوسیدل (۲)

دملتان پاچهی شرقا تر(جالندهرا)پورې وراوزده شوې وه پخپله(جالندهرا) دقنوج په پاچهی اړه درلوده او(لهور) او(رامیان) دملتان په تك کښې و و.

د(رامیان) ښار پرغره ودانۀ ، لېزمسلمانان پکښې اوسېدل د (رامیان ) او(جالندهرا) ترمنځ پنځه مزله لاروه .

د(لهور) ښار د پرهارته سیمه لرله بازارونه او بتخانې د پرې پکښېوې (۳) له غربه شخه دغزنی باچهی تر(ګردیز)پورې ورخخېدلې وه(٤)

## شیخ رضی لودی(رح)

شیخ رضی ( رح ) دسلطان حمید لودی وراره اودپښتو پوخوږ ژبی شاعرۀ اومحمد هو تك ئې ( امیر الفصحاء ) بولی خپل تر بوره ( نصر ) ته ئې چه دپلار تر مړ او وروسته دملتان باچا ۀ اودقرامطه و په مذهب متهم شو؛ دنرتنې لیك ولیږه اودااشعار ئې پکښې ولیکل :

د الحاد په اور دې تر پلل ګروه دې زمو ز و کوراو ه

اودی ستا په نامه سپك شو — کـه هر څو مو در نـــاوه
نصره ! نه مو ئې له کهاله — « اودی » نه ئی په کاوه

زموږ رغاد ستاله کروه

دوږخ اوی په رغاوه

شیخ رضی ( رح ) یو سو چه مسلمان او اسلامی مبلغ ؛ ( ۱ )

## سلطان نصر لودی

نصر دسلطان حمید لودی زوی دی چه دسلطان حمید تر مړینې وروسته دملتان پاچا شو ·

وائی چه نصر په ملتان کښې د ملا حدو ( قرمطیانو ) له اسنا څو سره کښېښو ست او له دری څخه ئې دالحاد او اسماعیلیه فرقی عقائد زده کړل اودده په قول ددوی داعتقاد په کروهیدو او متهم شو ' دده تر ږور شیخ رضی (رح) ده ته یو دنر تنی لیك ولیږه او نصر ئی هسې ځواب ولیك اودالحاد تور یې له ځانه واړاوه :

دالحاد په تور تورن سوم — زه لـرغون خو ملحد نه یم
زمـا دښمنه هسې تورا کړی — کـه ملحد یـم د دښمنه یـم
لـه اسـلامـه نـه تـر پلمه — تورا تو څخه په تـر پلمه یـم
کروه مې هغه لرغونی دی — اوس هم کروږ په لرغو نه یم
داسلام پـه هسك بـه ځنلم — وتـــورا تو نـــه تیـاره یم

د « حمید » زوی سنتی یم

د « لودی » لهلوی کهاله یم

سلطان نصر دغزني دپاچانا صرالدين سبکتګين ( ۳۶۷ ـ ۳۸۷ ه ) معاصر او تر ( ۳۹۵ ه ) پخوا مړ دی ، دده په وختو کښي هم دملتان او غزني دپاچهیو مناسبات خورا ښه وو ، دپنجاب دجیپال حکومت او ورنژدې سند ( بها تیه حکومت ) سره ئې هم دوستانه روابط لرل .(۱)

# قرمطیت او ملتان

۱۰۰

دجعفر صادق (رح) یو مریي چه میمون بن دیصان الا هوازي نومید او په (قداح) اوشارۀ دمحمد بن حسین سره چه په ( زیدان )مشهورۀ دعراق دوا کمن په زندان کښې مل شو اود باطنیه دعوت بنسټ یې سره کښېښود چه له زندانه راووتل (زیدان) دکردستان غرونه وخوت او دکردانو یوقام ئې چه(بدین ) نومیدیه باطنیه مذهب وګروهاوه (قداح) لمرلویدیزو سیمو ته مخ ونیو او هلته یې دمحمد بن اسماعیل بن جعفر صادق(رح) دزوی په نامه ځان په خلقو وپیژاند(۲) ډیر خلق یې په باطني مذهب وګروهول ، تر دوی ورو سته (حمدان قرمط ) چه لمړي ئې دکوفې په شاوخوا کښې بزګري کوله دباطنیه دعوت یوستر شخصیت شو. ترده وروسته باطنیان « قرمطیان » ونومېږ شول او ډیرقوت ئې وموند قرمطیانو په پټه د (زردشت) دودپاله ، قرآني آیات او نبوي احادیث یې دزردشتي دین په ګټه تأ یلول .

دحمدان ورور (مامون) په فارس کښې دا تحریك پرمخ بیوه اودمامونیه فرقې اساس یې کښېښود ابي حاتم د(دیلم) سیمو ته ولاړ هلته ئې په دومره قوت دا تحریك پرمخ بوت ؛ چه دمامون الرشید( ۱۹۸ ـ ۲۱۸ ه) په وختو کښې دري لکه دیلمیان دیاکس تحریك (۳) (چه له باطني تحریك سره ګډ شو) د سیلو

ودرېدل او ډېر کلو نه دبغداد دلښکرو سره وجنګېدل په خراسان (نیشاپور) کښې ددې دعوت بیرغ (شعرانی) اوچت کړ، خوژرووواژه شو، ترده ورو ستـه دا بیرغ محمد بن احمدالنسفی اوابو یعقوب السجزلی (١) (چه په بندانه مشهورؤ) په ماوراء النهر کښې پرغاړه واخیست (٢) نسفی د(محصول) په نامه یو کتاب پدېلاره کښې تصنیف کړاو (بندانه) درې کتابونه (اساس الدعوت) (کشف الاسرار) او(تاویل الشرایع) د همدغه باطنی تحریك له پاره ولیکل. مؤرخین وائي: باطنی (قرمطی) تحریك دمامون الرشید (١٩٨-٢١٨ ه) په زمانه کښې څرګند شواو دمعتصم باللّٰه عباسي خلیفه په وخت کښې يې لمنې شاوخوا ته پسې اوزدې شوې او په خوراچټکۍ سره پرمخ ولاړه-حتی په ٢٨٩ ه کال د(قداح) لمسي (مهرویه) دعباسی خلیفه (معتضد) لښکرو ته په شام کښې کلکه ماتې ور کړه او دبغداد دلښکرو سپهسالار (سبك) ئې وواژه.

په ٣١١ ه کال سلیمابن حسن قرمطی یکښې بورته شواو له (بحربن) څخه ئې پر بصره چه دعباسی دارالخلافې (بغداد) په غوزی کښې پرته وه بریدو کړ. د(مقتدر باللّٰه) عباسی خلیفه لښکرې ئې ماتې کړې، دبصرې حاکم ئې وواژه او دبصرې مالونه ئې په تالا بحربن ته څخې یووړل په ٣١٧ ه کال ئې پر مکه معظمه بریدو کړ، حاجیان ئې په طواف کښې ووژل اوبر مسلمانانو ئې دېر ناورینونه ورژول(٣) په همدغو کلو (دځلورمی پیړۍ په لمړی نیمائې) کښې چه قرمطیت خوراپه قوت کښې ؤاوهرې خوانه ئې بخرکی خپریدل جیلم (جلم) بن شیبان ملتان ته ولاړ هلته ئې دباطنی تحریك بیرغ اوچت کړاو تر ٣٤٠ ه کال وروسته ئې دقرامطه حکومت تینزه هلته کښېښودله (٤) دبغداد

دخلافت له و اندره څخه ئې دملتان دحکومت غاړه و تښتوله (۱) هغه لوی مسجد ئې چه غازی محمد بن قاسم ثقفی دلمړی هجری پیړی په پای کښې هلته ودان کړی ؤ داموی خلافت پرضد بند کړاو دهندوانو د(سورج دیوتا) لویه اوخورا مشهوره بتخانه (چه داصطخری په قول له لیرو لیرو ځایو به ئې هر کال هندوان زیارت له ورتلل دملتان داسلامی حکومت یو ستر رقم عاید ؤ او غازی محمد بن قاسم ثقفی هم په دغه غرض پرې ایښې وه) و نړوله او دهغې پرځای ئې خپل نوی لوی مسجد ودان کړ (۲) بغدادی ابن حوقل چه په ۳۶۷ ه کال ملتان ته راغلی دی په خپله سفرنامه کښې لیکی: « د ملتان خلق شیعه دی په اذان کښې (حی علی خیر العمل) او په اقامت کښې دوه ځلا تکبیر وائی (۳) په ملتان کښې خطبه دمصر دفاطمی حکومت (٤) په نامه ویله کیږی او دهغه په امر ددې ځای انتظام کاوه شی. له ملتانه تحفې او سوغاتونه ور لیږل کیږی (۵) دملتان سکه دمصر دفاطمی سکې په ډول جوړه شوې دی، مگر زیاتره هلته قنهریات (چه د تاریخ هند دمصنف مستر الیټ په نظر کښې قندهاریات یعنی په قندهار کښې جوړ شوی سکې دی) چلیږی (٦)

## ابو الفتوح سلطان داؤد لودی

چه دسلطان حمیدزوی (سلطان نصر) ومړ پر ځای ئې زوی (داؤد) دملتان پر تخت کښېنوست، دده په وخت کښې دسبکتگین په مرگ چه په ۳۸۷ ه کال یا ۹۹۷ عیسوی کښې پیښ شو دغزنی او ملتان دپاچهیو مناسبات سره وران شول

(۱) سلطان محمود

(۲) کتاب الهند البیرونی ۱۱ باب ۱۵۰ مخ (۳) عرب وهند کې تعلقات ۳۱۲ مخ داحسن التقاسیم مقدسی د ۴۸۱ مخ په حواله (٤) د مصر فاطمی دقمطی حکومت په ۳۵۸ ه کښې جوړ

اودغزنی پاچا سلطان محمود (۳۸۷ ـ ۴۲۱ ه) پرملتان بریدونه و کړل (۱) دبریښنانه بی وو ژل (۲) په ده پسی وائی چه ا لحا دته اوښتی ؤ ا و خپل رعیت ئې هم هغو بدو عقیدو ته بلل (۳)

## دسلطان محمود لمړی برید

وائی: سلطان محمود چه په ۳۹۵ ه کال د (بهتندي) له سو بی څخه غزنی ته راستیندده؛ وي غوښتل چه خپلی لښکري دملتان له لاري پر د گومل پر وت «درد» لندې غزنی ته ورسوی' خو ابوالفتوح (سلطان داؤد اودی) دملتان او کسی غره پاچا دسلطا ن محمود لښکری پري نه ښوواي چه دده له خاوري څخه غزنی ته تیری شی ځکه نو سلطان محمود دملتان دپاچهی د تکوا و ته لیځی راوغښتلی (۴) له هري خوا څخه ئې لښکری راو غوښتلی (۵) او د ۳۹۶ ه کال په پسرلی ئې دپیښور له لاري دغزنی لښکری دملتان بریدله وخوځوالې اوده و پهندله پاچا «انندپال» څخه ئې وغوښتل چه دغز نی لښکروته دده په خاوره کښې ملتان ته دتیر ید لواجازت ور کړی «انندپال» نه و کړه دملتا ن دپاچهی پرسیله «حمایت» کالك ودریدا و دغز نی دلښکرو مخ نیوی ئې وکړه ئې خپلی لښکری پیښور نه وخوځولې' لښکری سره مخامخ شوې' جنګ و نښت' دو پهند لښکرو ماتی و کړه «انند پال» د کشمیر خوا و ته وتښتید' سلطان محمود تر چناب وریسی ؤ ' انندپال چه د کشمیر غرو ته ځنې وخوت دغز نی لښکرو ملتان ته مخه و کړه «۶» سلطان داؤد چه خبر شو خپلی لښکري ئې په ملتان کښی بر ښبوولي

---

(۱) سلطان محمود ۱۰۲ مخ

(۲) تاریخ فرشته لمړی جلد

(۳) پته خزانه ۲۴۹ مخ دا بن خلدون اوا بن اثیر په حواله اودا بو نصر بن عبدالجبار عتبی دتار یخ یمینی د۲۸۹ مخ په حو اله

(۴) حیات سلطان محمود ۱۰۳ مخ مگر ابن اثیر پخپل تاریخ الکامل اوابو نصر بن

او پخپله له غزا نو سره (۱) دا با سین یوې جزیرې (۲) ته ولاړ . دسلطان
محمود لښکرې چه ملتان ته ورسیدلې دسلطان داؤد لښکر و دښار وروته ور ته
وتړل او ملتان کلابند شو.

تراوو ورځو کلا بندۍ وروسته خلق ترمنځ سره و کړزیدل، پردې روغه
وشوه چه دملتان پاچا به په کال شل زره سره درهمه په هل پلا دغزنی حکومت ته
ور کوي (۳) دښار ورونه چه دغزنی دلښکرو پرمخ ویر انیستل شـول سلطان
محمود نوره و کښه او هو مره سرې «قرمطیان؟» ئې ووژل چه دملتان دښار
ترلاهورۍ دروازې وینې راوبهیدلې اودسلطان لاس دتورې په موټی پورې
له وینو ښخه هسې نښتی وچه څو تودې اوبه ئې پرتوی نه کړې بیل
نه شو د (٤)

سلطان تردغې روغې وروسته بیا هم خیال درلود چه د ملتان شاوخوا ونیسي ؟

خوځکه چه پرخراسان دایلك خان تر کمن دبرید خبرراغی ملتا ن ئې
پر بښ دا او په منډه غزني ته ستون شو(٥) ابوالفتوح سلطان داؤد بیرته ملتان ته
راغی اود حکومت واکې ئې واخیستلې .

## دسلطان محمود دوهم برید

په ٤٠١ هـ کـال سلطان محمود بیاد غزنی لښکر ی پرملتان ورو بهولې
ملتان ئې ونیو دبر میرونه ئې ووژل اودبر اولسونه یې وځپل، دیر نـا متو
مشران یې په کـلاو کښې بندیان کړل چه هلته پسې و مړل! په خپله سلطان داؤد
لودی ئې بند ی غزنی ته راوست اودغورك په کـلا کښې ئې چه دقند هار شمال
غربی لورته ۵۰ میله لیرې پرته وه) تر مرګـه بندی کړ (٦) په دې صورت
دلودیو پښتنو منظمه پاچهی پای ته ورسیده .

**د سلطان محمود دریم برید:**

که څه هم د پښتنو منظمه پاچهي په ملتان کښې رنګه کړه شوه خو بیا هم دغزني او آباسین ترمنځ قبائلو پښتنو (۱) به تل دغزني دپاچهي پرور پورو سرحدونو برید وه کول او له هغو کاروانو څخه به ئې چه د هندوستان او خراسان ترمنځ تلې اورا تلې؛ باج اخیست. حتی په ۴۰۹ ه کال چه سلطان محمود دقنوج له سوبې «فتح» غزني ته راستون شو؛ دوی لاره ورته نیولې وه؛ ځکه نو سلطان محمود د ۴۰۹ ه کال په پای کښې دبلې خوا د حرکت په پلمه او آوازه ناڅاپه دغزني لښکرې پردوی ورو بهولې او ناخبره ئې پر مېنو کیر کړل! داسې ئې بې شمېره ووژل چه د مورخینو په شهادت بې له ښځو، ورو او لږ و میرو نور څوك ژوندي پکښې پاته نه شول (۲) تول دغزني دلښکر و تر تیغ و ختل. او بیا سره تیت او پرك کړه شول (۳) خو دا تر تیغ ختلي مګر نه مړ کېد و نکي اولس (۲۲) کاله وروسته بیا دومره غښتلي شو چه د سلطان محمود زوی سلطان مسعود بې مجبور کړ چه خپل زوی (مودود) ددوو زرو سپرو سره ملتان ته او (امیر ایزدیار) د څه لښکرو سره د کسي غره ته د پښتنو د ایلاو او له پاره ولیږ ی (۴)

## غازی ملك سلیمان لودی

ملك سلیمان د سلطان ابوالفتوح داؤد لودی تربور ؤ. په ۴۰۱ ه کال چه سلطان محمود غزنوی ملتان دلودیو له لاسه و کیښ، ده ته ئې په درنه سترګه وکتل او په خپلو امراؤ کښې بې شامل کړ. سلطان محمود غزنوی له لودی ټبر څخه، دده په وسیله د هندوستان په جنګو کښې لوی کار و نه واخیستل

دسومنات «۴۱۶ هـ کال» په غزا کښې ملك سليمان ددولس وزرو پښتنو سپرو مشراو دسلطان تر ټولو معتمدجرنيل ؤ. دسومنات په سيمو کښې يې د سلطان محمود سره د ډېر کاله د قدر وړ خدمتونه وکړل (۱) چه سلطان له سومنا ته څخه راستون شو، ملك سليمان او نورو پښتنو مشرانو ته ئې زرين موټي ډېري اودرانه خلاتونه ورکړل او خپلو مېنو ته ئې رخصت کړل (۲).

## کوچنی (داؤد) لودی

دمصر فاطمي خليفه (الحاکم بامرالله) (۳۸۶ - ۴۱۱ هـ) په مصر اوشام کښې دقرامطه و يوه بله ډله د(دروزی) په نامه راوايستله چه تر اوسه پورې په شام او لبنان کښې شته (۳) ددغې ډلې يوه واکمن دغازي سلطان محمود د ترمړينې وروسته په ۴۲۳ هـ کال دملتان اوسند دقرامطه و په نامه داسې يو ليك ور ليږلی دی :

«دملتان او هندوستان موحدينو! په ټيره بيا دسومرراجه بل زويه شيخه! خپله کورنۍ وپاڅوه! هغه (کوچنی داؤد) چه اوس اوس مسعو د (سلطان مسعود) له بنده خوشي کړی دی او توبه ئې کښلې ده؛ خپل پاك دين ته راواړاوه! نه موو تا کلی چه دده له خوريي (عبدالله) او دملتان له اوسيدونکو سره وجنګيږی چه د تقديس او توحيد منونکی دجهل، ضد، سر ټمبه ګی او بغاوت پرډله بربالي شي (۴) مرحوم علامه سيدسليمان ندوي دغه کوچنی داؤد چه په پورتني ليك کښې ذکرشوی دی، دابوالفتوح داؤد زوی او دملتان واکمن «عبدالله» چه په ليك کښې ذکر دی د کوچنی داؤد خوريي اودابوالفتوح داؤد لمسی بولي (۵).

# ملك محمود لودی

په ۵۸۳ ه کال چه سلطان شهاب الدین غوری (رح) پر هندوستان لښکری
وروېوستلی، ملك محمود لودی پښتانه جرنیل ته ئی دولس زری فوځ په لاس
ورکړ او دخپلو درنو لښکرو سرلاړ (قراول) یې وټاکه دملك محمود فوځ به
یو یو منزل دسلطان تر لښکرو دمخه تللې؛ څو لاهورته ورسیدل او لاهور ئې دغزنویانو
دوروستی پاچا «خسرو ملك» له لاسه وکیښې. او دې ئې بندی غورته راولیږه. وائی په
دغه جنګ کښې ملك محمود ډېر تورې کړې وه سلطان چه غزنی ته راستون
شو، زښت ډېر ئې ونازاوه او دخپلی پاچهی یوه خورا درنه عهده ئی ورو سپارله (۱)

## ملك شاهو لودی

ملك شاهو دمحمود ورور دی په ۵۸۳ ه کال چه سلطان شهاب الدین
غوری له هندوستانه څخه سوبه وری غزنی ته ستنېده په لاره کښې ئې
د «سیا لکوټ» د کلا نیېزه کښېښنووله، پخپله غزنی ته وخوځید او ددغی کلا
د ودانې کار ئی ده «ملك شاهو» ته وسپاره (۲).

## شیخ احمد لودی (رح)

شیخ احمد دسعید زوی په قام لودی پښتون په ۶۸۶ ه کال یې «اعلام
اللوذعی فی اخبار اللودی» په نامه یو کتاب کښلی دی چه کامران خان سدوزی
پخپل کتاب «کلید کامرانی» کښې له هغه څخه اقتباسات کړی دی. (۳)

## سلطان فخر الدین لودی

غیاث الدین تغلق دډهلی پاچا «۷۲۰ ــ ۷۵۲» تاتار خان نامی یو امیر

ته ئی دبهرام خان لقب ورکړ، سلهاتیان ، زرآسونه، یو کروړ سرې تنکې
اوچتري ورونښانده، علاوه پر «ستار ګاون» ئی دبنګال واك هم ده ته وسپاره
(۱) همدغه ملك بهرام خان په ۷۳۹ هـ کال په ستارګاون کښې ومړ ده
ترمړینی وروسته دده سپهسالار «ملك فخرالدین لودی» دستارګاون پر حکومت
غښتلی راو ګرزوله (۲) دلکهنوتی «بنګالی» تغلقی حاکم ملك بیدار خان
خلجی «چه قدرخان ئی لقب ؤ» داونه منلای شوای او دملك فخرالدین جنګ
ته بی لښکر راو غښتلی په جنګ کښې قدرخان وواژه شو ملك فخر الدین
لودی دلکهنوتی پرتولو خزانو، درست بنګال اوسنګام قبضه وکړه په ستار
ګاون کښې ئې د سلطان فخرالدین په نامه دخپلواکۍ نغاره ووهله (۳)
خطبه ئې پرخپل نامه کړه (٤) په ۷٤۱هـ کال (٥) سلطان محمد تغلق
«۷۲۹-۷۵۲» دحاجی الیاس علایی په بلنه «چه بیا په شاه شمس الدین بهنکره
مشهور شو» ددهلی لښکري دعلی مبارك چه دسلطان فخرالدین تروژلی
وروسته د سلطان علاء الدین په نامه د بنګال پاچا شو تر مشرتابه لاندی
د سلطان فخرالدین خپلو لره پر بنګال ورو بهولی په جنګ کښې ئی هغه
فخرالدین چه دسیر المتاخرین په شهادت ئی دوه کاله او څومیاشتی دبنګال
خپلواك حکومت لاره ونیواووئی واژه، ظفرخان لودی زوم ئی «چه دسلطان
حمیدلودی له کورمیؤ» دبنګال دخلیج کنږ «ساحل» ته وتښتید (٦) سلطان
فخرالدین لودی لمړی سړی ؤ چه هغه بنګال ئی چه د قطب الدین ایبك
«۶۰۲-۶۰۷» له وخته ۱۵٦ کاله پرله پسی ددهلی په حکومت پوری تړلی ؤ له
پایتخته بیل اوداود یو خپلوا که پاچهی ئی پکښې اعلان کړه (۷) عصامی د
فتوح السلاطین په ۴۷۲ مخ کښې دسلطان فخرالدین ذکر داسی کوی:

# لوی خان ظفر خان لودی

ظفرخان لودی دملك فخرالدین لودی زوم چه د بنګال په جنګ کښې
دبنګال دخلیج کښ تهراتر شاشو دتروو، او بوله لارې ئی ځان د دیبل بندر
(کراچی) تهورساوه اوله کراچی نه غخه کسی غره (کره سلیمان) تهوخوت
(١) په ٧٥٢ھ کال چهدهلی پاچاسلطان محمد تغلق ومړ (٢) سلطان فیروزشاه
(٧٥٢ــ٧٩٠) تربورئې پرځای کښېنوست. دفیروزشاه په وختو کښې هغـه
حاجی الیاس علایی چه ددهلی لښکری ئې دملك فخرالدین لودی ځیلو لره
بنګال تهبللی اوتر ملك فخرالدین وروسته دبنګال واکمن تاکلی شـوی ؤ
دشاه شمس الدین په نامه په بنګال کښې دخپلوا کی نغاره وډنګو له او تـر
بنارسه پورې ئی تولې سیمی ونیولې (٣ ځکه نود ٧٥٤ھ کـال دکوچنی اختر
پهمیاشت سلطان فیروزشاه خپلې لښکرې د حاجی الیاس ځپاو لره پر بنګـال
وروبهولې خومګر نا کام ځنی راستون شو.

**فیروزشاه ته ورتګ :**

ظفر خان چه پدی نکل خبر شو په ٧٥٨ ھ کال ئی د خپل قام له یوی
لوئی دلې سره چهزرسپاره اوډیر پلیؤ (٤) له کسې غره څخه دهلی تهځـن
ورساوه اوپهحصار فیروز کښې (٥) دسلطان فیرزشاه چه پښتو اوپښینو الی
ته یې په درنهستر ګه کتل (٦) دربارته ورغی (٧) بو یادوه (٨) پیلان ئی دسوغات
په تو ګهوړاندی کړل اودبنګال دحاجی الیاس شاه شمس الدین علا یی
له لاسه ئی خاوری برسر باد کړې، سلطان فیروز شاه دی ډاډه کړاوډیر ئی
ونازاوه، دیرش زره تنـګیئی په هغه آن دهغه وخت له دوده سره سم د سر

او کالو پرېوللو په نامه ورو بخښلي. ده او ملګرو ته يې خورا درانه خلاتونه ورکړل. د څلور لکو تنګو جاګير يې ور لره وټاکه، د ظفرخان د خطاب يې ور کړ او په تخت پورې يې کېنو لاس ته د وزارت پر مسند کښېناوه (۱)

خان جهان ته ورتګ :

د سلطان فیروزشاه دې تولو نازولو د ظفرخان د ښېګڼې کسات او انتقام او ورسره نه کړای شو، په سبا چه دربار ته ورغی بيا ئې له حاجي الياس شاه شمس الدين څخه د کسات اخستلو له پاره له سلطانه څخه مرسته وغوښتله سلطان چه د ظفرخان پر له ابښېدونکي ورځ وليدله، نو ئې دی دهلي ته خپل خور او رتير وزير اسلامي خان جهان (مقبول) لره چه په هندوتوب کښې ئې نوم (کنو) ؤ ولېږه او د بنګال د بريد له پاره ئې د تيارى حکم ور کړ ظفرخان چه دهلي ته ورغی خان جهان هم خورا و نازاوه، داده ئې کړ او په هغه شنه چتر کښې ئې چه خاص د سلطان له پاره د سيرى په کلا کښې ولاړ ؤ ځای ور کړ.

د بنګال بريد :

ظفرخان چه په دهلي کښې څو ورځې تېرې کړې سلطان فيروزشاه هم بېرته ورغى او د ظفرخان په لمسون ئې لکهنوتى (بنګال) ته لښکر ئې وخوځولې، په لار کښې ئې د خپل ترېره (جوناخان) پر نامه د (جونپور) ښار په شپږ مياشتې ودان کړ، بيا نو په ۷۵۹ هـ کال لکهنوتى ته پسې ور تير شو، په‌غو ورځو کښې د لکهنوتى باغي پاچا [حاجي الياس شاه شمس الدين] و مړ او پر ځای ئې زوی [سکندر شاه] کښېنوست، سکندرشاه چه په ځان کښې د ميداني جنګ واک نه ليد، په [اکداله] کښې کلابند شو، د دهلي لښکر و شاو خوا ور ته وارول، په ۷۶۰ هـ کال ئې ۴۰ پيلان د سلطان فيروزشاه دربار ته د روغې له در خواست سره وړاندې کړل او د

**د ټټې برید :**

په ۷۶۵ھ کال چه سلطان فیروزشاه د سندهیانو په جنګ کښې خپل برې نه لیداو له ټټې څخه ئې ګجرات ته دستنیدلو نغاره ووهله خان اعظم ظفرخان لودی ئې له خپل فوځ سره د سندهیانو مخ نیوی لره وګماره چه ترشا پر سلطانی لښکرو برید ونه کړی، پخپله ئې ګجرات ته مخ ونیو او په یوه ورځ ئې اس مزله لار ووهله، سندهیان چه په خبر شول، لښکری ئې پسې راوخوځولې، ظفرخان ئې مخه ونیوله، کلک جنګ ونښت، ظفرخان پخپل پښتنی فوځ هغو سندهیانو ته چه سلطان له ټولو لښکرو سره ځنی وځغستل او ماتې ورکړه او د دوی ډیری کسکری ئې د سلطان دربار ته ولیږلې (۱)

**د ټټې دوهم برید او د ګجرات حکومت :**

په ۷۶۹ھ کال چه سلطان فیروزشاه دوهمه پلا له دهلی څخه ټټې ته لښکری لیږدولې، د ګجرات حکومت ئې (ظفرخان لودی) ته وسپانده او دی ئې هم له ځانه سره جنګ ته بوت، سلطان چه له خپلو لښکرو سره د سند دروډ په غاړه د ټټې پر برابرې واړول، هر څه چه ئې وکړل د سندهیانو له لاسه ئې د سند ترسیمی خپلې لښکری ونشوای ورپورې ایستلای، نو ئې ظفرخان لودی او عمادالملك وګمارل، پر هر ځای چه ممکنه شی لښکری خوا ته په ترسیمی پورې وزی، او پر سندهیانو به یرغل وروړی، ظفرخان او عمادالملك خپلې لښکری ۱۲۰ کروه بیرته لوړې بوتلې او تر [بهکر] کښته ترسیمی ورپورې وتلې، سندهیان ئې پسې راواخستل او د ټټې په کلائی ننه ایستل، مګر په دغه وخت کښې سلطان چه د سیند پر هغه غاړه ورته پروت ؤ، بیرته دوی راوبلل، دوی هم پر هغه

## ملك قطب الدين لودی

ملك قطب الدين دخان اعظم لمړی ظفرخان وروروُ دفیروزشاه ددربارله
لويو اميرانو څخه شميرل کېده په۷۶۰ ه کال چه سلطان فیروزشاه خپلې
لښکری له بنګاله څخه راستنې کړې او دبرسات تابې ئې په جونپور کښې تیرکړ
دبهار لهلارې ئې د(جاجنګر)په نيامت چه د[ کړه کتنګه]دولايت رو ستی برخه
وه؛ خپلې لښکری وخوځولې(کړې) ته چه ورسيد؛ دغو لښکرو ئې د ملك
قطب الدين ترمشرتابه لاندې پر بنبودلې؛ پخپله ئې ديوه تکړه مکرسپك فوځ
سره پر (جاجنګر) بريد وکړ (۱)

## دریاخان لودی (دوهم ظفرخان)

دګجرات واکمن لوی خان ظفرخان لودی چه په ۷۷۵ ه کال ومړ سلطان
فیروز شاه ده زوی دریا خان ته د(ظفرخان) خطاب وښانده اودپلاربرځای
ئې دګجرات په حکومت وګماره (۲) کوم مسند(چوکۍ)چه په پاچاهی
دربار کښې کېښ اوړته په تخت پوری مړه ظفرخان لره تاکلی شوی وه؛ هغه
هم ده ته ورکړه شوه. ده څوکاله دګجرات نائب الحکومګی په خوراښه توګه
وچلوله(۳) په۷۷۸ ه کال چه د(مهوبې)دسیمو خلق سلطان فیروزشاه ته پورته
شول؛ نو سلطان له دریاخانه څخه دګجرات حکومت واخیست او دی ئې
دمهوبې دیاغیانو ځپلو لره وګماره او دهغو سیمو حکومت ئې ورته ورکړ(٤)
د۷۸۷ ه کال پای ته دفیروز شاه (چه دېر زوړ شوی وُ) وزیر خان جهان چه
داسلامی خان جهان(مقبول) زوی او دسلطان د انلسو کلو راهیسی وزیروُ (۵)

دیر واك ومونده٬ پاچائي هری خبری تهغوز نیوه٬ دغه خان جهان ددې لپاره چه نور قدر تو نه له منځه و باسي؛ وغوښته چه د پاچا زوی (شهزاده محمدخان) او ظفرخان لودی٬ پاچا ته تور کړی او پهدې تو گهئې لهمنځهو باسي؛ ځکهئې نو په ۷۸۹ھ کـال سلطان فیروزشاه ته وویل: «ستا زوی (شهزاده محمدخان)٬ دوهم ظفرخان لودی (دریاخان)٬ ملك سماءالدین٬ ملك یعقوب او ملك کمال ستا دپاچهۍ د ړنگولو له پاره تړون سره کړیدی او وخت ته گوری.» سلطان بی لهدې چهدا خبره سره وپلټی سمدستیئې ددوی د نیولو حکم ور کړ. خان جهان ترټولو د مخه ظفرخان ته (چه دده ترټولو غښتلی حریف ؤ) لاس ور واچاوه اودمحاسبې په پلمهئی له (مهوبې) څخه راوغوښت٬ ظفرخان چه ډهلی تهراورسید سمدستیئې پخپل (دخان جهان) کور کښې بندی کړ٬ شهزاده محمد خان چه دظفرخان په بند اودخان جهان په دسیسه خبرشو٬ دشپې پلار ته ورغی اوخان جهان تهئی هسی وباراوه چه سمدستیئې د خان جهان دوژلو اود ظفرخان دخوشی کو او حکمئې ځنې واخیست او پههغه شپهئې دخان جهان پر کور بریدو کا خان جهان چه خبرشو د ستیئې دوهم ظفرخان (دریاخان لـودی) وواژه او پخپله ترتېې کیدلو وروسته میوات ته وتښتید(۱) دشهیددریاخان (چه ددهوژله دتغلقی پاچهۍ دزوال مقدمه شوه) داځلور غښتلی او توریالی زامن پاته شول(۲)

[۱] محمودخان (غالباً ترټولو وروبو مشردی٬ ځکه چهددهزوی دملوخان همز ولی دی)

[۲] سارنگ خان

# سارنگ خان لودی

سارنگ خان ددوهم ظفرخان (دریاخان لودی) زوی دی چه تر ۷۵۹ه کال پخوا زیږیدلی دی. عبدالباقی سهاوندی ئې نوم (ملک مبارک) اوخطاب ئې [سارنگ خان] بولی چه سلطان محمود د خپل تخت نشینۍ په وخت کښې ورکړی دی (۱) په ۷۹٦ه کال چه ناصرالدین محمود شاه د دهلی پاچاشو؛ سارنگ خان ئې ددیپالپور واکمن وټاکه. عبدالباقی سهاوندی لیکی چه دملتان او سند حکومت ئې هم ورسره ورکړ (۲) سارنگ خان سمدلاسه دملتان له سیمو لښکرې سره راغونډې کړلې او له کمال مین، رای داؤد او رای خلجین سره ئې (۳) دشیخا ککهر جنګ ته «چه په دغو وختو کښې ئې لاهور نیولی ؤ» مخ ونیو شیخا ککهرا کهوکر) له اجوده هن څخه له خپلو لښکر سره راووت لاهور ته ۱۲ میله نژدې دواړه لښکرې سره مخامخ شوی، سارنګ خان هسې میړانې وکړې چه غنیمانو ئې تر ډیرو وختو پوری نوم په ادوم اخیست ککهرو ماتـه وکړه او (شیخا) په لاهور کښې ننووت، دشپې له مخې له کور سره د(جمون) غرو ته وختوت سارنګ خان توریالی سبا د لاهور په ښار ننوت (٤) دلاهور واک ئې خپل کشرورور (عادل خان) ته وسپاره او پخپله «دیپالپور» تـه ستون شو (٥) په دغو وختو کښې به دهلی او فیروز آباد کښې (چه دری کروه سره لیری ؤ) دپاچهی بیرغونه سره پورته شول او د شاهی کورنۍ غړی یو په بل سره راوغورځیدل، سارنګ خان توریالی هم په ۷۹۸ه کال له دیپالپوره څخه پرملتان بریدوکړ، ملتان ئې ونیو او دملتان تغلقی حاکم خضرخان (چه بیا دهلی پاچاشو) دمیوات غرو ته کښې وتښتید او ترڅو چه

ګوډ تیمور پر هند یرغل کاوه؛ ملتان یې و. د ۷۹۹هـ کال د روژې په میاشت (سامانې) ته مخه وکړه. د نصرت شاه له خوا د سامانې حاکم (عالي خان) یانې یې ته مخنی و تښتېدلو «سامانه» هم د سارنګ خان تر ولکې لاندې شوه.

د فیروز آباد (۱) پاچا نصرت شاه چه داواروېدنه د ۸۰۰هـ کال په لمړیو ورځو کښې یې خپلې لښکرې د یانې پت د حاکم تاتارخان (چه د دې وزیر و) او ملک الیاس تر مشرتا به لاندې د سارنګ خان جنګ ته ولېږدولې. د ۸۰۰ هـ کال د محرم مې پر پنځلسمه؛ د کوتلې» ته نژدې لښکرې سره مخامخ شولې.

(۲) سارنګ خان تر بوه کلک جنګ وروسته ملتان ته تر شا شو. ملک الماس سامانه و نیوله او عالي خان ته یې بېرته وسپارله (۳) په دغه وخت کښې ګوډ تیمور خپلې ۹۲ زره لښکرې له کابله د هند پر غل لره راو خوځولې او پیر محمد لمسی یې «چه د قندهار او غزنې حاکم و» د کسې غزو د پښتنو تر ځپلو وروسته له د پر شوزرو لښکرو سره د ۸۰۰هـ کال د لمړۍ خور په میاشت تر آباسین ورپورې وت

(٤) او د اوچ) پر کلائی برید وکړ د سارنګ خان له خوا د اوچ حاکم « ملک علی » کلا بند شو .

سارنګ خان تورپالی خپلې ۴۰۰۰ و تلي سپار (۵) د ملک تاج الدین تر مشرتابه لاندې مرستې لره ورولېږل، د ګوډ تیمور لمسی پیر محمد چه داواورېد له د بیاه (۶) د سین پر غاړه یې لاره ورته و نیوله جنګ و نښت، ملک تاج الدین ماته وکړه د پرېښتانه مېړونه مغلو په تورو ومړل او د پر غښتلي د بیاه په اوبو کښې ډوب شول ملک تاج الدین په بده روغ ملتان ته خان ورساوه پیر محمد مغل

ساه لندی پسی و ر و رسید سارنك خان د ملتان په کلا کښې شپږ میاشتی کلا بندی و کالله. هره ورځ بهجنك کیده پای تهچه خوراك وڅکاك لره څه پاته نهشول، سارنك خان دخپلو لښکرو سره تر کلارا ووت، پیرمحمدمغل سمدلاسه دلښکرو سره بندی کړاو ملتان ئې و نیو. مگر سارنك‌خان توریالی دمغلو اسارت کله گالالای شو؟ دیرژر له بنده وغورځید او دپیر محمد پر لښکرو ئې د گوډ تیمور تررا تللو پوری په ملتان کښې په داړو مځکه هسی‌سره کړه (١) چه ترڅو چهئې دتیمور لښکرې په سرسته‌ور رسیدلی بریالیو مغلو په کلا بندی گالله اودباندی ئې ستر گې نشوای ښکاره کولای. دروضة الصفاء په شپږم جلد کښې لیکلی دی

«دبرسات قابی چهشو؛ دپیرمحمد مغل لښکری تولی دملتان پهښار ننوتلی دشاو خوامشران برراو غور ځیدل هرهرځای ئې دمغلو داروغه گان بوژل آسو نه به ئې ځینی بیول او دشپی بهئې دامی وهلی په مغلو پوری ئې ژوند تریخ کړی‌ؤ» په هرصورت د سارنك خان توریالی عمرهبر نهؤ او گوډ تیمور لاله هندو ستانه نهؤ وتلی چه دی ومړ (٢) او دلو دیهو د بیاپاچاهی ارمان ئې تورو خاوروته ورسره یووړ .

## اقبال خان لودی (ملوخان)

ملوخان دسارنك‌خان توریالی کشرور وراود دو هم ظفرخان «دریاخان» زوی دی چه په ٧٥٩هـ کال دصفری پراوومهزو کړی‌دی (٣) دمقرب خان امیرالامراله خوائی د«اقبال‌خان» خطاب ومو ند (٤) دی دملو اقبال خان په نامه په تاریخ کښې مشهور دی

د ٧٩٦هـ کال په پای کې چه د دهلي تغلق پاچا سلطان ناصرالدين محمود ، اميرالامرا مقرب الملك «مقرب خان» په دهلي کښې پر يښود او پخپله د گواليار او بيانې لورته وخوځيد «سعادت خان باربك (١) ئې هم په سپرلې کښې ؤ گواليارته چه نږدې شول اقبال خان لودي ، د ملك راجو زوی مبارك خان او ملك علاءالدين دهاروال په پټه د سعادت خان باربك وژلو ته ليکچې راوغښتلي ، سعادت خان په خبرشو ، مبارك خان او ملك علاءالدين ئې ووژل اقبال خان دهلي ته ځغلي وتښتيد او مقرب خان ته ئې پناه ورووړه ، سلطان ناصرالدين محمود دهلي ته پسې ورغی ، مقرب خان د دهلي نايب ئې هر کلي ته ورووت ، خود دربار وضعيت ئې د ځان په باب کښې ښه ونه ليد ، سمدلاسه په ښار ننوت او دقلا ورونه ئې د سلطان ناصرالدين محمود پر مخ وتړل . د دې ميا شتی د مقرب خان او سعادت باربك ترمنځ جنگونه سره وشول ، پای ته د ٧٩٧هـ کال د محرمې په مياشت چه سلطان محمود پخپله خوښه د مقرب خان خواته ورواوښت ، سعادت باربك د دهلي له قلابندۍ څخه فيروز آباد ته مخه ونيوله او هلته يې د فيروزشاه د بل لمسي نصرت شاه په نامه د پاچهۍ نغاره وډنگوله . درې کاله پر له پوري د دهلي او فيروز آباد د پاچهانو ترمنځ اخ و ډب جاري ؤ ، د تغلقشاهي دربار امراء څوك د يوه او څوك د بل پر خوا ؤ ، مگر يو اقبال خان د سيری (٢) په کلا کښې (چه د دغه وختنی دهلي د کلا شرق شمال ته څوارا نږدې پرته وه) خپلواك ورته ناست او په يوه ډله کښې شامل نه ؤ

د ٨٠٠هـ کال د شوال په مياشت چه اقبال خان او مقرب خان سره خوابدي شول نو اقبال خان له فيروز آباده څخه (نصرت شاه) د سيری کلا ته راوغوښت

یوه هفته لا نه وه تیره شوې چه اقبال خان او نصرت شاه هم نه سره و با مل ،
نصرت شاه له خپلو لښکرو سره له سیرۍ راووت ' اقبال خان د شاله لوري برید
ور وکړ ' دېر شاهي سامان او پیلان یې په لاس ور غلل ، او هسې یې وڅپه
چه خپل وزیر تاتار خان ( د پاني پت حاکم ) ته ئي پناه ور وړه او په دې توګه
یې د مشرو رور ( سارنګ خان ) دماتې کسات له نصرت شاه څخه و کیښ .
اقبال خان د نصرت شاه تر تیښتې وروسته ( فیروز آباد ) هم پسې و نیوا و تر پخوا
ډېر خپلواک او واکمن شو ' د فیروز آباد تر نیولو وروسته اقبال خان
دامیر لامرا مقرب خان ( چه په ژر ډهلي کښې یې د سلطان محمود ملاتړ ای وه )
جنګ ته خلاص شو . درې میاشتې سره وجنګیدل پای ته ئي سلطان محمود
او نورو امراو د ( جهان نما ) (۱) په ماڼۍ کښې روغه سره وکړه مګر داروغه
دیره نه وه او لنږې ورځې تیرې نه شوې چه اقبال خان د سیرۍ له قلا څخه
ناڅاپه د مقرب خان پر کور برید وکړ او دې ئي وواژه ' د مقرب خان ترایسته
کولو وروسته د ډهلي د حکومت ټول واك اقبال خان ته پاته شو او د سلطان
ناصرالدین محمود د پاچهۍ تش نوم ؤ (۲)

## د پانۍ پت جنګ

په ۸۰۰ ه کال چه اقبال خان د ډهلي د حکومت واك ومونده د ډهلي ښار ئې
خپلو په زړه پورو امراوته وسپاره او پخپله ئي د پاني پت د حاکم تاتار خان
څخه چه د سلطان محمود حریف ( نصرت شاه ) هم پناور ورکړی وه ' د سارنګ خان

تاتارخان چه دا واروېدله خپل سل پیلان، څه لښکرې او اسپابو نه ئي دپاني پټ په کلا کښې پرېښوول او له بلې لارې ئې دډهلي پرښار بريد وکړ. اقبال خان تر درو ورځو کلابندۍ وروسته دپاني پټ ښار ونيو، دتاتار خان مالونه ئي تالا کړل او بريالی ډهلي ته راستون شو. تاتار خان چه ډهلی کلابند کړی ؤ داقبال خان په را ستېندلو گجرات ته وتښتېدا وخپل پلار ظفر خان ته ئي (چه د گجرات واکمن ؤ) پناه يووړه نصرت شاه (دو آبي) ته وتښتيد (۱)

اقبال خان چه تاتار خان او نصرت شاه هم له منځه وايستل يه خورا پوره زړه لي دډهلي دحکومت واگي (دسلطان محمود په نش نامه) په لاس کښې واخيستلې نصیر الملك ته ئي دعادل خان لقب ور کړاو د(سامانې) او (دوآبي) حکومت ئي ور وسپاره (۲)

## دگوډ تيمور يرغل

د(۸۰۱هـ) کال دلمړی خوريراوه ويشتمه د گوډ تيمور بولك او دوه ويشت زره لښکر و دډهلي دښار په څنگ کښې واړول او اقبال خان کلابند شو ددوهمې خورپه دوهمه ورځ چه گوډ تيموز د ۷۰۰ سپرو سره دجهان نما مانۍ په سيل ترجمنا ور پورې وتلی ؤ اقبال خان د ٤۰۰۰ سپرو او ۵۰۰۰ پلیو سره (۳) بريد پرو کړ، گوډ تيمور ترجمنا را پوريووت دمغلو دقراول لښکر او اقبال خان ترمنځ جنگ ونښت دډهلي يودروند امير (محمد سيف) چه دډهلي د لښکرو دقراول مشر ؤ؛ مغلو ونيو.

داقبال خان فوځونه بيرته په کلا ننوتل ددوهمې خورپه اومه ورځ چه مغل جنگ ته وتل؛ دمخه ئي دهند بولك تنه بنديان (چه ور سره ؤ) تر تيغ و کښل

ډهلي را ووتل او په میدان کښې دواړه فوځونه سره ودرېدل اقبال خان او سلطان محمود د لښکرو په منځ کښې ولاړوو، د کینې لاس فوځ ئې د طغای خان او میرعلی او د ښی لاس فوځ ئې د ملك معین الدین د ملك هالی ترمشرتابه لاندې ؤ (۱) کله چې جنګ ونښت ډېر میړونه سره ومړل، پای ته د هندوستان لښکرو ماتې وکړه د اقبال خان دوه میړنی زامن سیف الدین او خدا داد او ډېر پیلان او د جنګ سامان د مغلو په لاس کښېوتل پخپله اقبال خان او سلطان محمود په تېښته ووتل د ښې سلطان محمود (ګجرات) او اقبال خان (برن) ته مخ ونیو (۲) کوډ تیمور چه ډهلی ته ننووت څوك چه په مخه ورغلل هغه ئې ترتیغ واېستل بیا یې په (میرتهه) او (هردوار) کښې قتل عام وکړ.

## د ډهلي نیول

د دغه کال د رجب په میاشت کښې چه کوډ تیمور د خپلو لښکرو سره د (سمرقند) په نیت د هند تر تلك (سرحد) ووت؛ نصرت شاه چه په (دوآبه) کښې د اقبال خان له بیرې پټ ؤ؛ ډهلي ته راغی او د پاچهۍ نغاره ئې ووهله، سمدستي ئې خپلې لښکرې د (شهاب خان) ترمشرتابه لاندې د اقبال خان نیولو له (برن) ته ولیږلې اقبال خان دا خایه پر نصرت شاهي لښکرو بریدو کړ.

شهاب خان ئې وواژه، لښکر ئې سره کنډو کپر کړ. د ډهلي لښکرو ماتې وکړه اقبال خان پر ډهلي پسې راغی، نصرت شاه ئې تاب را نه وړ، میوات ته وتښتېد ډهلي او فیروز آباد د اقبال خان په لاس کښېوتل (دوآبه) ئې پسې ونیو له او په دې صورت یې بیا په ډهلي کښې د ۸۰۲ ه کال د صفري په میاشت (۳) د خپل

شاه اقبال خان نصرت مند     جالس تخت شد بعزم شهی
سال تاریخ گفت هاتف غیب     «محفل آرای حکم بزم شهی» (۱)

## د ((بیانې)) برید

د ۸۰۳ هـ کال (۲) په دریمه خور اقبال خان بیانې ته لښکری ولیږ دولې، په جنګ کښې یې پر شمس خان اوحدی چه له هغه څخه د ګوډ تیمور تر وتلو وروسته ئې پر «بیانه» غیږ را ګرزولې وه، بری وموند، دوه پیلان او (بیانه) ئې څنې ونیوله، تردغی سوبې وروسته یې پر «کهینر» (۳) بریدو کړ دغه سیمې واکمن (نرسنګ) بې جنګه ورته ایل شو، ډیر پیشکشو نه یې وړاندې کړل او اقبال خان بریالی ډهلې ته راستون شو.

## د جونپور لمړی برید

اقبال خان چه د بیانې له سوبې ډهلې ته راستون شو د ۸۰۳ هـ کال په دریمه خور ئې دسلطان الشرق خواجه جهان (۸۰۲-۸۰٦) پر متبنی سلطان مبارک شاه شرقی (۸۰۲-۸۰٤) (چه په دغو وختو کښې د جونپور پر تخت کښېنستلی ؤ) د برید په نیامت لښکری لمرختیز پلوته وخوځولې د (بیتالې) دسیمې زمیندارانو چه د ګنګاه ژی ورته نیولی وه، مات شو او د اقبال خان لښکری دقنوج خواته یسې ورتیری شوې.

مبارک شاه له جونپوره لښکری راوایستلې مګر څکه چه د ګنګا سین د پوری وتلو نه ؤ دواړې لښکری دوې میاشتې د ګنګا پر دوو څنډو سره پرتې وې کښې

## دجونپور دوهم برید

په ۸۰٤ هـ کال سلطان ناصرالدین محمود (چه د ګوډ تیمور په یرغل کښې ګجرات ته تښتیدلی او بیا «مالوې» ته تللی ؤ) دهلی ته راغی او اقبال خان بیاد پاچهی په نامه له ځانه سره وساته مګر واك ټول د اقبال خان په لاس کښې ؤ په همدغه کال چه دجونپور پاچا مبارك شاه ومړ او ابراهیم زوی ئې په ځای کښېنوست اقبال خان بیا لښکری دجونپور لور ته وروړولی او سلطان محمود ئې هم له ځانه سره بوت مګر دا پلا یې بیا لاس پر بر نه شو او له قنوجه څخه دهلی ته راستون شو ۰

## دسلطان محمود تېښته

سلطان ناصرالدین محمود چه د اقبال خان په دربار کښې د پاچهی بې نښ نامه نور هیڅ واك نه درلود مخکه ژر پر تنګ شوه او دښکار په پلمه ئې د اقبال خان حریف دجونپور پاچا (سلطان ابراهیم شرقی) ته پناه وروړه مګر سلطان ابراهیم چه د اقبال خان دجنګ واك په ځان کښې نه لید ده پناه ئې ور نه منلای شوای سلطان محمود چه د سلطان ابراهیم څخه نا هیلی شو قنوج ته ولاړ قنوج ئې د ابراهیم له نایب (امیرزادهٔ هروی) څخه ونیو او هلته کښېنوست .

## دګوالیار یرغل

په ۸۰۵ هـ کال د دریمی خور په میاشت کښې اقبال خان پر ګوالیار لښکری وروړولی (برم دیو) د ګوالیار واکمن قلا بند شو. قلا ډیره ټینګه وه اقبال خان شا وخوا لټی تالا کړی او دهلی ته خنی راستون شو لږ وخت نه ؤ تیر شوی چه اقبال خان بیا پر (ګوالیار) بریدو کړ دا پلا (برم دیو) په (دهولپور) کښې مخه ورته ونیوله په لمړی حمله کښې ئې ماتې وکړه او بیا د (دهولپور) په کلا [illegible] ګوالیار ته [illegible] اقبال خان هم [illegible] برم دیو په

## داتاوې يرغل

په ۸۰۷ هـ كال اقبال خان پر (اتاوه) لښكرې ورو ستلې ځكه چه هلته ئې مقابلې ته د(راى سمير) (راى جهاله)او گواليار لښكرې راغونډې شوې وې څلور مياشتې پر له پسې جنګونه وشول پاى ته ئې د يرى روپۍ د جنګ تاوان ځنى واخيست د كال قلنګ چه د گواليار راجا به ٤ پيلان او څه روپۍ دهلي پاچا ته ورليږلې په ومنلې (۱) اوقنوج ته ځنى ولاړ .

## د ساماني يرغل

د۸۰۷ هـ كال په پاى كښې (۲) چه اقبال خان سلطان محمود په قنوج كښې كلا بند كړ ځكه چه كلا ډيره ټينګه وه د ۸۰۸ هـ كال د محرمې په مياشت يې ساماني (سماني) ته مخ ځنى ونيو دساماني حاكم بهرام خان چه دسارنګ خان تور يالى سره دروه كړې وه له هغې بيرې د(هور) با(دهنپور) غروته وتښتيد اقباخان چه دهغوغرو دروته پسې ورغى دسيدجلال بخارى(رح) لمسى يې روغه سره كړه.

## د ملتان يرغل

په سامانه كښې چه داقبال خان او بهرام خان روغه سره و شوه نو اقبال خپلې لښكرې دديپالپور اوملتان لورته دخضرخان (چه بيا وروسته ددهلي پاچاشو) مقابلې لره وخوځولې دساماني حاكم بهرام خان چه شل زره سپاره يې درلودل هم ورسره مل شو .

خضرخان ئې دپنجاب ملتان اوديپالپورد لښكروسره جنګ ته راووت لښكرې سره مامخ شوې او د ۸۰۸هـ كال دد ريمې خورېر ۱۹ يو كلك جنګ و نښت ددهلي

دملتان ته ستو بو زرو سته به ئې په د هلي کښې خطبه او سکه پخپل نامه کړله ګورته يو وړه کاري ئې خضر خان دفتح يو رښار ته وليږ له چه ملته ئې خپر انده کړي او ته ئې دملتان په شاخوا کښې ښخ کړ ئو يادي ئو که داقبال خا ن دخپلواك حکومت د بوه چه په دهلي کښې انه کا له باليده مړ شو ه مفتا ح التواريخ دده دمړينې نېټه داسې ضبط کړيده

چون شه اقبال خان فرمانده کـ وزستان داور اقليم گير وبرورش فرماى خلق
يافت جادرسايه طوبى وقصر حور عين سالش از روى بکاشد آه و او ېلاى خاق(١)
يعنى ٨٠٨ھ

## عادل خان لودى

عادل خان دسارنګ خان او اقبال خان کشر ورور دى په ٨٩٦ھ کال چه سارنګ خان تورپالى دلاهور سيمه له (شيخا ګکهر ) څخه ونيوله عادل خان ئې له خپلې خوا دلاهور حاکم وټاکه (٢) عبدالباقى سهاوندى ليکي چه دده نوم ملك کندهو يا کند ومو ؤ سارنګ خان چه لاهور ونيو او ده ته يې سپاره دعادل خان لقب ئې ورکړ (٣) د ٨٠١ ھ کال په لمړ بو ورځو کښې چه د ګود تيمور لښکري د پيښور له اورې پر لاهور راغلې عادل خان د بوه واړه لښکر سره د ٩٢ زرو مغلو مخه ونيوه له جنګ و ښت که څه هم په دغه جنګ کښې عادل خان بريالى نشو خو هسې مقابلې ئې وکړ ى چه دوست او دښمن ئې ميړانه و منله ( ٤ ) چه ګود تيمور له هند ووت او نصرت شاه دميوات له ځنګلو څخه دهلي نيو لو ته ملا وتړله عادل خان دبوه واړه لښکر او ځلورو پيلانو سره ورسره مل شو مګر دنصرت شاه زړه په تړلى نه ؤ . دى ئې بندى اوما لو نه ئې تالا کړل (٥)

# ملك خضر لودی

کوډ تیمور چه په ۸۰۰ ﻫ کال دهندوستان دنیولو له پاره په کابل کښی لښکری سره سمولې له کیسی غره څخه ئې ملك خضر لودی، ملك بهاءالدین جلوانی ملك یوسف سروانی، او ملك حبیب نیازی له دو لسو زرو پښتنو سره وروغوښتل، وئی نازول آسونه، خلاتونه زرین موټی توري او کنا ري (خنجرونه) بې وروښندل دهندوستان په برید کښی نوموړی ملکان او دولس زره پښتانه د کوډ تیمور سره مله شول (١) کله چه کوډ تیمور د ۸۰۱ ﻫ کال دځو همی خور پراوومه ډهلی و نیوا و دډهلی تروړانولو وروسته یې پرمیرټهه او دسوالك په غرو بریدو کړېدغو بریدو نو کښی ملك خضرخان لودی او ملك بهاءالدین جلوانی شهیدان شول تیمور یې اولادونه ونازول په دوآبه کښی ئې خضرآباد سادهوره او په پنجاب کښی ئې سیالکوټ او څو نور ځایونه په جاگیر کښی ورکړل (٢) دتاریخ افاغنه مؤلف شهاب الدین ثاقب لیکی چه زه دغه ملك بهاءالدین جلوانی له اولادې څخه یم او زمونږ کورنی له ډیرو وختو څخه په هند کښی پاته ده (٣)

## سلطان دولت لودی (٤)

دولت خان دمحمود خان یوسف خېل (٥) لودی زوی او دسارنگ خان اوملـو اقبال خان وراره (٦) دی په ۷۵۹ ﻫ کال زوکړی دی (٧) په ۸۰۸ ﻫ کال چه اقبال خان لودی د خضرخان سره په جنگ کښی ومړ

(١) مخزن افغانی ۷۷ مخ

(٢) مخزن افغانی ۷۸ مخ (٣) تاریخ افاغنه ٤٠ مخ

(٤) [illegible]

د ډهلي ستر و اميرانو چه دولت خان او اختيارخان کشر ورور ئې يکښې وتلې شخصيتونه ؤ غوندې وکړه په سلايې سلطان ناصرالدين محمود له قنوج څخه ديپاچهۍ له پاره راوغوښت او په ډهلي کښې يې پاچا کړ.

## د ساماني جنګ

سلطان محمود چه د ډهلي پر تخت کښېنوست دولت لودي ته ئې د(دوآبې) حکومت ورکړ او د بيرم خان تر تنې اره ( چه تر بهرام خان وروسته يې « سامانه » نيولي وه و ګماره د ٨١٠ ه کال درجب په مياشت ساماني ته دوه ګروه نژدې لښکري سره مخامخ شوي جنګ و نښت بيرم خان ماتې وکړه وتښتېده او د سر هند په کلا کښې کلا بند شو مګر ژر ئې امان وغوښت او له دولت خان سره ئې وليدل خودې سوبې (فتح) ډير دوام ونه کاوژر خضرخان د ملتان او ديپالپور له لښکرو سره پروړغي اوهغه سيمې ئې د ډهلي د لښکرو له لاسه وکښلې دولت خان ډهلي ته څخنې راغی او بيرم خان دخضر خان مل شو(١)

## د سلطان محمود حال

سلطان محمود د ډهلي په پاچهۍ کښې دشطرنج تر پاچا زيات واك نه درلود دغه دولت خان لودي ؤ چه تراتو، نهو کلونو ورئې له يوي خوا د ملتان او پنجاب د حاکم (خضرخان) او له بلې خوا دجونپور دپاچا (ابراهيم شاه) کاميابي مقابلې کولي(٢) او ډهلي ئې له بيا بيا بريدونو څخه وژغوره.

## د دولت خان پاچهي

ادریس اومبارزخان هم له خضرخانه ورته‌راواوښتل‌سلطان دولت‌خان دخپل جلوس په‌میاشت د( کم‌پینتر) خواته لښکري وخوځواې دهغه ځا ی وا کمن اوزمینداران ورته ابل شول‌چه د(بیټالی) سیمی‌ته راغی‌مهابت‌خان بداېوانی هم‌ورته راغی پدغه وخت کښې ابراهیم‌شاه شرقی‌دمحمود‌خان‌زوی‌قادرخان په(کالپی) کښې کلابند کړ ـ ځکه چه دده‌په‌لښکرو کښې دشرقی لښکرو دمقابلی توان نه‌ؤ نودهلی‌ته‌راستون شو .

## دخضرخان‌یرغل

د۸۱٦ کال دلوی اختر په‌میاشت خضرخان له‌شپیتو زرو لښکرو سره پردهلی بریدوکړ سلطان دولت خان څلورمیاشتی د(سیری) په کلا کښې کلابند شو‌پای‌ته چه‌له هرې خواناامېنده‌شو اود کلا خلق له لوږی په کو کار و شول د ۷۱۸ د لمر ی خو ر پر پنځلسمه لـه کلا را و وت او خضرخان‌ته‌ئې ځان وسپاره(۱) خضرخان‌دی دفیروز آباد‌په‌قلا کښې بندی کړ‌هلته‌دهمدغه کال په‌دریمه خور کښې د۸۵ کالو په‌عمر‌ؤمړاو پـه فیروزآباد کښې ښخ کړشو پاچهی‌ئې یو کال‌اودرې میاشتی وه (۲) مفتاح التواریخ دده دمړینی نېټه داسې ضبط کړېده :

ره چودولت‌خان بسوی جنت المـاوی کـرد
عالمی ازدردوغم صدناله را بـر چرخ بـرد
سربجیب فکر بردم تا که تـاریخی بـه نظم
گفت ها تف سال اویکصاحب دولت بمرد (۳)

## اختیار خان لودی

سلطان محمود له قنوج څه را غونبت دی هم په هغه مرکه کښې ګډ او ستړ غږی ؤ ګـله چه سلطان محمود په ٨٠٨ کښې پاچا شو اختیار خان ته ئې د فیروز آباد حکومت ورکړ (١) په ٨١٤ هـ کال چه سلطان محمود د ملتان دوا کمن خضر خان له لاسه د (سیری) په کلا کښې کلابند شو، اختیار خان د سلطان محمود په تندی کښې زړ د بخت نخښې نه لیدلې نو د خضر خان مل شو او خضر خان ته ئې د فیروز آباد په کلا کښې (چه د ده تر واك لاندی وه) ځای ورکړ په ٨١٧ هـ کال چه خضر خان دهلی ونیو اختیار خان ته ئې د دوآبې (چه پخوا لا پخپله اختیار خان نیولی وه) واك ورسپاره.

د ٨٢١ هـ کال د میاني په میاشت چه خضر خان له دهلی څخه (بداؤن) ته و خوځید (بیتالی) ته نژدې چه د ګنګا تر سین وراپوری ؤت مهابت خان چه (د سلطان محمود له امراؤ څخه ؤ) د (بداؤن) په کلا کښې کلابند شو دا کلابندی شپږ میاشتې اوږده شوه پدغو وختو کښې چه خضر خان د خپلو لښکر وسره د [بداؤن] د ښار په شاوخوا کښې اړولی ؤ خبر ور ته ورغی چه: « اختیار خان لودی، قوام خان او څه نورو امراؤ ستا پر خلاف تړون سره کړید ی » خضر خان سمد ستي کلابندی پریښووه دهلی ته ئې مخ ونیراو په لاره کښې ئې د ٨٢٢ هـ کال د دریمې خور پـــر انـمــه (٢) پاشلمه (٣) اختیار خان لودی او نورو رسره مله امراء د ګنګا د سین پر غاړه په یوه مجلس کښې ووژل (٤)

## اسدخان لودی

اسد خان لودی د دهلی د پاچا [ ناصر الدین سلطان محمود ] له امراؤ څخه ؤ

وخوځيد پهلاره کښې ئې پرسنبهل بريد وکړ اسدخان چه ئې د مقابلې توان په ځان کښې نه ليد نردو ورځو کلابندۍ وروسته ئې ورپرېښود او ډهلۍ ته ئې تريلل(١) سلطان محمود چه خبرشو د٨١٠هـ کال دمياشت کښې ئې لښکرې [سنبهل] ته راوبهولی [سنبهل] ئې د سلطان ابراهيم د حاکم له لاسه وکيښ او بيرته ئې اودی اسد خان ته وسپاره (٢)

## × ملك الهداد لودی

په ٨٣٦هـ کال چه د خضرخان زوی سلطان مبارك شاه له ډهلۍ څخه پر [ميوات] لښکرې ورو بهولی دلاهور اوجالندهر حکومت ئې هم له نصرت خانه څخه واخيست او [ملك الهداد لودی] ته ئې وسپاره(٣) ملك الهداد په لاهور کښې کښېنوست اوجالندهر لا د نصرت خان پلاس کښې ؤ چه مبارکشاه پا چا د بتهر هندی(٤) له کلا څخه چه د شيخا ګکهر کشرورور [ياغی جسرت ګکهر] دشاهی فوځو له بيرې په اندرتلیؤ د ميوات خوا ته له لښکر وسره مخ و نيو [جسرت] له کلا راووت اوجالندهر ئې له نصرت خانه څخه و نيوا وله بوه درانه لښکر سره ئې لاهور ته مخه وکړه پرملك الهداد لودی ئې هم بری وموند. ملك الهداد چه ډهلۍ ته راغی دمبارکشاه له خوا د[سنبهل]واك وروسپاره شو .

د٨٣٧هـ کال درجب په مياشت چه مبارکشاه دملك سرور الملك له خوا شهيداو واره ئې[محمدشاه] پرځای کښېنول شو ملك الهداد د سنبهل او ددهار حاکم ؤ(٥) دی[ملك الهداد] د بدايوان حاکم ملك چمن(٦) او ګجراتی اميرعلی ورته بورته شول دمحمدشاه وزير(ملك سرور الملك ) د کمال الملك

ئې مشرتابه لاندې یو درونه فوځ د ملک الهداد جنګ ته (چې په دهار کښې ؤ)
وګماره او خپل زوی، خان اعظم سیدخان او سدارن ئې هم ورسره کړل دا فوځ
چې له ډهلي څخه (برن) ته ورسید د لښکر مشر کمال الملک (چې د مبارک شاه
دوژلو له امله، ملک سرورا لملک نه خوږېدین پروت ؤ او موقع ئې پلټله) د سرورالملک
د زوی او سدارن دوژلو په فکر کښې شو. ملک الهداد ته چې د کمال الملک فکر
ښکاره شوی ؤ، له ځایه و نه خوځېد او کرار په (دهار) کښې ناست ؤ. مګر سرورالملک
چې د کمال الملک په دغه تکل (عزم) خبر شو خپل خاص مریی
(ملک هښیار) ئې له یوه غښتلي فوځ سره په ښکاره د کمال الملک مرستې او
په ده د خپل زوی او سدارن ساتنې له ورولېږه په دغه ترڅ کښې د بداون حاکم
(ملک چمن) هم «دهار» ته ورغی ملک هښیار سدارن او د سرور الملک زوی
د شپې له مخې ډهلي ته وغورځېدل. کمال الملک چې خپل چاپیر له غلیمانو
تش ولید ملک الهداد لودي، ملک چمن او نور امیران ئې پر ځان راغونډ کړل
او د روژې په اوبتری ورځ ئې له یوه درانه لښکر سره ډهلي ته مخ و نیو
سرور الملک د ډهلي د (سیری) بې کلا کښې کلابند شو. کلابندي درې میاشتې
پسې اوږده شوه و وخ په ورځ د کمال الملک ملګري ډېرېدل پای ته محمد شاه
پاچا (چې د سرور الملک سره کلابند ؤ) پخپله پر سرور الملک را وغورځېد
د ۸۳۸ھ کال د محرمې پر اتمه ئې سرور الملک وواژه او کمال الملک ته ئې
د (سیری) د کلا د بداون) ورور پرانیست د کمال الملک لښکري په کلا ور

# دریا خان لودی

دملك الهداد لودی ورور (بهادرخان) ته سلطان محمد شاه په ۸۳۸ ه کال د[دریاخانی] لقب ورکړ. دسلطان محمدشاه دزوی (سلطان علاءالدین عالمشاه) په پاچهۍ کښې دجمنادسین دخواجه خضر ترګدره پوری چه (دهلی ته خورا نژدی دی) دسنبهل تول والك ددریاخان (۱) (بهادرخان) ۲ پلاس کښې ؤ.

بیا دشرقی سلطان محمود مل شو په ۸۵٦ ه کال چه شرقی سلطان محمود پر دهلی یرغل وکاند دریاخان هم دخپلو لښکرو سره ورسره ؤ خو دقومیت په حکم ئې په پټه دسلطان بهلول لودیٔ سره روغه وکړه او د شرقی سلطان محمود دماتی سبب شو په ۸٦۱ ه کال چه سلطان بهلول دمبار کشاهی سیمو په دوره وؤت (سنبهل) ته چه ورسید دریاخان ئې اطاعت ومانه او وه پیلان ئې سلطان بهلول ته وړاندې کړل سلطان بیرته پرخپل جاګیر پرینبود اوله دغه وخته (دریاخان) دسلطان بهلول په امر اؤ کښې وشمېرل شو.

## تاتار خان لودی

تاتارخان دنوریالی سارنګ خان زوی ددهلی ددربار له لویو امراو څخه ؤ د ۸۱۰ ه کال ددریمې خوریه میاشتچه دجونپور پاچا (سلطان ابراهیم شرقی) له قنوجه څخه ددهلی دنیولو په نیامت لښکری وخوځولی نصرت خان دی (تاتارخان) اودده دا کا (ملو اقبال خان) مریی (ملک خان یا ملک موهبا) دسلطان ابراهیم خواته ورواوښتل سلطان ابراهیم ئې په ورتللو خورا خوشاله اوداده شو او (سنبهل) اورته ئې مخه وکړه دناصرالدین سلطان محمود له خوا دسنبهل

تیر نه شواو جونپور ته ئی لښکری ستنې کړی(۱) ددهلی پاچا(سلطان محمود) چه خبر شو، د ۸۱۰ هـ کال دمیانی په میاشت ئې لښکری پسی راوا یستلې لمړی ئې (برن) دسلطان ابراهیم دحاکم (ملک مرحبا) لهلاسه و کیښ او هغه ئی دواړه بیا نو (سنبهل) ته پسی ور تیر شو تاتارخان چه ئې په ځان کښی دجنګ توان نه لید، بې جنګه ئې (سنبهل) بری پښود او قنوج ته ئی مخ و نیو(۲)

# دشاهو خیلو پاچهی

(۸۵۰ یا ۸۵۵ — ۹۳۲ هـ)

دشاهو خیلو لو دیو د پاچهی لو اسلطان بهلول لودی په شمالی هندوستان کښې په ۸۵۰ یا ۸۵۵ هـ کال هسکه کړه او بیر ته ئې دلودیو د یوی درنې پاچهی تیږه کښیښوو له پدې کورنی کښې دا [۷] تنه پاچهی ته رسیدلی دی او دتو لو د پاچهی موده (۸۲، یا (۷۷) کاله ده:

۱ — سلطان بهلول (۸۵۰ — یا ۸۵۵ — ۸۹۴) په یوه قول ٤٤ کال او په بل قول ۳۸ — کال اته میاشتې او اته ورځی پاچهی کړیده، دده پاچهی په دهلی، پانی پت دیپالپور، لاهور، هانسی، حصار، جونپور، بهرایچ، تا ګوراو دملتان تر څنډو پوری وه.

۲ - دسلطان بهلول زوی سلطان سکندر (۸۹٤-۹۲۳) ۲۹ کاله پاچهی کړیده دده دیناو(عدل) سیاست او انضباط خبری مشهوری دی، ده دیلار نیولی سیمی په خورا ښه توګه وساتلې د (بهار) او (تیرهت) سیمی اوڅه بنګال ئې هم د دهلی په پاچهی را کښې یوست، دملتان په یوه برخه (شور) کښې هم دده په نامه

٣ــ دسلطان سکندر زوی سلطان ابراهیم (٩٢٣ــ٩٣٢)٩ کاله پاچهی کړیده' دده په وختو کښې با برمغل پر دهلی بریدو کړاو دلودیو پاچهی ئې ړنګه کړه'

٤ــ باربك شاه د سلطان بهلول زوی دی په ٨٨٤ه کال چه سلطان بهلول جونپورو نیو' ده ( باربك شاه ) نه ئې شرقی تخت وسپاره' دسلطان سکندر په وختو کښې هم تر ٨٩٨ ه کاله پوری پر شرقی تخت ناست ؤ .

٥ــ سلطان جلال الدین دسلطان سکندر زوی دی چه دپلار تر مړینې وروسته د جونپور تخت چه بهار 'جونپور اولیز بنګال یې تر حکم لاندې ؤ دشرقی پاچهی په نامه وروسپارل شو .

٦ــ سلطان علاءالدین (عالم شاه ) د سلطان بهلول زوی دی په ٩٣٠ ه کال د ګجرات پاچا دوهم مظفرشاه پرخپل ورار سلطان ابراهیم راپورته کړاو د خپلې کورنۍ پاچهی ئې دمغلو په ګټه ړنګه کړه

٧ــ سلطان محمود دسلطان سکندر زوی دی چه دخپل ورور سلطان ابراهیم تر وژلو وروسته پښتنو امیرانو په ( پټنه ) کښې پاچا کړاوه بابرمغل جنګ ته ئې راوبوست .

## سلطان شه ((اسلام خان لودی))

داسلام خان پلار (بهرام خان) چه داحمد' زوی دشاهو خان (١) لمسی دی له کیسی غره څخه ملتان ته ولاړ اوهلته دملتان دواکمن (ملك مروان دولت) سره نوکر شو . دی چه ومړ پنځه زامن ئې پاته شول :

ملك کالاخان 'ملك سلطان شه 'ملك فیروز خان' ملك محمد' اوملك خواجه' دملتان واك چه دسلطان فیروز شاه (٧٥٢ــ٧٩٠) له خوا په ٧٧٨ه کال دملك مروان

## دا سلام خان لقب

په ۸۰۸ هـ کال چه ملو اقبال خان اودی پر دیپالپور او ملتان برید وکړ، د دیپالپور او ملتان واکمن [خضر خان] ئې مخه ونیوله سلطان شه هم ورسره مل ؤ د دریمې خور پر تو لسمه چه جنګ و نښت ملو اقبال خان لودی (چه د خضر خان خور اغیښتلی او تور یالی حریف ؤ) د سلطان شه له لاسه وواژه شو ځکه نو خضر خان د پر و ناز او ه د(اسلام خان) لقب ئې ور کړ (۱) او له خوار ور تیرو امراؤ څخه ئې شو .

## د سر هند حکومت

په ۸۱۷هـ کال چه خضر خان دهلی له دولت خان لودی څخه و نیو او د دهلی پنجاب دیپالپور او ملتان پاچا شو؛ د ۸۲۱ هـ کال درجب په میاشت (۲) ئې خپل توریالی پښتون امیر (سلطان شه اسلام خان) د سرهند اودو آبی حاکم وټاکه .

## د سارنګ خان جنګ

په ۸۲۲ هـ کال (ماچی واړې) ته نژدې د بجواړی په غرو کښې یو سړی د سارنګ خان لودی (۳) په نامه خضر خان ته پور ته شو ورځ په ورځ خلق پر را غونډیدل، خضر خان ئې ځپلو لره د سرهند اودو آبی حاکم سلطان شه اسلام خان وګماره، نش په نامه سارنګ خان چه داو اروید له جنګ لره ئې را ووت او د سرهند په ښاو خوا کښې لښکری سره

( سلطان شه اسلام خان ) هم سم په پسې ؤ' تش په نامه سارنك خان دغرو په سمخو ننو وت او اسلام خان د جمو دغرو او لكهي جنگل ترسوبې وروسته سرهند ته راستون شو (١)

## دجسرت گگهر جنگونه

په ٨٢٤هـ كال چه خضرخان دډهلي باچا مړاوپرځاى ئې زوى (مبارك شاه) كښينوست؛ (جسرت ككهر) دكشمير پروا كمن (شاه علي مردان) برى ومو ند اوډيرى ولجې ئې پهلاس ورغلې' نوئې مخ دډهلي ته راو گرزاوه 'دستلج ترسين راپورې ؤت' په سرهند كښې ئې د(سلطان شه اسلام خان) سره جنگونه وكړل' مبارك شاه پخپله دډهلي دلښكرو سره دسلطان شه مرستې ته ورغى ترڅلو ينبت ورځوپرله پسې جنگو وروسته (جسرت) دجموغرو ته وتښتيد(٢)

په ٨٢٥هـ كال چه جسرت پرلاهور بيا بريدو كړ دډهلي لښكرى دملك سكندر «تحفه» ترمشر تابه لاندې پسې راووتې' سلطان شه هم له خپلو ښبتني فوځو سره په سرهند كښېورسره مل شو' دابلا بيا جسرت غروته ځنې وخوت(٣) ٨٣١هـ كال دميانى په مياشت بيا جسرت گگهرد( كلان نور) ښار كلا بند كړ' دلاهور حاكم ملك سنكدر «تحفه» ئې مقابلې ته ور ووت' خوپه ماتې لاهور ته ستون شو اوجسرت گگهر (جا لند هر) تو لې سيمې تالا كړى' مبارك شاه چه دملك سكندر په ماتې خبرشو' سلطان شه ( اسلام خان ) ئې لهسرهنده او(ځيرك خان)ئې له(سامانې)څخه دملك سكند رمرستې لره و گمارل مگر ملك سكندر [illegible]

# د کابلي شیخ علي جنګونه

په ۸۳۳ﻫ کال د (پتهر) هندي، په قلا کښې «پولاد» نامي یاغي شو او مبارکشاهي لښکر ئې ماتې کړی، نو ځکه سلطان مبارکشاه اسلام خان، کالي خان او راي فیرو ز د پولاد جنګ له وګمارل (پولاد) شپږ میاشتې کلا بندي وګاللہ آخر چه له هرې خوا ناامیده شو؛ نو امیر شیخ علي ئې چه د ګورګاني شاهرخ (۸۰۷—۸۵۰) له خوا د کابل واکمن ؤ پر هند د برغل او خپلې مرستې له پاره راوباله، ځکه چه سلطان مبارکشاه د شاهرخ له نامه څخه په ډهلي کښې خطبه اړولې وه؛ نو ګورګاني حکومت د مخه لا ورته خوړین ؤ.

دا پلمه چه ئې وموندله سمدستي شیخ علي په ۸۳۴ﻫ کال پر هندوستان برغل وکړ، پولاد ئې له قلابندۍ خلاص کړ تر دیپالپوره پورې ئې څوك مخې ته ونه دریدلای شوای او ټول ملکونه ئې وران او تالا کړل، له دیپالپوره چه ئې ملتان ته مخ ونیو دملتان په لس کروهي کښې د جیلم د سین پر غاړه سلطان شه اسلام خان مخه ورته ونیوله، کلك جنګ وشو، د پرپښتانه میړونه ومړل او مغلو بري وموند (۱) سلطان شه لودی (خیر آباد) ته چه د ملتان په درې کروهي کښې پروت ؤ تر شاشو دروژې پر ځلورمه شیخعلي خیر آباد ته بسې ورغی هره روځ په جنګ کیده مګر سوبه (فتح) هیڅ نه وه ځو مبارکشاه د ډهلي لښکرې پسې راوبهولي او شیخعلي په ماتې کابل ته تر پلل؛ د ډهلي حکومت چه د (شیخعلي مغل) له ناورینه خلاص شو؛ په ۸۳۵ﻫ کال ئې بیا اسلام خان لودی، ملك سرور او خیرك خان دپولاد ځپلو له دپتهر هندي خواته وګمارل (پولاد) بیا شیخعلي له کابله

پښتانه

راوغوښت په ۸۳۶ﻫ کال چه سلطان مبارکشاه بیخپله له ډهلي څخه ...

لهٔځانه سره بو تلل شیخعلی دسلطان مبارکشاه په تښه هڅه کابل ته تړيلل .

## نهنځنه

د۸۳۷ هـ کال درجب په میاشت کښې چه سلطان مبارکشاه وواژه شو او (محمدشاه) ورارهٔ ئې پرځای کښېنو ست سمد ستی دملك سرور کمال الملك او ملك الهداد لودی په شخړو کښېوت' د۸۳۸ هـ کال په لمړیو ورځو کښې چه ئې له هغو شخړو فراغت وموند نود لمړی خور په میاشت کښې ملتان ته وخوځید او مبار کپور ته نژدې ئې د ټو لو لښکرو مشران راوبلل (اسلام خان سلطا ن شه) چه پدغه پلا دربارته ورغی سلطان محمد شاه (۸۳۷-۸۴۹) ډیر ونازاوه (۱)

## مړينه

د۸۴۰ هـ کال په شاوخوا کښې دډهلی په دربار کښې دپښتنو سپین ږیری مشر (اسلام خان سلطان شا ه شاهوخیل لودی) په سرهند کښې ومړ' وائې پدغه وخت کښې دده خپلې پښتنې لښکری دولسوزروته رسیدې (۲) سلطان شا ه چه مړ کیدهٔ کهٔ څه هم ځلمی زامن یې درلودل خوکه چه دپښتنو دبرم او لوړ تیا هیلی ئې دخپل وراره (بهلول) په موټ سرته رسیدلی بللی؛ نوئې دلو دیو پښتنو دمشرتوب او سرهند او دیپالپور دچا ګیراو حکومت لپاره دی (بهلول) وتا که او قام ته ئې دده دمنلو او اطاعت وصیت وکړ .

# سلطان بهلول لودی

(۸۵۵-۸۹۴)

دشاهو خیل لودی (سلطان شاه اسلام خان) مشرورور (ملك کالا) دسلطان بهلول پلار دی' دسلطان بهلول مورهم شاهو خیله لودی اودملك کالا خپله



المتوكل على الرحمن سلطان بهلول اودی (۸۵۰-۸۹۴ھ)

وابسته شو! په دغه وخت کښې دملك ګـلا کوردملتان دښار په (کمانګران)
نومې برخه کښې ؤ او سلطان بهلول هلته په دغه توګه وزېږید. وائي په
۸۲۱ هـ کـال چه خضرخان دسر هند حکومت (سلطان شه) ته ور کړ نور تول
ورونه ورسره ولاړل يوازې دسلطان بهلول پلار (ملك کـالا) دملتان له واکمن
(نصیرخان) سره پاته شو (۱) ځکه چه دهغه له خواد (دوروالي) دسيمې حاکم ؤ
(ملك کـالا) دنیازیو پښتنو سره په یوه جنګ کښې ووژل شو او بې موره بلو
(بهلول) په وړ کینه کښې بې پلاره هم شو، اسلام خان سمدستي دپیاوړې مړه
وررر کوړمه سرهندته ور وغوښتله بلو (بهلول) دوه نور ورونه (محمد، فیروز)
(۲) او خور (۳) ئې دخواخوږۍ ا کا ترسیوري لاندې په خورا تاز او نواز لوئيدل.

## نازولی ((بلو)) (٤)

شوخ، ذکی او ربنو کی «بلو» که څه هم یرتولو ګرانؤ خو دمشر خان
(اسلام خان) زړه ورسره ډو بیده دستر ګو تور او دزړه سرئیؤ خپل زامن ئې
ترده یوری هیڅ نه بلل؛ دده هره شوخي او بې ادبي به ئې دده دراتلو نکې عروج
پا یلامه ګڼله؛ نکل کا چه یوه ورځ شوخ نازولی «بلو» له مو چڼو سره
دا کا پرمسئله (جای نماز) وخوت مسله او هغه بیادمشرخان مسله!! مینځو
اوساهو ګانو په یوه پلا پرراترپلل لته پیرجوړ شو ـ چا واهه چا تراته او خوله
ورته ښمیدل، اسلام خان چه دا لته پیرولید دوراره خوا ئې ونیوله دوی ئې
وترټل او وئې ویل «نازولی بلو کمکی دی که زما پر ککره پښه کښېږدي
پروانه لري» د کورمیرمنې او مینځې چه انتظار ئې درلود پر «بلو» به خان څه
ناوړین ورزوی دخان دې خبرې ته هیښې پاتې شوې، خان چه ددوی هیښتیا

ولیدله؛ وې فرمایل: «تاسی مه هېښېږئ زه‌یه دغه وراره کښی هغه‌رشی او ښېګڼی وینم چه دهغو لامله به‌یوه ورځ دی خورا نامتو میړه شی او زموږ د کهاله ستر ګه به پرې لوړی وی».

داسلام‌خان داخبره آخر وختله، کمکی بلو (بلوخان) شو ملك بهلول، ملك بهلول فتح‌خان اوورپسی دډهلی ټولواك «سلطا ن بهلول» شو چه په نیاو (عدل) تدبیر اورعیت پالنه کښیئې نوم یوور اوله اوڅارو (مشهوره) پاچهانو څخه و ګڼا نه‌شو.

# سوداګر بلوخان

کمکی بلو (بلوخان) شو دآسو سوداګری‌ته‌ئې لاس ورته کړ، له‌پښتونخوا به‌ئې آسان هندوستان‌ته ورو ستل اوخرڅول به‌ئې، په‌دې‌دنده کښی «بلوخان» ښې روپۍ وګټلې، سوداګری‌ئې پرمخ ولاړه دیر دېسیو، سړو، تودو، دبیلو ملکو دخلقو سره ناستی ولاړی اودسوداګری تجربو دبلوخان توره تدبیر اویوهه صیقل کړه، دتوری اوتدبیر کو کې ئې خبری شوې دیر میړو له پر راغونډې شول اود کاروان مشر شو.

نکل کا، یووخت بلوخان له پښتونخوا څخه دراستنیدلو په‌لاره کښی چه دحسین‌خان پښتانه‌زوی قطب‌خان[چه بیا دبهلول په‌پاچهی کښی لوی امیرشو] اودبهلول‌خان خیل اکا (ملك فیروز) هم ورسره‌ملګرو (سامانې) ته راغی‌او پریوه باولهستانه چه سید انام (۱) یاسیدابن انام(۲) نومېده ییښ‌شو، باوله ستانه ورته وویل: په‌تاسو کښی داسې څوك شته چه دډهلی پاچهی په ۲۰۰۰ چلندو تنګو رانیسی؟» قطب خان اوفیروز خان څه و نه ویل مګر

مجذوب سید امیا یې واخستله او وې فرمایل :

«د ډهلي پاچهي دې مبارک وه! دا دوه ملله به دې هغه وخت نوکران وي!»
بلوخان د ډهلي پاچهي به ۱۶۰۰۰ تنګې رانیولې او د مجذوب سید له مخې راپاڅید،
پرلاري ملګرو ډېر پر وخندل او ناخوالې ئې ورته وکړلې، ده [بلوخان]
ځواب ور کړ :

«دا روبیه ټول عمر نه بسېدلې، دلته ور ځو ځوري؟ که د زړه ګستانه وینا
ترسره شوه خورا ارزانه سودا مې کړېده او که نه د ډېر فقیر سید خدمت مې وکاوه
دا هم ثواب لري» په دغه ډلاچه د بلوخان کاروان ډهلي ته راورسید له پښتونخوا
څخه راوستلي آسان ئې ښه تیار کړل او د خپل اکا [اسلام خان] په وسیله ئې
د ډهلي د پاچا سلطان محمدشاه (۸۳۷-۸۴۷) حضور ته وروستل سلطان ټول
آسان خوښ کړل او د پنجاب د یوې باغي سیمې د دغه کال په مالیه ئې څخنې وانیول
د سلطان محمدشاه په کمزوره د پاچهي کښې د بری سیمې د دې ته وې چه مالیې ټولو
ته ولاځ بلکه په همدغه نامه دې ځوك سترګې ور ښکاره کړي خو مګر بلوخان
او ملګرو ئې پاچاهي سند واخیست او هغې سیمې ته ئې د مالیا تود ټولو او له
یاره دوه تنه پښتانه ولېږل، مالیه ټولونکي پښتانه هلته ډېر وځوروي شول، په
یو چم ئې غوزونه ترې راخلاص کړل او تر بلوخانه ئې خانو ندراو رسول، بلوخان
چه په دې کل خبر شو خپل اکا [اسلام خان] ته ئې وویل :

«زه به خپله هغې سیمې ته ځم مګر هلته چه هر څه وشوه پاچا به بیا څه نه وائي!».
اسلام خان چه د بلوخان دغه عرض پاچا ته ورساوه؛ پاچا به خورا خوښ

## سپاهی بلوخان

ځلمی بلوخان ته چه داباچهی پیغام ورسید؛ ملاتړ وتړله اودیوي دلی
توریالیو پښتنو سرهٔ ئي هغی باغی سیمی ته مخ ونیو، ټول یاغیان ئی ایل کړل،
د کال مالیه ئي راغونده کړه اوددیرو واجو اوبندیانو سرهٔ په جګ مغزی
بریالی ډهلی ته راستون شو .

اسلام خان چه دنازولی وراره [بلو] د اتوره ولیدله له خوښۍ په کمیسه
کښی نه ځائیده، سمد ستی ئي خپله نازولېٔ اور [شمسه] ور کړه او وراره
[بلو] ئي زوم هم شو .

## ملك بهلول

سلطان محمد شاه چه دپنځویشت کلن بلوخان داتوره اومیړانه ولید له
سودا ګری ئي په برېښوو له هغهٔ سیمه اوشو نوری وربوری سیمی ئي دځا ګیر
په صورت د [ملك بهلول] لهخطا بهسره ورو بخښلي، پدی تو ګه د٨٣٨هـ کال په
پای کښی بلوخان [سپاهی ملك بهلول] شو اوپه پنجاب کښی ئي خپل ځا ګیر
ومو ند. ملك بهلول خپل سپاهیان ډیر ښهروزل، کال په کال بهٔ ئي نوی سپاهیان
نیول اونور روزنی وروسته بهٔ ئي د سلطان محمد شاه ترحضور تیرول، سلطان
بهٔ د ملك بهلول فوځی تنظیم او روزنه ډیره ستایله اودنویو سپاهیانو دخرځ
له پاره بهٔ ئي نوری نوی سیمی دځا ګیر په تو ګه ور کولی، په دی صورت کراز
کراز دلاهور د شاوخوا سیمی ټولی ده ځا ګیر شولې ملك بهلول چه داسی
ژر دومره لوړی درجې ته ورسید دهغه مجذوب سید خبرې ئي زړه ته ولویدې.

# د سرهند حکومت

د ٨٤٠ هـ کال په شاوخوا کښې د سرهند واکمن (سلطان شه اسلام خان) و، چې که څه هم اسلام خان خپل زامن او وروڼه درلودل؛ خو ځکه چې د قام د اقبال ستوري ئې د خپل ورارهٔ او زوم (ملك بهلول) په تندي کښې لیده؛ دی (ملك بهلول) ئې په خپل نیابت تاکلی ؤ، ملك بهلول هم دا کار له وصیت سره سم د سرهند واك په لاس کښې واخیست، خو ډېر ژر د خپل اکا (ملك فیروز) او خپل تربوره (د اسلام خان زوی قطب خان) له مخالفت او رقابت سره مخامخ شو. ملك فیروز ئې ژر ځان کړ او قطب خان چې ځان د سرهند د حکومت اوچا کیر رشتینی وارث گانه او د بهلول موټ ئې هم نه پېچلای نشوای، د ډهلي د پاچا (سلطان محمدشاه) دربار ته ولاړ او نیاز (داد) ئې وغوښت.

سلطان ته (چې د لودیو اتفاق او د ملک بهلول دوعره ترقي او واك ئې نه غوښت) ښه پلمه په گوتو ورغله، سمدستي ئې په ٨٤٣ هـ کال (١) یو تکړه لښکر د ملک سکندر «تحفه» (٢) تر مشر تابه لاندې د ملک بهلول ځپلو له سرهند ته ولیږه (٣)

## د ملك سکندر جنگ

له دې خوا د ډهلي لښکري د ملک سکندر تر مشر تابه لاندې سرهند ته وخوځېدلې او له بلې خوا د سلطان محمدشاه په امر جسرت ککهړ له خپل قام سره پر سرهند راغی، پر پښتنو مځکه سره شوه، د سرهند شاوخوا اغر وته وختل د ملک سکندر «تحفه» او جسرت ککهړ لښکري چې به سرهند کښې سره یو ځای شوې پښتنو ته ئې حال ونه ورولیږل:

«تاسي څه دومره ګناه کړېده چه مېښي مو نوري بېرې ايښې دي، او تورو غرونه ختلي ياست؟ دا کار د کړونه ؤ په خبرو دا مشکل حل دای شوای.» دې خبرو د پښتنو په سپېڅلو زړونو کښې اثر وکا او دلو د و پښتنو سپين ږيري مشر (ملک فيروز) د غليمانو په وعدو او قسمو نو تېر ووت. خپل زوی (شاهين خان) او ور اره (ملک بهلول) ئې له کډو او لښکرو سره پرې ښوول، پخپله د څو تنو نورو مېړو سره ملک سکندر «تحفه» او جسرت ګکهړ ته ورغی مګر تر پوښتنې او کرو پېژنې د مخه دی و نيول شو او مله ئې ووژل شول د ډهلي او ګکهړ و لښکري په شاهين خان او ملک بهلول پسې وو تلې، شاهين خان د يو ې دلې پښتنو سره د غليم مخ نيوی له پاره پاته شو او ملک بهلول کډې د غرو څو کو ته وخېژولې د ډهلي او ګکهړ و لښکري پر شاهين خان پېښې شوې، جنګ و نښت د بې تورياليو ځلمي او پخپله شاهين خان ووژل شول او پاتې پښتانه بنديان شول، د پښتنو ځلمو ککرۍ سرهند ته يوړې شوې، تکل کا چه جسرت ګکهړ د دغې سوبې په مناسبت په سرهند کښې دربار وکړ او د ملک فيروز لو دی څخه ئې د هرې ککرۍ نوم و نښان پوښتېده دې لړ کښې د شاهين خان سر هم راووړه شو، ملک فيروز وويل: «دا نه پېژنم!» غليما نو هغه ککرۍ د ملک بهلول ګڼله او له هرې خوائی د مېړانې زړورتيا او تېښګارستايني شروع شوې، ملک فيروز چه دا ستاينې واوريدې، ليمه ئې لاندې شول او د جسرت په ځواب کښې ئې وويل «دا ککرۍ زما د توريالي زوی شاهين خان ده» جسرت ورته وويل د مخه دې ولې نوم نه ښود؟» زوی مړی فيروز په خوږ امتانت ورته وويل: «ما ويل نه چه په مېړانه نه ی مړ شوی، پېغور به را ته پاته شي او اوس چه بهلول زمرې ژوندې دې ډاډه يم چه د دغو خيالونو ځلمو د تودو وينو پور به نه پاتې کېږي.» جسرت

# ترټلی بهلول

ملك بهلول خان ځېلی او ترټلی بهلول شو، د غرو په څوکو کښی به لکه غرڅه
گرزېده، په زړو لښکرې ئې تار په تار شوې، د کوهمی ځلمی او خیاله وریاران
ئې بایه زنداو کښی پراته ؤ او بانې د کور توری خاړی خوړلې او تکړی
ئې به کله مناړو کښی نښتی وې خو بیاهم ځېلی مګر توربالی بهلول همت له
لاسه ورنه کړ، مځکې آرام نه ور کاوه دوری هیسته ئې پوړ وداړو کړ څه توربالی
میړونه ئې بیا پر ځان راغونډ کړل، پر پاچاهی حدودو به ئې تاتاړونه وروړل
او سیمی به ئې تالا کولی، په دغو وختو کښی ملك فیروز اکائی هم د ډهلی له
زندانه ور وتښتید او قطب خان ترپوره ئی هم نوره د کهاله او تېر بده وریځو له
سپلای شوای او د ډهلی د پاچهي تر دربار ئې د قام د میړو سره تورغرونه او د
پاچاهی تور، لوږی او تندی غوره کړې، ځېلی بهلول ادس پوړ داده او مروج
بهلول شو، پر سرهند ئې ور یدو کاو، د سرهند پاچاهی حاکم ئې د ډهلی دربار ته
په پناه وړلو مجبور کړ او د سرهند او شاو خوا تلای واك ئې بیا موند، ځېلی
پښتانه بیا پر خپل بور شول.

# د حسام خان وزیر جنګ

د ډهلی دربار چه د سرهند په نیولو خبر شو، سمدستی د وزیر الممالك نائب السلطنه
حاجی شرقی (۱) (چه په حسام خان ملقب ؤ) ترمشر تابه لاندی د ډهلی درنی
لښکری دلودیو پښتنو ځېلو لره د سرهند لورته وخوځولی، مدبر ملك بهلول
چه د مخه ئې لا د ډهلی د لښکرو مقابلې ته لیځې غښتلی وې، له هغې خوا دیوه لږ مګر
توربالی، تکړه، منظم او د انتقام له جذبې ډك لښکر سره مخ پر ډهلی را روان

« کړه » (١) یا « لده » ( ) نومی ځای کښې لښکری سره مخامخ شولې کلک جنګ ونښت، د بهلول لښکرو هغه توره و کړه چه غلیمانو به لا تر ډیره یادوله او ښتنو ځلمیو د ملك سکندر د جنګ د خپلو نامرادو ځلمیو پور بو په دوه واخیست د ډهلي لښکرو ماتي و کړه او نائب السلطنه حسام خان وزیرالممالك په تیښته ډهلي ته ترپلل، بریالی ملك بهلول تربانی پته پوری تولې سیمې ونیولې او سوبه وړی له ډیرو لچواو بندیانو سره سرهند ته ستون شو. اوس نو غښتلی بهلول هرچاو ما نه دخپل اکار ښتیانی خلف شو، د سرهند، د پنجاب لیو راو پانی پت په سیمو کښې ئې تقریباً خپلواك حکومت کاوه او بیا د ډهلي د پاچهی خواله ورته چوله نه کړای شوای.

## فتح خان ملك بهلول(٢)

کله چه هم غښتلي بهلول په توره د ډهلي لښکری ماتی کړی حو دده ته د ر دا اجازه نه ور کوله چه د ډهلي له دربار سره ئې مناسبات خرابوی نو ئې د سلطان محمد شاه حضور ته ولیکل. زه د پاچا هغه پخوانی نوکر یم، خو د حسام خان وزیر په ژرانده زما او د ډهلي د دربار ترمنځ د مناسباتو د ښه کیدلو هیله نه شی. که پاچا دغه خنډ (حسام خان) په مرك له منځه وباسی او ځای ئې « حمید خان » (٤) ته وسپاری، زه به د پخوا په شان د پاچا هر حکم ته غاړه ږدم. « سلطان محمد شاه چه د غښتلی او توریالی بهلول دغه مخلصانه لیك ولوست، بی ځنډه تامله ئې ومانه او حسام خان وزیر ئې ( چه دابو الفضل په قول دده د پاچهی رونق و واژه ) وزارت ئې حمید خان ته وسپاره (٥) سمدستی ئې ملك بهلول ته د « فتح خان ملك بهلول »

(١) مرقع افغان ١٧ مخ (٢) شوکت افغان دریم جلد ٧٤ مخ

(٣) په دغو وختو کښې د ډهلي پاچهانو خپلو توریالیو امراو ته چه کومه توره به ئې و کړه

خطاب ورولیږه اودده میرانه او توره ئې ډېره وستایله له پوې خوا یخپله‌دا خطاب معمولي خطاب نه ؤ او له بلې خوائې دملك بهلول دسرهند پرحکومت او جاګیرداری پاچاهي مهرولګاوه، دده دراتلو نکوهیلو له پاره ئې ورو پرا نیست

ځکه دې پوهیده چه‌دډهلي له‌عیاش او کمزوره پاچاځخه دحسام خان غوندی با تجربه وزیر په زوند دپاچهۍ دنیو او په‌لاره کښې‌سوبه نشته او که وي هم ډیری و بنی باید و بهېږي او ډېری خواری باید و ګالل شي.

مدبرملك بهلول په یوه غشی دوې ښکار وویشتل، یو ئې دخپلې لارې څخه حسام خان غوندی سنګر وایسته کړه او بل ئې دخپل لاس بری «حمیدخان» وزیر کړ او حقیقاً دحمیدخان وزارت دبهلول دپاچهۍ نیږه شوه (فتح خان ملك بهلول) دحسام خان وزیر تر وژلی وروسته دحمیدخان په‌وزارت کښې له وعدې سره سم دځان او نورو تولو لودیو خدمتونه پاچا ته وړاندې کړل، هراوړته دلودیو دوره شوه، چه‌زړه ئې غوښته‌هغه‌سیمه‌ئې نیوله، څوك ئې مخې ته دریدای نه‌شو (فتح خان ملك بهلول) نش په نامه دډهلي تر واك لاندې ؤ.

## دخلجي سلطان محمود برید

دحسام خان وژلو او دحمیدخان وزارت دسلطان محمدشاه کمزوری هرچا ته ښکاره کړه، امیران ئې پرې زړور شول، د (میوات) امراؤ د (مالوې) پاچا خلجي سلطان محمود (۸۳۹_۸۷۳) پرډهلي باندې دبرید له‌پاره راوبلله، ده (سلطان محمود) هم له‌خدایه داغوښته، د (۸٤٤هـ کال) په‌پای کښې ئې لښکری پرډهلي راوبهولې، سلطان محمدشاه چه‌دفتح خان ملك بهلول توره، زړه ورتوب ټینګار دخپلو فوځو په مقابل کښې لیدلی ...

مقا بلې لره ئې تيارى او نيولې ذى الحجې په لمړيو ورځو کښې د ډهلى لښکرى د سلطان محمد شاه د زوى تر مشرتابه لاندې له ډهلى څخه جنګ ته ور ووتلې ملك بهلول د خپل شل زرى تور يالى فوځ سره (چه ډير ماهر غشى ويشتو نکى ميړونه هم پکښې وو) (١) د دغو لښکرو سرلاري (مقد مة الجيش) ؤ . خلجى سلطان محمود تر ډهلى د پاندى ورته اړولى ؤ ځکه چه د ډهلى پاچا سلطا ن محمدشاه يځپله جنګ ته نه ؤ راوتلى نو د مالوې پاچا (خلجى سلطان محمود) هم خپلې لښکرې د خپلو زامنو سلطان غياث الدين او قدرخا ن ترمشرتابه لاندې د ملك بهلول مقا بلې ته را وايستلې . لمړى ترما ښامه کلك جنګ وشو د ماښام تيارې فوځونه سره وګوښېل ، دوهم ورځې ونو په اتفاق په دغه جنګ کښې (فتح خان ملك بهلول) او د ده لښکرو هغسې توره وکړه چه د ډهلى د لښکرو پت ئې خوندى کړ او د مالوې د لښکرو غرور ئې پرسر ه ر مات کړ په دغه شپه خلجى سلطان محمود ته ويده چه سلطان احمد شاه ګجراتى د مالوې پر پايتخت (ماندو) بريد وکړ ، ډير ترهور شود ستتيدل او له پار ه ئې پلمه غوښتله ، له بله مرغه هغه ؤچه د ډهلى د پې زړه او نا پوه پاچا سلطان محمد شاه له خوا دروغى پيغام ور ورسيد او د خلجى سلطا ن محمود د ستنيدلو پلمه ئې جوړه کړه . ځکه چه دا دروغى پيغام د ملك بهلول په سلا نه ؤ نو غيرتمن او تور يالى ملك بهلول ډير خوا شيني شو ، کله چه خلجى سلطا ن محمو د له ډهلى څخه لښکرى بيرته ځو لې ، ملك بهلول د خپلو تکړه او سرتيرو لښکرو سره تر شا بريد پر وکړ ، د خلجى سلطان لښکرى ئې خوراو ځپلې او ډيرې ولجى ئې ځنې ونيولې .

## خان خانان ملك بهلول

زوی ئې وبا له او د (خان خانان) لقب ئې (چه دهغه وخت له خور او تلو القابو څخه ؤ) ور کړ (۱)

ملك بهلول د (خان خانان) د لقب او ډیرو ولجو سره بریالی سرهند ته ستون شو.

## د لاهور او د دیپالپور حکومت

په ۸٤٥ھ کال سلطان محمد شاه (سامانې) ته ولاړ هلته ئې (خان خانان ملك بهلول) ته د لاهور او د دیپالپور حکومت چه (د تاریخ فرشته په قول پخوا الا ملك بهلول خپله غېږ پر را گرزولی وه) ور کړ او د جسرت گکهړ ځپلو لره ئې و گماره محمد شاه ډهلی ته ځنی راغی ملك بهلول په هغه جسرت گکهړ پسی چه یو وخت د دغه پاچا په حکم دده (ملك بهلول) ځپلو لره راغلی ؤ لښکری ور وایستلې، جسرت کافر چه د خان خانان ملك بهلول د توری او زور نکلونه ډیر اورېدلی وو؛ دروغی پیغام ئې ور ته ور واستاوه او په دغه ترڅ کښی ئې د ډهلی دراتلونکی پاچهی مبارکی هم ور کړه، ځکه چه ملك بهلول نه غوښته د ډهلی پر رقیبانو سر بیره نور هم د ځان دښمنان کړی نو ئې د جسرت دروغی پیغام ومانه او دغی مبارکی ئې د پاچهی هیله نوره هم ورپسی ټینګه کړه، د لاهور او د دیپالپور حکومت دده طاقت لا پسی غبرګ کړ دشاوخوا پاچاهی سیمې ئې نوری هم پسی ونیولی او له لاهوره څخه را نیولې تر پانی پت پوری د ملك بهلول تقریباً خپلوا که پاچهی وه.

## د ډهلی برید

په ۸٤٦ھ کال سلطان محمد شاه د ځینو امراؤ په لمسون (چه غوښته ئې دی لا پسی کمزوری کړی) خان خانان ملك بهلول ته چه د ډهلی د تاج و تخت حقیقی ساتندوی ؤ یو سخت لیك ولیږه او وی ترا ته. دغه ر تلو دده او محمد شاه پاچا

ور و بهلولي. سلطان محمدشاه کـلابند شو. څه وخت دسرهند لښکري دډهلي پرښاوخوا پرتې وې، سلطان بهلول چه پدغه وار دډهلي دنيولو امکان ونه ليد، سرهند ته ئې لښکري وليږدولې او هلته ئې د «سلطان محمد» (۱) ياسلطان بهلول (۲) په نامه ځانته خپلواك حکومت تاسيس کړ مګر خطبه او سکه ئې د ډهلي تر نيولو پوري پرخپل نامه نه کړه (۳)

## دسلطان علاء الدين پاچهي

د ۸٤٧ هـ کال په پای کښې چه دډهلي پاچاسلطان محمدشاه ومړ (٤) نالايق زوی علاءالدين ئې پر تخت کښېنوست او د( عالم شاه ) لقب ئې غوره کړ دده بيعت لره تول امراء ورغلل خو يوسلطان محمد « بهلول » ورته ورنه غی (٥) که څه هم پخوا لادسلطان محمدشاه په زمانه کښې دپاچهي نظام ګډوډ ؤخو عالم شاه چه کښېنوست هغه پاته واك او انتظام ئې هم ترخپل عيش ځار کړ د ملك حال ورځ په ورځ ورانيده هرلورته ملوك الطوايفي شوه په هرښار ارهـره سيمه کښې بيلې بيلې پاچهي جوړې شوې . له لاهوره ترپاني پته بيا دملتان ترڅنډو اونا ګور، حصار اوهانسي پوري دشاهوخيلو لوديو په لاس کښې وه، پر( کول) عيسی خان اوپر( بيانه) داؤد خان غښتلي را کرزولې وه، په(مهرولي) کښې چه دډهلي سهيلي لمرلويديز پلوته ۱۰ ميله ليري پروت دی احمد خان ميواتي دخپلواکۍ بيرغ ونجتي . سنبهل دجمنا دسيمي دخواجه خضرتر ګډره پوري چه ډهلي ته خورا نژدې دی ددريا خان لودي ترلاس لاندې ؤ(٦) په « چندوار » کښې قطب خان لودي خپلواك حـا کم ؤ (٧) دشـاه عالـم يواځې خپل جـا ګير

---

(۱) مرقع افغان.
(۲) تاريخ فرشته لمړی جلد ۱۷۱ مخ.
(۳) تاريخ فرشته لمړی جلد ۱۷٤ مخ.

[بدایوان] او دډهلي ښار اوشاوخوا په لاس کښې پاته وه ځکه نو په هغه وخت کښې دامتل ؤ :

«پا چهي د شاه عالم ، له ډهلي څخه تر پالم . » (۱)

## دډهلي بریداو دلاهور جشن

په دغو وختو کښې بیا سلطان بهلول پر ډهلي بریدوکا ، علاء الدین شاه عالم کلابند شو سلطان بهلول بیا لښکري ځني ستني کړې او په لاهور کښې ئې یو شاهانه جشن جوړ کړ ، ټولو امراء او سردارانو ته ئې خلا نو نه ور کړل هغه لس زره تور یالي پښتانه چه ئې له کسي غرداور وه څخه راغوښتي وو هم ورته راورسیدل د یرئې و نازول آسو نه ، خلا نو نه او جا گیرو نه ئې وروښندل ددوی په رانگ د لښکرو شمیر څلو پښتو زرو ته ورسید (۲)

## اجباري سپاهي توب

کله چه سلطان محمد ( بهلول ) په لاهور کښې شاها نه جشن جوړ کړ ټولو پښتنو ته ئې حکم و کړ چه بې توري او سپاهي توبه بل کار نه کوي د کرهڼي او سودا کرئ څخه بهلاس اخلي یودوه تنه چه ددې حکم له منلو څخه ئې ټه و کړه سیاستاً ووژل شول پدې صورت پښتنو له بوه مخه سپاهي توب ته مخ ونیو او د سلطان محمد [بهلول] فوځي طاقت ډیر غښتلی شو (۳)

## حمیدخان وزیراو عالمشاه

یووخت د حمید خان وزیر پلار [فتح خان] درای پرتاب کوټ وران کړی ؤ اودده ما ندینه چه ئې بندي راوستلي وه ځان ته ئې کښېنولې وه دغه چ د

رای پر تاب په زړه کښې وُ ، غوښته ئې چه دده تر زوی ئې کسات وکاږي په ۸۵۰ (۱) یا ۸۵۲ هـ کال (۲) چه سلطان عالمشاه له ډهلي څخه بارهري [مارهري] ته نږدې [برهان آباد] ته ولاړ هلته ئې د عیسی خان او قطب خان په مشلا پاچا ته وویل : که پاچا ، حمید خان وزیر ووژني (۳) بائی ایسته کړي (۴) موږ به څلوېښت پاغی سیمې په پاچهی دفتر کښې داخلی کړو (۵) دغه لمسون پاچا د حمید خان وزیر وژله پابند ته چمتو کړ خو حمید خان ځینو درباری خپلوانو په دغه حال خبر کړ او یاد ځینو په عقیده له بنده وغورځید ځان ئې به پټه ډهلي ته ورساوه ځینې کسان وایي چه په دغه لمسون کښې د سلطان محمد (بهلول) لاس هم وُ (۶) په هر صورت حمید خان وزیر چه ډهلي ته ورسید پاچهی کورنه ئې په خوراسپکاوی له ډهلي وایستله او په خپله ئې پر ډهلي غېږ راوګرزوله عیاش شاه عالم په (بداېوان) کښې ورته کښېنوست .

# د ډهلي کلا

حمید خان وزیر که څه هم د ډهلي واك و موند خو بیا هم پوهېده چه دا باریه خپل نامه ترمزله نشي رسولای نوئې خیال در لود چه د سلطان علاء الدین [شاه عالم] پر ځای بل څوك د ډهلي پر تخت کښېنوی د جونپور پاچا [سلطان محمود شرقي] د شاه عالم زوم وُ او خلجي سلطان محمود د مالوې پاچا په [مانډو] کښې ناست وُ چه له ډهلي څخه خورا ډېر لېري وُ ځکه نو مجبوراً د ډهلي د پاچهی له پاره د حمید خان وزیر ستر ګی سلطان محمد [بهلول] او قیام خان ته ورو او ښتلې د حمید خان په بلنه دواړه امیران [بهلول او قیام خان] په خورا بیړه ډهلي ته را و خوځېدل .
قیام خان چه خبر یده سلطان محمد [بهلول] بیا دلښکر سره ډهلي ته ځان را

(۱) مرقع افغان د تاریخ داؤدی په حواله
(۲) تاریخ فرشته لمړی ټوك ۱۷۲ مخ

ورساوه او قیام خان [چه ځان د بهلول ساری نه باله] جا ګیر ته ستون شو ،
حمیدخان وزیر چه بهلول والیذور ته یی وویل: ،، د ډهلی پاچهی دی ستا مبارک شی،
وزارت به دی زه په غاړه اخلم» بهلول ځواب ور کړ:'' زه سپاهی سړی یم په پاچهی
څه پوهیږم ته پاچا شه او زه به دی سپهسالار شم او که څه نور خدمت راوسپاری
هغه ته هم ولاړیم . »

حمیدخان د ملک بهلول د دغه خاضعانه ځواب پای ته و نه رسید او ور ته
وئی ویل: «ما دا کار د ځان د پاره نه دی کړی خاص د اسلام ښیګڼی لره می
دا جرأت وکړ ځکه چه ما باور درلود چه په دغه پاچهی کښی به د اسلام حال
لاپسی وران شی او زه ببریدم چه نوری بخولی (فجائع) به لاپسی پیښی شی
(الملک لمن غلب) زه تر تا بریالی او غښتلی نه وینم ځکه ما ته د دی کار د پاره
غوره کړی .» تر ډیر اصرار وروسته ملک بهلول ست (قانع) شو له، حمید خان
وزیر څخه ئی د ډهلی د ښار کلی واخستلی او حمیدخان ته ئی وویل: «زه
بو ځی د ښار، دوره ساتندوی یم هر حکم چه ته کوی هغه ودم» او په دی صورت
ئی حمیدخان له خپلی خوا داډه کړ.

## د ډهلی ساتندوی بهلول

ملــک بهلول اوس د هغه حمید خان تر واک لاندی شو چه دده په توره
او تدبیر ئی وزارت موندلی او تر اوسه دده د لاس سړیؤ دا ځکه چه په دغه وخت
کښی د ډهلی تش په نامه پاچهی د حمید خان په تدبیر او طلب ور ورسید له، ملک
بهلول په دی ښه پوهید چه که څه هم دی په نامه پاچا دی خو په حقیقت کښی
د حمید خان د لاس سړی دی، هرومرو به د حمید خان وزیر پر لار ځی او د امارت
د وختو خپلواکی هم په دغسی پاچهی کښی ور میسره نه وه مګر ځیرك ، مدبر

# دور اندیشه پاچا او مغروره وزیر

کله چه هم د ډهلي د کلا او پاچاهۍ خزانو کلي ګانې د ملک بهلول څخه وې او د پاچهۍ نوم هم پرې اېښود شوی ؤ خو د څوورځو د پاره دی د حمید خان وزیر د لاس آله ؤ څه چه به حمید خان ویل هغه به کېدل ، د حمید خان مغروره وزیر هر حکم ته دور اندیشه پاچا (بهلول) غاړه کېښوده او هره ورځ به پاچا د وزیر سلامي ته ورته .

نکل کا چه یوه ورځ حمید خان وزیر، بهلول پاچا او څو تنه نور د پښتنو ملکان مېلمستیا ته ور وبلل دور اندیشه پاچا د پښتنو ملکانو ته وویل :

«د حمید خان وزیر دربار ته چه ورشو د دې لپاره چه ستاسې بېره او پړتم د ده له زړه وځي تاسې به هسې احمقانه وضعیتونه کوئ چه وزیر ئې طبیعي وګڼي.» پښتانه ملکان چه هم د وزیر دستر ځړان ته ور غلل چا موچڼي په ملا کښې وهلي او چا د حمید خان ترڅنګ کېښوولي.

حمید خان وزیر چه سبب ځنې وپوښتېد دوی وویل:

«بېرېږو چه غلا نشي»

وزیر د دوی پر سپېدلي ورځ ډېر وخندل او دوی ته ئې ډاډ ورکړ چه دلته غلا نشي کېدلای . (دا په حقیقت کښې د هغې ډرامې امړې بر ده وه چه ځیرک بهلول تش په نامه پاچا جوړه کړې وه) (۱) دوډۍ چه وخوړه شوه پښتنو ملکانو په خورا تعجب غالیو او کمبلو ته وکتل. وزیر ته ئې وویل د دغو څخه یو یو ټوکر مونږ ته را پرې کړه چه خولې ځنې وګنډو او زامنو ته ئې په سوغات کښې

د ګلو، عطرو او ړيان سترخوان وغوړيد ځينو عطروونه وځنبله چا ګلونه وخوړل،
چا لنده چونه (چه په پاڼو کښې لېژ لېژ بګار ريږي) په خوله کړه خولې ئې زنګوې او
بر کمبلوئې تو کړل .

حميدخان وزير چه دا وضعيت نه وليدل نو زړئې ونه سهلای شوای دائې خپل
سپکاوی وګاڼه او بهلول ته ئې مخ واړاوه . «دا ولی داسې بې با کيه کوې!»
بهلول په خورا ادب ورته وويل . «دا نا پوه کليوال دی په غرو کښې اوسي
بې له وژ لو او خوړلوئې نور څه نه زده دښاري خلقو سره ئې بر نه دی او سيدلی.»
دې وېنا حميدخان ډاډه کړ. دربار مات شو او هر څوك خپلو خپلو کورو ته
ولاړل .

## د حميد خان بند

دميلمستيا په سبا بيا بهلول لکه پخوا د حميدخان وزير کره سلامي ته ورغی
دی چه به تل د حميدخان دربار ته دننه ورننووت څه پښتانه مشران به ورسره
پر پښو ولاړ کيدل او نور سری به ئې د باندې ولاړ وو، په دغه ورځ چه بهلول د حميدخان
وزير دربار ته ورننووت، ده په لمسون پانو پښتنو ځينې حاجبان ووهل او
په زور ئې غوښتل دربار ته ننوزی زوږ سره پورته شو، حميدخان ته وويل شول:
«پا ته پښتانه ملك بهلول ښکنځي او وائی موږ هم لکه بهلول د حميدخان وزير
نوکران يو، دی پخپله دربار ته ننووت او موږ نه پرېږدی.» وزير ګرد پاته
پښتانه دننه دربار ته وروبلل، پښتانه چه ورننوتل بېل بېل دوزير دنوکرانو
شاووته پواودره و دريدل د بهلول ترپور قطب خان ورو ړاندې شو ځنځير ئې
دحميدخان مخې ته کښېښود او ورته وې ويل: «سلامت اده چه تاسې د څو ورځو
له پاره ګوشه نشينه شيء ځکه چه مونږ ستاما لکه شکلي دهنو ستا وژ له ورنه

تاویسانشو کولای! «حمید خان مغروره وزیرته بیرېده وروا چولي او ددهلي تر کلا دباندې په یوه ځای کښې ترمړینې پورې نظر بند وساته شو.

په دې توګه بهلول په خپل زغم او تدبیر ډېر ژر د حمید خان وزیر (چه په حقیقت کښې پاچا ؤ) له شخړې ځان بې غمه کړ او ددهلي بشپړواك ئې ومووند.

## دعالمشاه استعفاء

مدبر بهلول په دې شپه‌بو هید چه په یوه ملك کښې دوه پاچهان نه ځائیږي او ددهلي دښار دوهم پاچا خوله‌منځه وایستل شو ' اوس نود ملك ددوم پاچا دسلطان علاءالدین عالم شاه چه په بدایون کښې ناست ؤ؛ ایسته کول پاتـه شوه مدبر بهلول عـالم شاه ته‌ولیکل: «زه ستا پلار روزلی یم زه ستاله‌خواهغه پاچهي چلوم چه ستاله لاسه وتلې وه ځکه‌ما نراوسه ستانوم له سکې اوخطبې څخه نه‌دی ایستلی (۱)

سلطان علاءالدین عالمشاه ځواب ور کړ:

«زما پلار ته‌خپل زوی بللی !زه هم تاخپل مشروروربولم ځکه نو دپاچهي کـار بار تانه پرېږدم اوزه د (بدایون) پر جا ګیر سکته شوم.»

---

(۱) طبقات اکبري لیکي‌چه بهلول ترډغې معروضې‌دمخه خطبه اوسکه پر خپل نا مه کړه اوده «سلطان بهلول» لقب ئې غوره کړ دامعروضه تش‌دشاه عالم دتیر ایستنې له‌پاره چه ستانوم له‌خطبې اوسکې څخه نه باسم » وه

مرقع افغانئي په‌تر دیه کښې‌لیکي: سلطان بهلول هم مروچؤا وهم ئې پا چهي په

# دسلطان بهلول دپاچاهی اعلان

د(سلطان علاءالدین عالم شاه) خراب څرګنده کړه چه دی پخپله دپاچهی بار نهشی اخیستلای اوهیله لری چه څرك دعهبا زده ده له اوزو واخلی ځکه نو بهلول تردغی پاچاهی استعفا وروستهده ۸۰۰ ه کال دلمړی خور پر اوه لسمه د۳۶۰ کالو په عمر دخپلی باچهی اعلان و کا او د «سلطان بهلول شاه غازی» لقب ئې غوره کړ(۱) خطبه ار سکه ئې پر خپل نامه کړه(۲) او دسلطان علاءالدین هغه امرا چه له ده (سلطان بهلول) سره په دهلی کښې د دهغو وظیفی او تنخواوی ئې دېخوا په دول ورو تا کلی (۳) دملك اصلاحاتو ته ئې ملا وتړله لښکری ئې غښتلی کړې او دعدل او انصاف رڼائې درعیتو پرمخ وبرانست(٤) سلطان علاءالدین عالمشاه په (بدایون) کښې بخپل عیش اوعشرت اخته ؤ.

## دعالم شاه مړینه

دډهلی له تاج او تخته څخه مستعفی پاچا (سلطان علا ءالد ین عالمشاه) په ۸۵۵ ه کال په (بدایون) کښې و مړ (٥) طبقات اکبری او منتخب التواریخ دسلطان بهلول دتخت نشینی نېټه لهدغه تاریخ څخه نېتوی؛ مګر تاریخ داؤدی دسلطان بهلول دتخت نشینی نېټه له هغه وخته څخه بولی چه د دهلی کلی ورو سپارلی شوی او سلطان عالمشاه خپله استعفاء ورو ایښوله داپښنی تولی په ۸۵۰ ه کال کښې وی (مرقع افغان) دتاریخ داؤدی په تائید - لیکلی دی ملاعبدالقادر بدایوانی (٦) اونظام الدین احمد(۷) په کوم سنه سره د هغه

پاچاهۍ فرمان څواب و یلای شي کوم چه په هغه کښې سلطان علاء الدین عالمشاه په‌وازه خوله، دسلطان بهلول پاچاهي منلی ده؟ دومره او غښتلی سند په شته والی (موجودیت) کښې د سلطان بهلول د پاچهۍ ینځه کلو نه کمول ردهٔ بی ایمانی ده او بل داچه نظام‌الدین احمدیوه پلاتر دغي لیکنی دمخه پخپله لیکلی دی : ملك بهلول پر تخت کښیناست ده سلطان بهلول خطاب ئي غوره کړ اوخه‌بخت‌پس سلطان علاءالدین ومړ. داننا قض پخپله داخر گندوی چه نظام‌الدین احمد هم دابوالفضل دهغه تعصب‌تر اغیزي لاندی راغلی دی چه دپښتنی حکومت سره ئي درلودلو او د اکبرنامي غلط مندرجات ئي شاهد دی (۱)

## دروغی هیله

پرسلطان بهلول پاچاله‌یخوا شخه پښتانه راغوندۀ خو دسلطان علاءالدین عالمشاه ترمز ینځي وروسته هغه پښتانه امراء اوجا گیرداران هم دده‌مله شول چه بائي مخالف وواوبائی د سلطان په‌ژوند نه غوښته چه دسلطان بهلول سره کورواوړی دعالمشاه په‌مرگ که سلطان بهلول د (بدا یون) له خوا بیغمه‌شو، خودعالمشاه دزوم (۲) سلطان محمود شرقي (چه دجونپور پاچۀ) له خوا ترهغه غښتلی فتنه ورته ژوندۍ شوه اوسمدستي خبر ورته راور سید چه سلطان محمود دډهلي دبرېدله پاره څان چمتو کوی، دسلطان بهلول دارشه وه‌چه‌ترخپله وسه‌پوري‌ئي له جنگه‌څان ژغوره څکه نوئی په‌خپو را کښزه غاړه دجونپور له دربار شخه‌ئي دنه‌بریدو (عدم تعرض) دتړون هیله‌وکړه خو دجونپور دمغرورو او غښتلي پاچاسلطان محمود اوملکي زمونو .کمه‌دامنلای شوای چه

# سرهند ته تګ

په ۸٥٦ ه کال سلطان بهلول دخپل پخوانی جاګیر سرهند اود پیالپور خوانه ولاړ اود ډهلی نیابت ئی خپل مشراونوی ځامی ځوی (خواجه بایزید) ته وسپاره، ځینی وائی: دغو ښته چه د پنجاب له سیمو څخه نور فوځی طاقت دشرقی باچا مقابلې سره په لاس راولی (۱) اوځینی وائی چه غوښته ئی دسرهند اود پیالپور تر انتظام وروسته ملتان چه پدغو وختو کښې د بوه ستانه شیخ یوسف تر لاس لاندې ؤ (۲) ونیسی (۳)

## دسلطان محمود شرقی لمړی برید

په ۸٦۰ه کال په دغه وخت کښې چه سلطان بهلول دپنجاب په سیمو کښې ؤ، او دطباطبایی په قول غوښته ئې چه پر ملتان برید وکاندی؛ دجونپور پاچا (٤) سلطان محمود تقریباً دوه لکه فوځ او یو نیم زر ها تیان پر ډهلی راوستل . ځینی وائی دی (سلطان محمود) د(مړه سلطان علاءالدین ) هغو امراؤ بللی ؤ چه دسلطان بهلول پر پاچهی ئې ستر ګی نه رنیبدلې (٥) او ځینی وائی چه ملکې دی پاروولی ؤ ، چه ډهلی زما دپلار ملک دی بهلول دچادی چې دډهلی پر تخت کښینی؟ که ته نه پرورځی زه به زغره واغوندم او پرغل به پر و کړم . (٦) په هرصورت د جونپور لښکری ډهلی ته راورسیدلې ، نوی ځلمی (بایزید) او څو ورسره پاته

(۱) تاریخ فرشته لمړی جلد ۱۷۵ مخ .

(۲) سیر المتاخرین ۱۳۸ مخ (۳) جونپور له ډهلی څخه لمر ختیز پلو ته ۱۷٦ کروه لیری پروت دی داله آباد او سنی بنار دغه جونپور لمر لویدیز پلو ته ۲۱ میله لیری واقع دی دجونپور طول البلد

اميرا ن يه دي يوه شول چه ددو مره درنو لښکرو مقابله دځـو ئـو ميرو او
ښځو کار نه‌دی، بله چاره نه‌وه يه کلا ئنو تل ښار کلابند شو ،دجو نپور لښکرو
شاو خوا ورته واړول د کـلاد ساتنې ويو مشرتوب دسلطـان بهلـول دپښتنې
خوا ښې (مستو بي بي) چه داسلام خان کونډه او دبهلول دا َکامانديښه‌وه ،ير
غاړه واخيست ،ددی له ياره چه غليم به دې ونه يوهيږی چـه يه کـلا کښی
فوځو نه نشته دلودی کورنۍ تولوپښتنوښځو ته ئې دناريښوو کالی ورواغوستل
کـلاته ئې و ختيږ و لي او ييرې (بهرې) ئې ورو سپارلي ،څه ميړونه چه يه
کلا کښي وو ،تول ئې و گمارل چه تل به دغليم يرلښکرو غشی اوروی، يه دغـو
ځلميو کښي دخپل وخت نامتو منلی غشی ويشتونکی دخان جهان لودی زوم
(شاه سکندر شيرانی) (١) هم ؤ . دده غشی چه ١١ موټه (٥ نيم فټه) اوږده
وو ،ترا توسوو گـامو يورې رسيدل او دده يرتولوغشو يه زرين خط (سکندرشاه)
ليکلي وو. نکل کـا چه يوه ورځ دسلطان محمود شرقی سقاو داو بوژی يرغوابی
بار کړی ؤ شاهی کيمپ ته ئې راوړل چه د شاه سکندر ستر گی پرولگيدلي. ليندی
ئې را کښله ژی او غو ئې ئې بسرمو ييو دل ،سقاو ځان و ژغوره مغه زر کو مغشی ئې سلطان
ته وروړ ځکه نو سلطان حکم و کا: د ياچاهی کيمپ هيڅوك دې کلاته نژدې نه
ورځي او دائې باورشو چه يه کلا کښي فوځو نه شته. کلابندی پسی اوږده شوه ،مستو
بی بی دميړ نی سلطان بهلول درا رسيدلو يه تمه نږدېـره وخـته يورې کـلا
خوندی کړه خو دلوديو ميړنيو در انگ زغ ر انغی، داا وتول کلا وال د کلا

# دکیلیو سپارل

اوریالی مشره (مستو بی بی) چه دلردیو فوځوله را رسیدلو څخه نـامینده شوه نوئی (دسید شمس الدین) به لاس د ډهلی کلی له دې پیغام سره «چه که داود یو دامړی دنـه خو ندی کولو بیت . وی ؟ نو کـلی وا خله » د سلطان محمود شرقی خو را ورتیر امیر دریا خان لودی ته (چه د شرقی لښکرو ټول انتظام په ده پوری اړه لرله) ولیږلی .

نکل کاچه (سید شمس الدین) تر کلاورووت ، د دریاخان دربار ته وروستل شو ، دریا خان دډهلی داستاځی په غوښتنه خپل دربار یان ویا څول چه دوی دوه سـره یـا نه شول (سید شمس الدین) ورتـه وویل .«سلطـان محمود (شرقی پاچا) ستا سره څه خپلولی لری؟ دریاخان ځواب ور کا .«خپل می نه دی زه ئې نو کریم او دی می پاچادی» سید ورته وویل :

«سلطان بهلول ستا څه کیږی ؟ »

دریا خان وویل ، «موږ سره عزیزان بو ، وروڼه یو ، دی هم (لودی) دی اوزه هم » سید ورته وویل .«نودده میندی او خونـدی ستا څه کیږی؟» دریاخان ځواب ور کا .

« دده مور می مور او دده خوندی می خوندی دی » .

سید شمس الدین کلی له جیبه را وایستلی ، مخ ته ئی ور نـه کښېښوولی او ورته وی ویل :

«اوس نوستا خپله خوښه ده چه د خپلو میندو او خـو نـدو پـرده خونـدی کړی که نه؟ »

خپل فهم له شخولی ( تیر دان ) څخه یو کاری غشی را و یوست او ورته وې ویل : « سلطان بهلول څه راسیدلې دی چې زما ترسترگو او دمخه په کلا ننوتلی وی » .

دریا خان چه داوار ویدله قومی پیرزوینې ئې پرنو کړې بیرې و موږ ند کلې ئې بیرته ور کړې .

او بیا ئې په خورا چابه اودر ناوی د کلاخواته ستون کا پخپله دستی تیغ دسلطان محمود شرقی پاچا دربارته ورغی اوعرض ئې و کړ :

« د کلا کلی مانه راوړې شوی دې خو مائې له اخیستلو څخه تړه و کړه ځکه چه اروېدل کیږی چه بهلول دیوه بی شمیره فوځ سره راسیدلی دی ، که موږ مانې ور کړه ټول ملک زموږ دی . پاچادی داته اوسی او مانه دې ازم ( اجازه ) را کړی چه مخه ئې و نیسم او نوموړی ئې ورك کړم (۱) شرقی پاچا چه پرده ( دریاخان ) ډیره بروسه درلوده دده دخبری خلا صیده وه چه سمدستی ئې دسلطان بهلول دمخنیوی حکم ور کړ .

## د پښتونخوا جرگې

سلطان بهلول چه دسرهند اودیپالپور په سیمو کښې دشرقی سلطان محمود په برید خبر شو سمدستی ئې دخپلو امیرانو په سلا پښتو نخواته دهرې پښتنې قبیلې په نامه یو ،ولیک اویوه جرگه و لیږله اوخپلی مرستې لره ئې راوبلل .

دسلطان بهلول دلیك مضمون شوکت افغان داسې ضبط کړی دی « لوی خدای پښتنو ته دهند وستان ( ډهلی ) پاچهی ور کړیده دهندو ستان دنورو پاچهانو سترگی نه پر رونیږی او دا نعمت ئې نه دی پر پیرزو ، غوا ړی پښتنا نه له

کښی د جو نپور پا چا خورا ډیرې لښکرې پر ډهلی را بهو لې دی. د پښتنو خوندې او میندې کلاسندی ګالی او دا د تولو پښتنو ننګه ده. هلیء را پا څې ء او د جو نپور پاچا سد سر نه ور ولی!!! ء ددې حال په ورسیدلو د پښتنو ځلمو فوځونه بو په بل پسې له هرې خوا مخ پر ډهلی راو خو ځیدل چه پښتنې ننګه پر ځای کړی او پښتنې خوندې اومندې له کلا بندی وژغوری.

## دسلطان بهلول دارسیدل

سلطان بهلول ته چه د پښتنو فوځونه له پښتو نخوا ورو رسیدل ممد سټې ئې لښکرې د ډهلی اور ته ورو خوځولې شپې او ورځې ئې پر سرو اخیستل او په یوه منډه ئې ځان ور ورساوه له ډهلی څخه (۵ ) کروهلیرې ئې په (بیره) (۱) یا (نربلا) (۲) کښی واړه ول له دې خوا د (دریا خان لودی) لښکری دغه دیرش زری فوځ او د بر شو (۳) باځلو پښتو (٤) پیلانو سره چه سلطان محمود شرقی د خپل پوستر امیر هراتی فتح خان نر مشر تابه لاندې ورسره کړی وی پسی ور ورسیدلې که څه هم د سلطان بهلول دفوځ شمیر نسبتاً لږ ؤ خو د پښتنو د ناموننګ له پاره سرونه د روند کړي ؤ او شرقی فوځ د مال او دولت له پاره ایښی راغښتی دي.

میرنی بهلول خپلی تور بالی لښکری چه بردرو بر خوویشلی وې له درو خواؤ پر شرقی لښکرو راوخوځولي او خورا کلك جنګ و نښت پخپلو سرو بې پروا پښتنو هسی توری ووهلی چه غلیم ګو نه په غاښ ورنه ونیوله . اودانې ثابته کړه چه په جنګ کښی د میړو نو میړانه په کار ده نه شمیر . نکل کا چاد اسلام خان ګرندی زوی قطب خان هسې غشی ویشتل چه په خپل وخت کښی ئې

فتح‌خان دټول شرقي فوځ په مخ کښې، پر سپور ؤ هسې له کاره ویوست چه بیا د جنګ سپک (قوت) نه‌ؤ پکښې پاته. دغې بېښې دشرقي فوځ ــو غړي وشېټول اوڅه سره ترهور شول پدغه ترخ کښې دقطب‌خان ستر ګی پردریاخان اودی ولګېدې ورزغ ئې کړه چه «پدغسې وخت کښې چه ستا خوندی او مېندی په کلا کښې بند پاتې دي؛ستاغیرت دامنلای شې چه دېر دو له خوا وجنګېږې اودخپل پت اوناموس فکر بر یښږدی ؟» (۱)

دریاخان چه‌داطعنه واوره‌پدله ورزغ ئې کړ: «که‌څوك دشا له خوا پرما بريد نه کوي زه‌به‌ستون شم » قطب‌خان لوړه (حلف) ورسره وکړه 'دریاخان مخ‌و ګرزاوه ددەبه‌مخ ګرزولو دشرقي اښکرو پښې‌له‌مځکی وختلې' هراتی فتح‌خان (چه‌پښل ئې پخوالاله کاره وتلی‌ؤ) دسلطان بهلول دیوه امیر (رای کرن )پەلاس کښېوت لځکه‌چه پخواترډې (درای کرن)و.ور (پښهوررای) ددغه فتح خـان لـەلاســه وزل شـوی ؤنوده هـم(هراتی، فتـح خـان) ووازه

او ککری ئې سلطان بهلول ته ورووړه' پەدغه جنګ لوډیو ته اوەجنګی پیلان هم پلاس‌ور غلل شرقي فوځونـه تارپەتار' کـندو کپړ'په تیښته‌لځانونه ډهلی ته‌ورسول . سلطان بهلول چه دغه سو به ومونده' د څښتن شکر ئې اداکړ دخپلو ملو پر رړو اومو ټونې آفرین ووایه اودهراتی فتح خان مړی‌ئی هلته په (بیره) پار،تریلا) کښې ښخ کړ.

## دسلطان محمود شرقی‌ستنیدل

د سلطان محمود دفوځ دماتې خبرچه‌ډهلی ته ور سید د کلا خلکو په خورا خوشالی، د کلا ساتند وی‌مشرې (مستوبی‌بی) ته حال و رؤ ړ .

راغونډي دستې ئې (مستوبي بي) ته حال راؤړ. توريالي پښتني (مستو بي بي) چه داوار و پدل؛ حکم ئې وکا چه دښادې ډولونه وډنګوي. (۱) سلطان محمود شرقي چه له کلا څخه دښادې ډولونه وارو پدل دربار يان ئې د پوښتيدل؛ «چه په کلا کښې ولي دښادې نغارې ډنګولي کيږي؟»

درباريان لا د تحقيق له پاره نه ؤ راپاخيدلي چه اودې دريا خان په خورا بده ورځ ور ورسيد. او د هراتې فتح خان دوژلي او شرقي فوځونو دماتې بد خبر ئې ور ؤړ.

سلطان محمود بله چاره و نه ليدله سمد ستي ئې جونپورته د کوچ نغارې وډنګولې او ميړنې سلطان بهلول بريالي په ډهلي ننووت کلابندو پښتنو ئې په خورا خوب هر کلي وکا او هري خواته خوشاله خوشالي شوه ښادنامې وزغيدلې، جشنونه ونيول شول او له پښتو نخوا څخه راغليو توريالو ته درانه درانه انعامونه وويشل شول وائي: ملك کـالو نومې پښتا نه مشر ته چه خلانو نه کښيښول شول هغه ئې له اخيستلو څخه نټه وکړه! سلطان بهلول چه ئې داټې سبب و پوښتيد؛ ده ورته وويل: زه په دغه جنګ کښې تېي شوی يم اوس که زه دغه خلانو نه اخلم پښتانه به وائي چه کـالو خا ن خپل تپ خرڅ کړ مادا تپ د کـام په ننګ کښي اخيستي دي، زه دا په وينو سور تپ نه خرڅوم او د اپيغور نه ورم دزخم بها اخيستل دلاسيالو کار دي ننګيالي يوالحې د ننګ له پاره ځانونه وژني او بس. (۲)

## د ملتان د پاچاپناه

د ډهلي پاچا محمد شاه (۸۳۷-۸۴۷) چه په ۸۴۰ هـ کال عيش او عشرت ته

ه کال ومړ او پر ځای ئی نر ده عیاش زوی (سلطان علاءالدین عالم شاه) کښېنوست له خپله منځه دلوی ستانه حضرت بهاءالدین ذکریا ملتانی (رح) المسمی (شیخ یوسف سهروردی) ته چه ټولو ملتانیانو مانه دملتان واك وسپاره (۱) دغه شیخ یوسف سهروردی تر۱۲ کالو پاچاهی وروسته په ۸۵۹ ه کال پخپل زوم رای سهره لنګا (۲) (چه دمحمدقاسم فرشته په قول دسیوی پښتون وا کمن ؤ)(۳) له لاسه بندی او رای سهره پخپله د(سلطان قطب الدین لنګا)په نامه د ملتان پاچاشو . شیخ یوسف د خپلی کورنی سره ډهلی ته ونښتېدا و سلطان بهلول پاچاته ئی پناه وروړه سلطان دی ډېر ونازاوه په خورا درنه سترګه ئی ورته کتل اوخپله نازولی لورده زوی شیخ عبدالله ته ور کړه(٤)

## دمبارکشاهی سیمو لاندې ره

په ۸٦۱ ه کال (٥) سلطان بهلول دخپلو لښکرو سره دمیوات او دوآبې لور ته وخوځید میواتی احمدخان ئی (چه دخضرخانی سلطان علاءالدین عالمشاه په وختو کښې دټول میوات مستقل واکمن ؤ) مخې ته راووت او دسلطان حکم ته ئم غاړه کښېښووله سلطان دده دهغه طاقت (چه تل به ئي یاغي تو ب ته پاڅا وه) د لېږ والو په غرض د هغو خوا ؤ او ه سیمې دده له واکه واېستلی او پاته ئي ده ته د جاګیر په نامه ورپرېښو ولې د احمدخان اکا (مبارك خان) ئې د ډهلی په دربار کښې دېر عمل په تو ګه له ځان سره راؤست . سلطان د (برن) یعنی او سنی بلند شهر (٦) له لاری (سنبهل) ته پسی ورغی ، دسنبهل واکمن (دریاخان لودی) ئې هم اطاعت ومانه او اوه پیلان ئې وروړاندی کړل (۷) سلطان دده او سیمې هم په پاچاهی دفتر کښې ایستلی

---

(۱) تاریخ فرشته دوهم ټوك ۳۲٤ مخ (۲) سیرالمتاخرین په ۱٤٦ مخ کښې دا نوم رای سنتهره

او نوری ئې ده ته دجا ګیر په تو ګه ورپر یښوولی. (کړل) [۱] ته پسی ورنیر شو دکول وا کمن (عیسی خان) ئې پرخپل حال پریښود ــ له کوله څخه (برهان آباد) ته پسی ورغی د (سکیت) وا کمن مبارك خان لوحانی (لوانهی) ئې هر کلی وکا، سلطان هم د (سکیت) واك بیرته د (مبارك خان) ته وسپاره (بهو ګاون) ته لخنی ولاړ او د (بهو ګاون) سیمی ئې اکه پخوا (رای پرتاب) ته چه دهغه سیمو د زمیندارانو سردارو دجا ګیر په نامه ور پر یښوولی له (بهو ګاون) څخه (راپری) [۲] ته پسی ورغی د راپری وا کمن دحسین خان پښتانه زوی قطب خان (چه، یو وخت په سودا ګری کښی دسلطان ملو) ځان کلابند کړ. خو سلطانی فوځو دیر ژر بری پر ومو ند او کلائې ځنی ونیوله. دخان جهان لودی په زیرمه قطب خان وبا خښه شو او جا ګیرئی هم بیرته ده ته ورپرېښوول شو.

د (راپری) تر نیولو وروسته سلطان (اتاوې) ته وخوځید د (اتاوی) وا کمن ئې هم دستی حکم ته اېل شو ځکه ئې نو سلطان جا ګیر بیرته ورپریښود. پدغه دوره کښی درست میوات، دوآبه او سنبهل د ډهلی په پاچهی کښی ایستلی شول او دا تولی هغه لتی وې چه، د مبارکشاه (۸۰۲ـ۸۳۷ ع) په پاچهی کښی په ډهلی پوری تړلی وې.

# دسلطان محمود شرقی دوهم برید

دجونپور پاچا چه وارویدل چه سلطان بهلول تراتاوې پوری لاسونه را اوزده کړل؛ سمدستی ئې خپلی لښکری د اتاوې او رته را وخوځولې. لښکری چه په اتاوه کښی سره مخامخ شوې؛ امری ورځ یوسپك جنګ وشو په سبائې دراپری حاکم

[۱] کومی لتی چه د ډهلي د شهید پاچا سلطان مبارکشاه ( ۸۲٤ ـ ۸۳۷ ) په لاس کښې وې هغه دی د سلطان بهلول په پاچهی پوری تړلی وی.

[۲] کومی لتی چه د جونپور د پخوانی پاچا شرقی ابراهیم شاه په لاس کښی وی هغه دی ئی د زوی سلطان محمود شرقی په لاس کښی وی.

[۳] هغه او ه پیلان چه په لمړی جنګ کښی سلطان بهلول د دریاخان فتح خان له لښکرو څخه نیولی دی بیرته به ئی سلطان محمود ته ستنوی.

[٤] شمشابات [شمس آباد] به چه د جونا خان جاګیر او حکومت دی تر برسات وروسته سلطان بهلول ته ور خوشی کیږی (۱)

داشرطونه دواړو پاچهانو سره ومنل او لښکری ئی خپلو خپلو پایتختو ته ستنې کړی.

## د (شمشابات) شخړه

برسات چه تیرشو دروغی د څلرم شرط سره سم سلطان بهلول د شمشابات شرقی حاکم (جونان خان) ته ولیکل چه شمشابات خوشی کړی، خو (جوناخان) دا حاکم ونه مانه او د شمشابات له سپارلو څخه ئي نټه وکړه. سلطان بهلول لښکری پسی وروخوځولي، جوناخان ور ته تینګ نه شو او جونپور ته وتښتید. سلطان، شمشابات خپل یو هندی امیر (رای کرن) ته وسپاره او پخپله د شاوخوا په انتظاماتو بوخت شو (۲)

## د سلطان محمود شرقی دریم برید

سلطان محمود شرقی چه خبر شو چه سلطان بهلول (شمشابات) و نیو ځکه چه ده پخپله (جونا خان) د روغی مخالفت ته پارولی ژ نو ئي سمدستی لښکری

پخوالا د سلطان محمود د برغل لار څارله او ځان ئې ورته غښتلی ؤ هغه پلا ئی
د جنګ ډول (طرز) واړاوه، مخ پر تندی جنګ ئې پرېښود، داړې ئې وکمارلې
چه له هری خوا او هر وخت به د (سلطان محمود) لښکری تر هوره کوی.

وائي: يوه شپه د اسلام خان زوی قطب خان او لودی دريا خان پر شرقی فوځونو
بريد وكا، نابېره جنګ په دا ګ کښې د قطب خان آس ټوك وخوړ او قطب خان
ځنې ولويد. د غليم سپاهيان پر را نوی شول او وئی نيو، خپل پاچا (سلطان محمود
شرقی) ته ئې ور وست، سلطان محمود ده سم د ستی د جنګی بندی په نامه (جونپور)
ته ولېږه او هلته اوه مياشتی بندی ؤ (۱) سلطان بهلول چه د خپل نوريالی ترېره
په بند خبر شو، ځکه آرام نه ور کاوه سبا سهار ئې دستی يو فوځ د شهزاده
جلال خان، شهزاده نظام خان (۲) او عماد الملك تر مشرتابه لاندی د (رای کرن)
په مرسته (چه په کلا کښې کلابند ؤ) د سلطان محمود د فوځو مقابلې لره پرېښود
او پخپله له يوه تکړه او ګړندی فوځ سره د سلطان محمود د مقابلې ته (چه څه ليری
پروت ؤ) ور وخوځيد. د خدای پېښې دی په دغه وخت کښې سلطان محمود شرقی
ومړ (۸۶۲) هـ (۳) د ملکې (بی بی راجي) په سلا ئې مشر زوی (شهزاده بهيکن)
د (سلطان محمد شاه) په نامه پر ځای پاچا کړ شو. سلطان محمد شاه جنګ وړ،
و نه باله او د بی بی راجي په زيار دده او سلطان بهلول تر منځ به دې ډول روغه
وشوه چه: د سلطان محمود (شرقی پاچا) ملك به د سلطان محمد شاه تر لاس لاندی
وی او کومی سيمی چه سلطان بهلول نيولی دی هغه به د سلطان بهلول وی. تر دغې
روغې وروسته دواړه لښکری خپلو خپلو پايتختونه ستنې شوې.

## د سلطان محمد شاه شرقی جنګ

ځکه چه سلطان محمد شاه د سلطان بهلول اخښی او ترېور (قطب خان لودی)

دسر کرښه وه او نتیجه دا شوه : څرنګه چه سلطان بهلول د ډهلي ته نژدې شو د بندي قطب خان خوره (شمسو مېرمنې) حال ور ته راوکړ چه :

«ته څو چه ننګیالی قطب خان د سلطان محمد شاه د زندان خوارې ګالي پر تاهم دخوزي خوا ګوله او د آرامی خوب حرام دی !!».

سلطان بهلول دې پیغام پرسره وسواو سمدستي له ډهلي کوره (چه له ډهلي څخه دریم تیسن دی) پېرته (راپېری) نه ستون شو (۱) سلطان محمد شاه هم له جونپوره مخ راوګرزاوه په لار کښې ئې شمشا بات د سلطان بهلول دحاکم (رای کرن) له لاسه وکیښ او پخوانی شرقي حاکم (جوناخان) نه ئې وسپاره لښکر ئې پسې ورولیږه دو لي را پرې ته ئې نژدې په (سرستې) کښې ورته وابول، څرو رڅي پر له پسې تو ري سره وخرڅیدې، پا نه سلطان محمد شاه د خپلو ورونړو د مخالفت له امله دقنوج خوا ته ترشا شو ، دډهلي لښکر ترګنګا په پسې وی او خورا ډېرې واجی ئې څني ونیولی.

## دسلطان محمد شاه شرقي او ورونړو شخړې

وائي: سلطان محمد شاه د(سرستې) دجنګ له میدانه څخه دجونپور کوتوال ته وليکل چه زما ورور (شهزاده حسن) او د سلطان بهلول تربور ( قطب خان ) چنګی بندی وژنه ! کوتوال ځواب ورولیږه: ملکه بی بی راجی (ستا مور) دواړه داسی ساتی چه ما ته ئې وژل خورا ګران دی !

سلطان محمد شاه ته چه دا خبر ورورسید دجنګ له ډګه څخه ئې خپلی مور ته وليکل: تا ته دا لته زیات ضرورت دی، با ید ژر ځان را ورسوې» بی بی راجی بیوز له چه له جونپوره مخ دجنګ پر میدان راوخوځیدله هلته دجونپور سخت زړه

نه شو هپه زړه ظالم محمد شاه چه په قنوج کښې دمور په رسید او خبر شو ور ته وئی لیکل:
د ټولو شهزادګانو حال به د شهزاده حسن غوندې وی تو ښه دا ده چه د ټولو ورور
یو ځای و کړی! ډې بی بی راجی ملکه د محمد شاه ایسته کړلو ته ویا څوله او
د خپل بل زوی (شهزاده حسین دپاچهی خیالونو پیدا شو (١)

## د شهزاده حسین تېښته او د شهزاده جلال بند

دلته چه د [سرستی] د جنګ ډاګ لا نو دؤ، شهزاده حسین [چه بیا سلطان حسین
شرقی شو] او شهزاده جلال خان د سلطان محمد شاه وروڼه (٢)
د [شهزاده حسن] په مرګ او د محمد شاه په دا پاکه اراده وغوږیدل د سلطان شه
او [او جودهنی امیر جلال خان] په سلائی سلطان محمد شاه ته وویل: ار وو چه
سلطان بهلول غواړی د [جهرنا] له غاړی د شپې پر مونږ بریدو کړی! ظالم مګر
نا پوه پاچا د دوی پدې خبره تیروت دبرش زره سپاره او دبرش [٣] یا سل [٤]
پیلان نی ور ته ور کړه چه د سلطان بهلول مخه ونیسی شهزاده حسین سلطان هم او
اجودهنی جلال خان به ملګری د خپل فوځ و نه د [جهرنا] د سیند پر غاړه وادول او
[شهزاده جلال خان] نه ئی [چه له محمد شاه سره پاتهؤ] حال ور کړ چه په یوچم فورا
ژر ځان ور ته ور سوی شهزاده جلال خان لا نه ؤ رارسیدلی چه شهزاده حسین خپل فوځ
د [محمد شاه] له بیری دا جودهنی سلطان شه په سلاقنوج ته و خوځاوه او د سلطان
بهلول هغه لښکر چه د دغه فوځ مقابلی ته د شهزاده علم خان [چه بیا سلطان علاء
الدین لودی شو] تر مشرتابه لاندی رالیږل شوی ؤ دغه ځای و نیو،
شهزاده جلال خان شرقی چه د [جهرنا] غاړی ته راورسیدل پدی فکر چه داد
[شهزاده حسین لښکری دی، برابر د دښمن [شهزاده علم خان لودی] په لښکر و ننوت

سلطان بهلول چه و لیده پر بري خوش شوه قطب خان او دي په بدله کښې ئې له ځانه سره دجنګي بندي په حیث وساته او (سلطان محمدشاه) ته ئې حال ورولیږه'
(سلطان محمدشاه) چه دشهزاده حسین په دروه او دشهزاده جلال خان په بند خبرشو دقنوج خواته ئې (لکه څنګه چه دمخه مو ولیکل) لښکري ترشا کړې او د ګنګا پر غاړه ئې واړول

# دسلطان محمدشاه وژله

## او دسلطان حسین پاچهي

شهزاده حسین شرقي چه قنوج ته ورسید سمدستي د( بي بي راجي ملکې ) او نورو امراو په سلا دسلطان حسین شرقي په نامه پاچا کړشو. دواړو ورونو لښکرو د ګنګا دسین پر دووغاړو سره واړول د(سلطان محمد شاه ) امراء سلطان حسین له ورواوښتل او تر پنځومیاشتو پاچهي وروسته سلطان محمدشاه د ګنګ مبارك له لاسه ووژل شو. دسلطان محمدشاه په وژله دشرقي پاچهي تول واك د(سلطان حسین شرقي ) په لاس ورغي.

### روغه

دسلطان محمدشاه په وژلو چه (سلطان حسین )تول واك ومو ندسمدستي ئې دسلطان بهلول سره پدي شرطو روغه وکړه :

۱ ـ هرڅوك به پرهغه ویش دریږي چه دمحمدشاه سره ترون پرشوی ده.

۲ ـ څلور کاله به یو پر بل بر بدنه کوي.

۳ ـ جنګي بندیان به سره ور کوي.

دجنګی بندیانو ترالیشولوورو سته دواړه پاچهان خپلو خپلو پایتختو ته ولیږد یدل.

## د((رای پرتاب)) راوښتل

د(بهوګاون) واکمن (رای پرتاب) چه په ۸٦۱ هـ کال (سلطان بهلول) ته ایل شوی او پرخپل ځای پریانه ؤ کله چه سلطان محمدشاه شرقی د(سرستی) دجنګ پاک نه راته پیرته دسلطان محمدشاه مل شوی ؤ ترڅو ورځی وروسته د(قطب خان لودی) په داړ اوسلا بیرته د سلطان بهلول خواته راواؤ ښت او سلطان هم وباخښه (۱)

## دشمشابات نیول

په ۸٦۳ هـ کال سلطان بهلول دسلطان حسین سره دروغی له مخی پر (شمشابات) لښکری ورو ستلې (شمشابات) ئې بیا دشرقی واکمن (جونا خان) له لاسه و کیښ او (رای کرن) ئې له خپلی خواد (شمشابات) واکمن وټاکه (۲)

## دقطب خان (۳) او رای پرتاپ خوابدی

دشمشابات تر انتظامانو وروسته سلطان بهلول (اتاوې) ته راغۍ د(رای پرتاپ) زوی (نرسنګ) ئې سلام ته ورغی سلطان ونازاوه او هغه بیرغ او نغاره ئې چه پوخت په جنګ کښی له دریاخان لودی څخه اخیستۍ وو ده ته ورکړل، دریاخان داخبره ځان ته سپکه او پیغور وباله او دهغی ژړ ی وغچ کښلو په نیامت (قصد) ئې قطب خان لودی د(نرسنګ) وژلوته ولمساوه او (نرسنګ) په پټه ووژل شو دې پیښی (رای پرتاپ) (قطب خان) او مبارک خان (٤)

## پنجاب ته تگ

په ۸۶۷ هـ کال سلطان بهلول (دهلي قطب خان لودي او خان جهان وزير ته وسپاره او پخپله ئې لښکري د ملتان د باغي حاکم لخوا او د پنجاب د انتظام په نیامت له دهلي څخه وخوځوله خو په لاره کښې خبر شو چه د سلطان حسین شرقي لښکري مخ پر دهلي را روانې دي ځکه ئې نو د پنجاب کار نیمګړی پرېښود او په خورا تلوار د شرقي لښکرو مخ نیوي له د دهلي ته ور ستون شو (۱).

## دسلطان حسین شرقي لمړی برید

کله چه سلطان بهلول خپلې لښکرې د پنجاب او ملتان خوا ته وخوځولې سلطان حسین شرقي دا ګټه وموندله او د دهلي لور ته ئې خپلې درنې لښکرې او پیلان را ولیږدول سلطان بهلول چه له نیمې لارې دهلي ته راغلی ؤ مخ ئې ورووت په (چندوار) کښې لښکري سره مخامخ شوې اته ورځې کلک جنګ وشو بیا ځینې امراء منځ ته سره راغلل او دهر بو کلو له پاره ئې دنه برید تړون سره وکړ (۲)

په دغه جنګ کښې میواتي احمد خان او د کول حاکم (رستم خان) د سلطان حسین شرقي خوا ته وروا وښتل او (تاتار خان لودي) د سلطان بهلول مل شو (۳)

## دمیواتي احمد خان ځپل

سلطان بهلول چه د (چند وار) د جنګ له پا ګه د دهلي ته را ستون شو سمدلاسه لښکري د میوات لور ته د احمد خان د ځپلو په نیامت وخوځولې خو

# د سلطان حسین شرقي دوهم برید

دا بريد پر دې کال ترون دوهدې خواږي سره ودر بدلې او تر درو کلو پورې د سلطان بهلول او سلطان حسين تر منځ هيڅ جنګ و نه شو مګر په دغو درو کلو کښې دې دوه لوي جنګ له پاره کلکې تيارۍ نيولې کېدلې درې کاله چه تېر شول سلطان حسين شرقي ډېلار په ځير د ډهلي په نيامت پولك سپاره او دو زر پيلان راوليږل د ول (۱) (اټاوه) ئي و نيوله او احمد خان ميواتي او د (کول) حاکم رستم خان ئي خپلې خوا ته بياوړل (۲) دبيانې حاکم د يوسف خان جلواني زوي احمد خان خو په (بيانه) کښې د سلطان حسين پر نامه خطبه هم وويله (۳) سلطان بهلول چه پخوا له دې بريد نه سترګې نيولې وې او په ډهلي کښې چمتو وز ته ناست ؤ د لښکر و سره راووت په [بهټواره] ( ) [باتهواره ٥) [يا کود کان] (٥) کښې ئي د شرقي فوځو مخه و نيوله څو ورځې دواړو لښکرو سره انډولي وو پخوا تر دې چه جنګ وشي د (لودي خان جهان) په زيار بيا روغه و شوه سلطان بهلول ډهلي او سلطان حسين جونپور ته لښکري ستني کړې.

## مرسته غوښتل

سلطان بهلول په ۸۷۳ ه کال شيخ محمد پرملي او د ګوالياردر اجا زوي (کپور چند) د استاځو په حيث د مالوې پاچا (سلطان محمود خلجي) ته وليږل او د سلطان حسين شرقي په ضد ئې د بيانې د ور کولو په بدله کښې مرسته غښتې وغو ښتله سلطان محمود خلجي په ځواب کښې ورته وويل: «ښه دي

## د سلطان حسین شرقي دريم بريد

له دوهمي روغې څخه لږ وخت نه ؤ تېر شوی چه سلطا حسين بيا پر ډهلي لښکري راوليږدولي سلطان بهلول ئی په (سنکهره) کښې مخه ونيوله (۱) څو ورځې جنګو نه سر موشول يوه روځ چه (کولي) رباط ته نژدې له سهار څخه تر ماز ديګره پوري لښکري په جنګ سره اخته وې سلطان بهلول ته دې خونړيزيو خوند ورنه کړ سرته ددې چه د شپېتو کالو سړیؤ سلطان حسين ئی د بوا څخه جنګ له پاره ډاډ ته راوباله سلطان حسين چه څان ددې بښتانه پهلوان ساري نه ليد په خپله ورته راونه ؤت او خپل يو نلی پهلوان (رغبت خان) ئي ورته ورو ليږه سلطان بهلول په دې ګمان چه دا پخپله سلطان حسين دی بريد پرو کړ ډ يري توري سره وخرچيدی سلطان بهلول سره ددې چه څو ځايه د (رغبت خان) له لاسه ټپي شو پای ته ئي پر رغبت خان بری ومو ند اووئي واژه د شپې تياری چه لښکري سره بيلي کړی سلطان حسين چه د سلطان بهلول په ټپي کيدلو پوه شوی ؤ د شپې بريد پری وکړ مګر سلطان بهلول د ر سته شپه جنګ وکړ او په ميدان کښې کلک ودرېد او ئی پدغه شپه ډېر ميړونه سره ووژل شول او شرقي فرڅو نه تا کام تر شا شول سبا ته بيا د امراؤ په زيار روغه سره وشوه سلطان بهلول ډهلي او سلطان حسين اتاوې ته ولاړ (۲)

## د ملتان بريد

په ۸۷٦ (۳) يا په ۸۷٤ هـ کال (٤) چه د ملتان پا چا سلطان قطب الدين لنګاه ئی سهره ومړ او پر ځای ئی زوی (سلطان حسين لنګا) پاچا شو. سلطان بهلول

ورسیدلی اوعید گاه سره ئی واړول سبا سلطان حسین دلسوزرو سرتیرو میړنو سره راووت په‌لمړی حمله کښی دشهزاده مبارک(باربك شاه) لښکر و ماتی وکړه په لاره کښی ئی د(جسونت) یا (جنبونت) دکلا حاکم وواژه او پنجاب ته ناکام ستانه شو ل .

## دکشمیریانو لمړی برید

په ۸۷۷ هـ کال چه شاه حیدر د کشمیر پاچاشو ، دآدم‌خان‌زوی فتح‌خان ئی(چه بیا دفتح شاه په‌نامه د کشمیر پاچاشو) له‌ډیرو لښکرو سره د پنجاب خواته‌ورواستاوه فتح‌خان ناځاپه ددا‌ړی په صورت ترسر هند پوری ټو لسی سیمی تالا کړی او بیر ته کشمیر ته و خوت (۱)

## دکشمیریانو دوهم برید

په ۸۷۸ هـ کال‌چه‌دشاه‌حیدرزوی‌شاحسن‌د کشمیر پاچاشو ملك احمدئي خپلواك وزیر شو . دجمو درا جوا‌ړي راجا (عجب د یو) دپنجا بی پښتنا نه وا کمن (تاتارخان‌لودی) له‌لاسه ډ یر په عذا ب ؤ له ملك احمده څخه ئی مرسته وغوښتله ملك احمد یودرو ند لښکرد(ملك باری‌بټ)ترمشرتابه لاندی ورسره کړ‌دي لښکرو ناځاپه پرپنجاب بریدوکړ ډیری سیمی‌ئی تالا کړی «سیالکوټ» ئی وران کړ او بیرته کشمیرته وختل (۲)

## دسلطان حسین‌شرقی څلورم برید

۸۸۳ هـ

سلطا ن حسین شرقی چه « بدا یو ن » د خپلی خسر کنی له لا سه و کیښ « سنبهل » ته ...

لښکری چه تاریخ فرشته یې لیك وځنو پښت زره سپاره بللي دي له یوزرو څلورسوو
پیلانو سره دډهلی لورته راولیږدولی (۱) سلطان بهلول که څه هم په دغه وخت
کښې د کشمیریانو دایداد په نیامت (۲) سرهند ته تللی ؤ .

مگر دفاعی ترتیب او انتظام ئې خورا مکمل ؤ ، ځای پر ځای لښکری
پرتې وی دسلطان حسین درا خوځیدو په اوریدلو سره ئې دخان جهان زوی
[حسین خان] له [میرتهه] څخه مقابلې لره و گماره او بخپله له سرهنده څخه
ډهلی ته راغی دسلطان حسین شرقی له خپل درانه لښکر سره د[جمنا] پر غاړه
د[جوسا] گودرته نژدی واړول سلطان بهلول هم له اتلسو زرو پښتنو میړو
سره ورته راووت او دسین پرها بله ژی ئی واړول (٤) له دواړو خوا ؤ په
نښتو پیل سره وشو کله به یوه بری موند کله بل ، دواړو لښکرو یوه لوی
او فیصله کن جنگ ته ستر گی نیولی وی. تکل کاچه دسلطان حسین شرقی دی
درانه فوځ داپلا سلطان بهلول څه وارخطا کړ سلطان حسین ته ئې حال
ورواییږه چه : «ډهلی ترانلسو کروه پوری ماته راپریږده نوری سیمی چه
تانیولی دی هغه ئې ستا! دمسلمانو وینی به نه سره تویوو او ته ما په ډهلی کښې
له خپلی خوا دتا کلی حاکم په حیث و گڼه!» مگر په خپل قــوت مغرور ه
سلطان حسین دده دا کښه غاړه نه ومنله (٥) وائی سلطان بهلول چه له روغی
نا امیده شو یوه شپه دسید نا پښتانه بختیار قطب الدین کاکی [رحمة الله علیه]
زیارت ته ولاړ او هلته د رسته شپه اتخ سر خدای ته په عجــز او نیاز
ولاړ ؤ او هغه لوی دربار ته ئې دخپلې سوبې لســه پــاره لا سو نه
پــورته کــړی وو ، سپــینه و نــه نــژدی پــر پښتا نــی پــوه وه

سلطان بهلول چه داخوب ولید پرخپل بری ئې ټینګ باورو شو خدای پاك ته ئې د شکر سجده وکړه خپلو لښکرو ته ئې مخ راو نیو او د خدایی مرستی په توکل د هغو لیوانو د شړلو په فکر کښی شو (۱)

ځینی وائی د مغروره سلطان حسین امیران او زیات شمیر لښکری د شاو خوا سیمو نیولو له سره ولاړې؛ سلطان بهلول چه دا موقع له خدایه غوښته سره ددې چه د جمنا د سین د خړو طغیان وخت او د برسات قابې ؤ؛ سلطان بهلول تر یوه پایاب کدر خپلی لښکری وږیوری ایستلې او د مغروره سلطان حسین پر لښکرو ئې ناڅاپه برید وکړ د سلطان حسین د لښکرو باته امیران وارخطا شول او سلطان حسین ئې تیښتې ته مجبور کړ (۲) مګر ځینی وائی: لودی قطب خان چه څه وخت د مخه د جونپور په دربار کښی د جنګی بندی په حیث څو میاشتی او سیدلی او بیا د بی بی راجی ملکې د باتباله پاره د سلطان حسین حضور ته ورغلی ؤ او د سلطان حسین سره ئې له نژدې پیژندل په پټه د یوه استاځی په لاس د سلطان حسین شرقی دربار ته پیغام و لیږه:

«زه ستا د مور (بی بی راجی مرحومې) زیات ممنون یم ځکه کله چه زه په جونپور کښی جنګی بندی وم ددې پاك لمنی زما سره ډیر ښه کړی دی نو زه د هغو حقوقو له مخی چه ستا مورئې پر ما لری تا نه سلا در کوم چه د سلطان بهلول سره روغه وکړې او بیرته لښکری ستنی کړی د ګنګا پوری خوادې ستا وی او د ګنګا دا خوا سلطان بهلول ته پریږده هیله کوم چه ته دا ومنې!» سلطان حسین شرقی )هم دا روغه ومنله او له ډهلی څخه ئې لښکری ستنی کړی (۳) زما په عقیده ددې د و هم سبب معقولیت نشته ځکه هغه سلطان حسین چه د سلطان بهلول پواځی د ډهلی حکومت ئې هغه هم په ده له خوانه مانه او د سلطان

نش ییغـا م تر گـگـا یوري دتولو نیوالو سیمو په خوشی کـړو لو راضی کیږی
او بې تکو یو لښکری ستنوی په هر صورت د سلطان حسین د لښکرو د تیښتې یا ستنیدلو
پـه حال کښی سلطان بهلول له خپلو لښکرو سره تر شا برید پر وکړ، څه خزانه
او جنګی سامان ئی چه پر آسو او پیلانو بار و، په واجه کښی ځینی راو کرزول
او ځلو یښت تنه درانه امیران یې لکه قتلغخان وزیر (۱) چه (دخپل وخت په علم
او هوښیارۍ منلی شخصیت ؤ) او ملك بدهو دعرض نائب بندیان ځني و نیول،
دې ناڅاپه برید د مغرور سلطان حسین لښکری ښه وځپل‌ځپېر لې، سلطان
بهلول نور هم پسی ور نیر شو او د بټیالی کهپنل 'جالیسر' شمشا بات ' سکیت'
کول' مارهره او جلالی سیمی ئی ځني و نیولې' خپل خپل حاکمان ئې پکښې
وناکل او سم په سلطان حسین پسی ؤ. (سلطان حسین) چه بې جنګه خپل
خلاصون ځني و نه لید؛ مجبوراً ئې په (رام پنجهره) (۲) یا (راپړی) (۳) یا
(پنجهوارن) (٤) کښې مخ راو کرزاوه او جنګ ته ئې اېنځی سره راو غښتلې
مګر روغه سره وشوه او (دهنو یامو) ئې سرحد سره وټاکه په دې روغه سره دواړو
پاچهانو پر خپلو ملکو سکته وکړه او دواړه فوځونه د جنګ له ډاګه سره تر
شا شول 'سلطان حسین په 'راپړی) او سلطـان بهلول په (دهنو یامؤ) (۵) یا
(ډهلی) (٦) کښی ورته راړول.

## د سلطان حسین شرقی هینځ برید

د سلطان حسین شرقی ځلرم برید دده د پاچهۍ د ژوندیدلو مقدمه وه مګر
ښنې سلطان حسین کله په آرامه کښینوست د ابل کال ئې بیا (۷) یا تر کال

---

(۱) د دغه قتلغخان وزیر نوم قاضی سماءالدین دی (۸۰ مخ تذکره علمای هند)

(۲) تاریخ فرشته امری جلد ۱۷۷ مخ

لاد مخه (۱) د ډهلی خواته لښکری راوبهو لی په (سونهار)(۲) یا (سنهار ن)
(۳) کښی ئې سلطان بهلول مخه ونیوله کلک جنګ وشو. سلطان حسین
بیا ماتې وکړه (راپری) ته ئې ځان ورساوه د پر جنګی سامانونه ئې د او دیو په لاس
کښېوتل سلطان بهلول بسی ورتیر شه په د هویا دوا کښی ئی ورته واړول.

## دلودی خان جهان مړینه

یوه وخت کښی چه سلطان بهلول له سلطان حسین شرقی سره په جنګ
بوخت ؤ د ډهلی نیابت ئی (لودی خانجهان) ته چه ده خورا ور تېر وزیر ؤ
سپارلی ؤ دخدای پېښی دی خان جهان لودی په هم دغه وخت کښی چه سلطان
په (دهو یامو) کښی اړولی ؤ په ډهلی کښی ومړ سلطان ده زوی احمدخان
ته دخان جهانی لقب او د ډهلی نیابت ورکړ. (٤)

## دسلطان حسین تېښته

«۸۸٤ هـ»

سلطان بهلول چه دخان جهان لودی له یاتاڅخه فارغ شو بیر سلطان حسین
ئې چه په (راپری) کښی اړولې ؤ برید وکړ، دسلطان حسین د فوځو پښې
وختلی او سلطان حسین بخپله د (ګوالیار) لورته مخ و نیو د (جمنا) ترسین
چه پورې ؤ ت د پر امیران او سپاهیان ئې اوبو یووړل. ګوالیار ته چه ورسید،
دګوالیار راجا (کرت سنګه) (۵) یا (کرن سنګه) (٦) ئې مخی ته راووت
څو لکه تنګی، د براسان پیلان او نور جنګی سامان او ضروریات ئې دمرستې
په نامه وروړاندی کړل او تر «کالپی» پورې ئې ملګری ورسره وکړه (۷).

---

(۱) مرقع افغان ٦۳مخ

## د اټاوې نیول

سلطان حسین چه له راپرې شخه ماتې وکړه سلطان بهلول د «اټاوې» سیمې ته لښکرې وخوځولې دسلطان حسین ورور «ابراهیم خان» او هیبت خان ئې په اټاوه کښې کلابند کړل ، درې ورځې ور وسته ئې امان وغوښت او [ اټاوه ] ئې سلطان بهلول ته وسپارله ، سلطان بهلول داټاوې حکومت [لودی ابراهیم خان] ته ور کړ (۱) او ځینې سیمې ئې [ رای داناء ] ته دجاګیر په توګه ور کړې .

## دکالپې جنګ

سلطان بهلول چه اټاوه دسلطان حسین درورله لوتوو کښېله کالپې ته ئې په سلطان حسین پسې بهې راو غښتلې سلطان حسین چه خبر شو دګوالیار دراجادمرستې په هڅه ئې تر کالپې دباندې په[رانو کا](۲)یا [ رای ګاون] (۳) یا[زرنګار](٤) نومې ځای کښې دسلطان بهلول دفوځو مخه و نیوله ځکه چه د[جمنا] سین ترمنځ ؤ. جنګ څومیاشتې اوږد شو .یای ته د[بکسر] حاکم [رای تهراوك چند]دسلطان بهلول حضورته ورغی او د [ جمنا] د سین تر یوه پې ګدر ئې دلودیو لښکرې پورې ایستلې (٥)دسلطان بهلول د لښکرو په تشو وریورې وتلو دسلطان حسین دفوځو پښې له ځکې وختلې او د[تهټه] درا جا ملك ته ئې مخ ونیو (٦)

## د قنوج جنګ

جو نپوره ورسره کړ (۱) سلطان بهلول چه خبر شو چه سلطان حسین [جو نپور] ته مخ نیولی دی لښکری ئې [جو نپور] ته پسی وروخوځولی، سلطان حسین د بهرایچ له لارې قنوج ته ځان ځنی وکینښ، سلطان بهلول سم پسې ؤ، څو قنوج ته نژدی د [رهت] دسین پر غاړه بیا سره ونښتل سلطان حسین ماتې وکړه بهار ته وتښتید ډیر مالونه او بندیان ئې دلودی لښکرو په لاس کښېوتل په دغو بندیانو کښې دسلطان حسین ملکه [بی بی خو نزه] (۲) دخضر خان دلمسی [سلطان علاء الدین عالمشاه] لور هم وه چه سلطان بهلول په خورا عزت او درناوی وساتله (۳) او په ډیره درنه وضع او احترام ئې سلطان حسین ته ورواستوله (٤) سلطان بهلول تر دې سوبې وروسته دجو نپور حکومت [لوانی مبارك خان] ته وسپاره، قطب خان لودی او مبارز خان ئې په [مجهولی] کښې پرېښوول پخپله ئې [بداون] ته لښکری ستنې کړې او هغه سیمی ئې ونیولې (۵)

## دسلطان حسین راستنیدل

(۸۸٤ هـ)

سلطان حسین چه دسلطان بهلول په ستنېدلو خبر شو سمد ستی ئې بیر ته لښکرې پر (جو نپور) را وبهولې (لوانی مبارك خان) چه ئې په ځان کښې دجنګ توان نه لید (جو نپور) ئې ورپرېښود او (مجهولی) ته ئې قطب خان لودی ته ځان ورساوه سلطان بهلول چه داواورېدله دستی ئې بوتکړه لښکر

---

(۱) تاریخ فرشته لمړی جلد ۱۷۸ مخ

(۲) خونزه دهغو وختو دشهزادګیو له پاره معمول خطاب ؤ، دسلطان احمدشاه بهمنی دلور (حمیرا) خطاب (خوانزا) ؤ، دا شهزادګی دشاه محب‌الله ښځه وه دسلطان محمد شاه بهمنی دیوې لور (فاطمې) او دبلې لور (نظام) خطابونه هم (خوانزا) وو (خوانزا فاطمه) دشاه محب‌الله دزوی (شاه عطیت‌الله) او (خوانزا نظام) [illegible]

دخپل زوی مبارك خان (باربکشاه) ترمشرتابه لاندی دقطب خان مرستی لره ورولیږه او ترشاڼي درني لښکري پخپله جونپور ته یسي ولیږ دولي سلطان حسین چه دسلطان بهلول دوررسېد لوزغ واروېد بي له جنګه ئي جونپور پرېښود او بهار ته وتښتېد (۱) پدغوورځو کښي قطب خان ومړ (۲) سلطان بهلول څوورځي د(دهلي) په کلي کښي دقطب خان لودی دپا تـالـه پـاره واړول تر پاتا وروسته ئي جونپور ونیو خپل زوی مبارك خان ته ئي د(باربکشاه) خطاب ورکړ او په ۸۸٤هـ کال ئي دجونپور پرتخت کښېناوه (۳) ·

## تر دهلی پوری

سلطان بهلول چه خپل زوی (باربکشاه) دجونپور پر تخت کښېناوه اودلمرختیزو سیمو له انتظـامه ئي فراغت ومو ند ، له جونپوره ئي لښکری راستنې کړي کالپی ته راغی د کالپی حکومت ئي تر(دیوګړه جاندیه) پوري خپل لمسی اعظم همایون (دخواجه بایزید زوی) ته وسپاره له کالپی څخه ئي د(چندوار) له لاري لښکري (دهولپور) ته وخوځولي د(دهولپور) راجائي حکم ومانه پنځوس منه سره زرئي ور وړاندي کړل سلطان له دهولپور څخه (باری) (٤) یا (ندارهٔ ماری)(٥) ته راغی ددغه ځای حاکم (جمال خان)(٦) یا (آفتاب خان) (٧) ئي هم حکم ومانه او (اوه منه) سره زرئي دخپلې ګنډیه توګه دسلطان حضورته وړاندې کړل سلطان د(باری) حکومت بېرته ده ته وسپاره او د(لهاپور) او [رنتهپور] لورته ئي لښکري ولیږدولې هغه سیمې ئي تالا کړي بتخانې ئي ونړولې او دهغو پرځا ئي مسجدونه ودان کړل مؤذنان، خطیبان ئي بکښې وګمارل او له هغه ځایه دهلي ته بریالی راستون شو (۸) ·

---

(۱) خورشید جهان ۱۹ مخ

## دسوبی (فتح) جشن

سلطان بهلول چه دجونپور، کالپی بدایون، دهولپور، باری، او نتهپور له سوبو څخه ډهلی ته راستون شو یو پاچاهی جشن ئې جوړ کړ دهغو ښتنو میرو پرسروئې چه پهدغوسوبو کښې ئې توري وهلی او میړانې کړی وی په عام دربار کښې طلاوی او مرغلرې وباشلی ډیر بخششونهئی ور نه وکړل، سپاهیان ئې ونازول او دمحتاجو رعتیو پرمخ ئې دخزانو دروازې خلاصې کړی (۱).

## د(پالن‌پور) برید

په ۸۸۹ هـ کال سلطان بهلول دمالوې دپاچاهی پر بوه شمالی سیمه «پالن پور» برید وکړ پدغــه وخت کښې دمالوې پاچا «دخلجی سلطان محمود زوی» سلطان غیاث الدین «۸۷۳ـ۹۰۶هـ» ؤد «چندیری» حاکم شیرخان ئې د «دسارنګپور» او «بهیسلی» دلښکرو سره دسلطان بهلول جنګ ته راولیږه، شیرخان چه بیائی تهرا رسیده سلطان بهلول ډهلی تهستون شو. شیرخان چه تر بیائې پسې وزتیږ بده د «پالن‌پور» په بیرته‌ور کړه روغهسره وشوه او لښکرې خپلو خپلو مراکز و ته سره ستنې شوی «۲».

## دګوالیار لمړی برید

سلطان بهلول دپالن‌پور تر بیښبیورو ستهد ګوالیار لور تهلښکر ې وخوځو لی دګوالیار راجادوه لکه سرې تمکی وروړاندې کړې سلطان هغه ځنی ومنلی نور ئې څه ور تهونهوبل (اتاوی) تهولاړ. داتاوی حکومت ئې چه څهوخت دمخهد (رای دانداژوی (سکیت سنګهه) نهور کړی ؤ بیرته ئې ځنې واخیست د ( ګوړ کهپور) لور نه پسې ولاړ اودهغې سیمی حکومت ئې ( معظم خان علیزی ) ته

## د هیواد د ولایاتو ویش

سلطان بهلول چه د ګوالیار له بریده څخه راستون شو ، عمرئې انیا کلو ته نژدې ؤ ، په ځان کښې ئې د ضعف علامې ولیدې او مملکت ئې دادارې په غرض برخې برخې کړ ، دهرې برخې د اداره ئې په لاندې ډول یوه یوه سړي ته وسپارله او هغه ئې مسئول وټاکه :

جونپور او لمر ختیزې سیمې ئې خپل زوی (باربکشاه) ته
بهرایچ ئې خپل خوریی [کالاپهاړ] ته
کړه مانکپور ئې خپل زوی [عالم خان] ته
کالپې ئې خپل لمسی ( اعظم همایون ) ته
بداون ئې د خان جهان لودي زوی خان جهان ته

د ډهلي او دوآبه ئې شهزاده نظام ته ور کړ او دولیعهدۍ د پاره ئې هم شهزاده نظام وټاکه

(۱) ځکه چه د سلطان تر ټولو مشر زوی [خواجه بایزید] د یوه مریې له لاسه وژل شوی ؤ .

## د سیدانو مرسته

د کشمیر پاچا شاه حسن چه ومر سید حسن خسر ئې او ه کله زوی محمد شاه پاچا کړ د کشمیر واک ټول د سیدانو په لاس کښې ؤ . نورو امراو د جمو د راجا په سلا [چه د لودي تاتارخان له بیرې ئې کشمیر ته پناه وړې وه] یوه شپه نوموړی سید حسن د دربار څخه نورو سیدانو سره و واژه او د سید حسن زوی سید محمد [چه د محمد شاه ماما ؤ] د مخالفینو جنګ ته لیږلی راوغښتلي او د پنجاب حاکم لودي تاتارخان څخه ئې مرسته وغوښتله ، لودي تاتارخان هم په ۸۹۲ ھ کال یو تکړه لښکر

## دګواليار دوهم بريد

سلطان چه دملك اداره سره وه پشله د آرام او هوسايۍ لپاره (حصار فيروزه) ته ولاړه څه وخت ئې هلته تير کړ چه ډهلي ته راستون شو اتيا کلن پهلوان ته دکارې ژوند خوند ورنه کړ سدد ستي ئې انبکري سره تياري کړلې او د ګواليار لورته ئې بيا ولېږدولې دګواليار راجاورته ابل شو او اتيا لکه تنګي ئې دنذر په توګه دسلطان حضورته وړاندي کړلې (١) سلطان بيرته دګواليار حکومت د ده ورپرېښود او د (اټاوې) له لاري دډهلي په نيامت راوخوځيد (٢)

## دسلطان بهلول مړينه

سلطان بهلول چه دګواليار له بريد څخه دډهلي په نيامت (اټاوې) ته راوخوځيد پرلاري ناروغه شو چه له اټاوې څخه د (سکيت) په شا خوا کښې تلا و لې (علي ګړه ضلعې) ته راورسيد ناروغي دمره کلکه شوه ځکه چه پخوائې لا دوليعهدۍ له پاره شهزاده نظام تا کلی ؤ نو ئې دخپل پوه خبر او رتيرا ميريه لاس د ده ته دادوه و صيتونه ورواستول:

١- د (سور) له قامه څخه به هيڅوك اميريا خان نه مقرر کوې ځکه ددوي په سرو کښې دپاچاهۍ خيال دی.

٢- د (نيازي) قام هيڅ به نه نوکر کوې ځکه چه داخلق يې ډير ونه او نمکحرامه دي.

وائي په غوږختو کښې دوليعهدۍ پر خبره داميرانو تر منځ څه اختلاف پيښ شو پرپيا وړی اميران دخواجه بايزيد دزوی اعظم همايون دوليعهدۍ له پاره تينګ ؤ سلطان ځکه مجبور شو چه شهزاده نظام له ډهلي څخه راوغواړي

سلطان بهلول د۸۹٤ هـ کال دبرات (شعبان) په میاشت کښی داتیا کلو په عمر د تاریخ داؤدی په قول ترخلور خلویښتو کالو اودطبقات اکبری په قول ترانه دیرشو کالواوانومیاشتواواتوورځو پاچهی وروسته په (ملا ولی) یا (بهداولی) پاجلالی نومی ځای کښی (چه دسکیت په شاخوا کښی دی) بوړیري کړ، جنازه ئې ډهلی ته راوړه شوه «اودسیری، په کلا کښی دنصیرالدین چراغ ډهلی دهدیری ترڅنګه ښخ کړشو ¹» (انالله وانااليه راجعون) دسلطان دوختو یوه شاعر دد ه مړینی نیټه داسې لیکلې ده:

بهشصد و نود و چهار رفت از عالم * خدیو ملك ستان وجهان کشا بهلول
به تیغ ملك ستان بود ليك دفع اجل * بود محال به شمشیر و خنجر مصقول

## د سلطان بهلول پر هدیره

شیخ سماءالدین « ² » چه دده وختو یو خورا منلی عالم او رسیدلی ستانه و یوه روځ دسلطان بهلول هدیری ته ورغی. نیکل کا کله چه ئې سر له مراقبی څخه راپورته کړ، وی فرمایل: « که څه هم ددې سړی ژوند په عیش و عشرت او کامیابی کښې تیر شوی دی آخر ئې هم خدای پاك دښو سړو سره د ناستې ولاړی په نسبت په خیر کړیده او اوس هم غوره رتبه لری » (۳)

---

(۱) داځای تراوسنی ډهلی دباندی تقریباً لس میله لیري دقطب صاحب لمرختیز پلوته دیو میل په فاصله واقع دی ددغه کلي پرشاوخوا یوه کلاهم راګرځیدلې ده اوس دغه کسلی



دچراغ کلاور له دباندی خوا ښځه

(په دغه کلاکښې دسلطان بهلول اودی هدیره ده)



د دهلي په چراغ کلاکښې
دالمتوکل علی الرحمن سلطان بهلول لودي (۸۵۰-۸۹۴ ه) هدیره



دالمتوکل علی الرحمن سلطان بهلول لودی دهدیري یوشیشاك چه قل‌هو الله احدا وقل اعوذ
برب الفلق ئې پرډبرو نقش شویدی



دالمتوکل علی الرحمن سلطان بهلول لودی قبر ۔



دشیخ نصیرالدین (چراغ دهلی) هدیره چه سلطان فیروزشاه (۷۵۲- ۷۹۰ه) کښې بیجوړه کړېده
دشیخ نصیرالدین مړینه (۷۵۷ه) کال دروژې دمیاشتې پراتلسمه پېښه شوېده

# دسلطان بهلول دوختو خطابونه

په هندوستان کښې دمسلمانانو دپاچهئ په هره دوره کښې دادودۀ چه له پاچاهی دربارهٔ څخه به ځینو ځینی خطابات او القاب ددربار مقربینو ته ورکړه کېدل لکه :

الغ خان، قتلغ خان، قدرخان، ارکلیخان، باربك، نایب باربك، غرس خان ظفرخان، دریاخان تا تارخان، خسرو خان، بهرام خان، نصرت خان شیرخان، کشلوخان، دستورخان، مبارزخان، اقبال خان، دولت خان، اعظم الملك معین الملك، سرورالملك، اسلام خان، صدرجهان، خانجهان، خان خانان او نور.

دسلطان بهلول غازی اووده داولادې دوختو دربارې چگ خطابات دادی :

۱ ـ مسند عالی :

دا لقب لمړی ځل خضرخان چه تر کود تیمور وروسته دډهلی پاچاشو، دځان له پاره غوره کړ دپښتنو سیدانو په پاچهئ [خضرخانی کورنئ] کښې دا لقب تر ټولو غوره او خورا ممتاز لقب ؤ، سلطان بهلول بی [عمرخان شروانی] څخه بل چاته دا خطاب نهٔ ورکړی مګر درنو امیرانو ته چه بهٔ یې فرمانونه لیکل د غه خطاب بهٔ یې عام ورته لیکه. دا خطاب دډهلی له دربار څخه نورو دربارو ته هم ولاړ دمالوې دخلجی پاچهانو په کورنئ کښې دسلطان هوشنګ زوی [محمد شاه هم په ۸۳۸ هـ کال خپل یوه خورا ورتیروزیر [ملك مغیث] ته دا خطاب ورکړ (۱) دسلطان ابراهیم لودی په وختو کی دا خطاب بهکهاری خان پرملی درلود (۲).

۲ ـ اعظم همایون :

دا خطاب لمړی ځل دمالوې پاچا سلطان محمود خلجی په ۸۳۹ هـ کال خپل یوه خورا ورتیر امیر [خان جهان] ته ورکړ (۳) او دمالوې له دربار

لمسی[دخوانیمرګ خواجه بایزیدزوی] ته ور کړی دی، دسلطان سکندر
په وختو کښی دپرملی خان خانان لمسی خسروخان او باشیروانی اعظم همایون
ته داخطاب ور کړ شو، بابرمغل داخطاب دخپل زوی [همایون] په نسبت
ایسته کړ(١)

### ٣ـ خان جهان:

داخطاب دخلجیانو تر دوری دمخه لا معمول ؤ(٢) دتغلقشاهانو په دوره کښی زیات
شو او دشاهجهان مغل تر زمانی پوری باب «رواج» ؤ دسلطان بهلول په وختو
کښی داخطاب یوالخی [اودی خان جهان] ته ور کړ شوی ؤ چه هغه و مړ
بیائی زوی ته داخطاب پسی ور کړ شو او دسلطان سکندر په وختو کښی دپرملی
خان خانان زوی ته دخان جهان لقب ور کړ شو، بابر مغل پښتانه امیر [فتح خان
شروانی] ته دا لقب ور کړ(٣)

### ٤ـ خان خانان:

دپرملی دخلجی پاچاهانو په وختو کښی رواج ؤ. سلطان جلال الدین خلجی
خپل مشر زوی ته دا لقب ور کړی ؤ(٤)

دپښتنو سیدانو دکورنی خوراولنی خطاب ؤ په ٨٢٤ هـ کال داخطاب دسلطان
محمدشاه له خوا سلطان بهلول ته ور کړ شوی ؤ دسلطان بهلول په وختو کښی
داخطاب پرملی خان خانان، لوانی خان خانان اوداسد خان زوی خان خانان
ته ور کړ شو دسلطان سکندر په زمانه کښی دخان خانان خطاب چا ته نه دی
ور کړ شوی، دسلطان ابراهیم لودی په وختو کښی علیخان پرملی خان خانان

گټل کېده بابر د ناسیاله دولت خان لودي‌زوی (دلاورخان) ته دا خطاب ورکړ او دا کبر مغل په‌زمانه کښې بیرم‌خان ترکمن ته ورکړشو.

## سلطان‌بهلول او پښتونخوا

سلطان بهلول سربېره پردې چه د(روه)او کسې غره دپښتنو سره ځورا نژدې تعلقات لرل او تل به ئې خپل فوځي طاقت د کسي‌غره په‌تازه دمو ځلمیوزیاتاوه، دقندهار دسیمو پښتانه ئې هم نه‌ووهېر کړی دده‌او دده دزوی( سلطان سکندر) په‌وخت‌و کښې دقندهار دابدالیو مشر بامی‌خان( چه‌دبامیزوپلار دی)ؤ (۱) سلطان بهلول به تل ښه ښه سوغاتو ته ورته لیږل او پښتنوالی‌او قام گډلوی مناسبات ئې ورسره ساتل(۲) ځکه بامی‌پرخپل یوه لمسی( بهلول) نوم ایښې ؤ (۳) سلطان ابراهیم هم دپلار او نیکه دادود ویاله‌او دتخت ته‌ختلو په جشن کښې ئې دبابل خان او دلاورخان په‌لاس دقندهار او کسي‌غره پښتنو مشرا نوته درانه سوغاتونه ولیږل(٤) دسلطان سکندر په‌دربار کښې مشوانی محبت خان او خلیل خان، اودل [درانی] چه‌په هیبت‌خان مشهورؤ اود سلطان ابراهیم په‌یا چهی کښې‌دسر هندحاکم، کریمداد توخی، دملتان دځینوسیمو حاکم معرفت‌خان ابدالی اودخوساب حاکم‌عیسی‌خان اودل(درانی) قندهاری امیران‌وو(٥) د [رهتک] په [کوهانه] کښې‌چه کاکړان آباددی ده‌وی نیکه گان دسطان ابراهیم په‌وختو کښې له‌بوری شخه د عبد العلی کاکړ ترمشرتا به لاندی ورغلی‌دی (٦) اودبهار د[سارن] دسیمو قندهاری پښتانه دسلطان سکندر په‌وختو کښې آباد‌شوی دی (۷)

## سلطان بهلول او پښتو شاعری

څخه چه پټی خزانې ضبط کړ یده موږ ته ددې دپښتو شاعرۍ د ونلی مقام څرګند یږی اوخیال کاوه شی چه نورې ادبې مرغلرې به ئې لکه نور دپښتو امیلو نه دزمانې په تاتار نوکښې خواره واره شوی وی، محمدرسول کلا توال هوتک پخپل بیاض کښې لیکلی دی:

« په هندوستان دبرسات په موسم خلیل خان نیازی هسی رباعی انشا کړه او دسلطان بهلول پاچا په مخ کښې ئې وویله :

خری وریځی ژاړی له پاسه  کوبله زغ کا، بیلتون له لاسه
په اهغه لوئی ګوهر به خول ستا  دامرحبا کاسنا زمو ږ موا سه !

سلطا ن بهلو ل (رح) چه دا رباعی و نغوزه په ځواب ئی دار باعی سمدستی وویله :

ملك په زرغون کرم په ور کړه راسه  ګوره اور یځی دداد له پاسه
خول می دعدل په درو روڼ دی  جهان به زیب موږ می زما له لاسه (۱)

## دپاتاو دا پرول

دسلطان بهلول تر پاچهۍ دمخه په ډهلی کښې دادود ؤ چه دپاتا په دربمه به ئې راتلو نکو ته شربت ، پان ، مسری ، اوڅه شکره وروېشل ، سلطان بهلول دسیما له مخې دغه دود کوږه کړ اووې فرمائل : «دادود موږ دشو پاللای ځکه که یو غریب پښتون ومری په لکو پښتا نه ئې پاتانه ورځی نو دا غریب پښتون کور به دغه دودڅنګه پالی؟ پس له دې باید په تشه خوشبوئی سکته وشی (۲)

له هغه وخته تراوسه په هندوستان په تیره بیا دډهلی په شاو خوا کښې

## بهلول پور

دسرهند په شاو خوا کښي (بهلول پور) یا (بهلول پوره) نومی ځای شته (۱) اغلباً دا ځای به سلطان بهلول ته منسوب وی په ۹۳۲ه کال چه بابر مغل دسلطان شهاب الدین غوری ودان کړی (سیالکوټ) وران کړ؛ دسیالکوټ او سیدونکی ئې تول د (بهلول پور) کلانه راو لیږدول (۲) بابر مغل دبابر نامې په ۱۶۶ مخ کښي لیکلی دی: دبهلو لپور دا کلا دچناب دسین پرژړه پر یوه لوړه واقع ده.

## دقطب منار مرمت

قطب منار چه په مهرولی کښی واقع او ۲۳۸ فټه لوړ منار دی دادپښتنو یادګار سلطان قطب الدین ایبك په ۱۲۰۰ع کال ودان کړ سلطان شمس الدین التمش پسی بشپړ کړ مرمت ئې یوه پلا (سلطان فیروز شاه) وکاوه بیا سلطان بهلول دغه تاریخی اثراو پښتنی آبده داسی مرمت کړه چه تراوسه ئې بیا مرمت ته ضرورت نه دی پیښ شوی (۳).

## دسلطان بهلول سیکی

په هغه کتاب کښی چه (نیلسن وایټ) ددهلی دیاچها نو دسکو په باب کښی لیکلی او په ۱۹۳۷ع کال دډهلی مینجر پبلیکیشن له خوا خپور شوی دی دسلطان بهلول دوې سیکی فوتو ګرافی شوی دی -دلومړۍ سیکی پر یوه خوا (سلطان بهلول شاه بحضرت دهلی) او پر بله خوائې (الخلیفته المومنین امیر خلدت خلافته) لیکلی دی ددوهمی سکې پر یوه خوا (المتوکل علی الرحمن

# دسلطان بهلول رښتی (اخلاق)

مرقع افغان ليکی :

سلطان بهلول دېنداره، زړه ور، توريالی، زغمونکی، پهلاس کې خلاص او کريم النفس سړی ؤ، په کلکه ئې شريعت پاله او په دغه لاره کښې ئې هيڅکله خپل ورو ندی سپمولی تل ئې د شريعت له مخالفته ډډه کوله پنځه وخته لمونځ به ئې په جماعت کاوه او ډېر ژوند ئې د پوهانو مشايخو او ستانه ؤ په صحبت کښې تېراوه، ټول کارونه ئې د آرا کښېو او پوهانو په سلا کول په لاس کښې دومره خلاص ؤ چه هيڅکله ئې د سائل غوښتنه نده رد کړې خورا پراخ اولوی سترخوان ئې ؤ، د ډوډۍ پر وخت به ئې حجابان ولاړول چه هر څوک چه زړه ئې وغواړي ډوډۍ ته را تلای شي په عدل او نياو (انصاف) کښې ئې ډېر زيار ويوست د رعيتو عرضونه ئې پخپله اورېدل او په وزيرانو ئې هيڅ اړه نه درلوده، کسار داني، بې آزاري، رعيت پالنه او پيرزوينه ئې مشهوره ده سپاهيان ئې ډېر ښه روزل او هيڅ ئې نه ځني سپمول، خزانې ئې نه د کولی او د ځان له پاره ئې څه نه ټولول .

وائي : کله چه ئې د ډهلي خزانې پلاس ورغلې ټولې ئې پر خپلو امراوو ويشلې او په خپله هم د يوه امير په شان برخه واخيستله، مساوات ئې تر دغې اندازې ؤ د کوم امير يا سپاهي په ناروغۍ چه به خبر شو په خپله ئې پوښتنې ته ورته هيڅکله په خاص يا عام دربار کښې پر تخت نه دی کښېنستلی، د امراوو سره به ځنگ پر غاليو ناست ؤ، دده په دربار کښې اميران له ولاړې منع ؤ امراؤ ته چه به ئې فرمانونه ليکل مسند عالی (چه په هند کښې د پښتنو

ورته ویلې: «که ته ماددي منصب وړ نه بولې بل څوک ورته وټاکه.
او ما ته بل کار را کړه» (۱) د ټولو امراوو سپاهیانو سره ئې خورا مساو یانه
او دوروو ګلوی سلوک کاوه د سلطان بهلول پاچا زغم د ستا ینې وړ دی
قهر ئې کرټ نه درلود ټولې شخړې به ئې په خورا متانت او بردبارۍ خلاصولې
وائي: یو وخت د جمعې په روځ د ډهلي په لوی جماعت « جامع مسجد »
کښې زاړه شاهي خطیب (ملاقادن) (۲) چې له ممبره څخه را کښته کېده.
د سلطان بهلول پاچا ترمخ وویل: «سبحان الله! پښتون هم عجیب قوم پیدا شوی
دی معلومه نده چې دجال به په دوی کښې و پاڅي که نه؟
دائي ژبه ده چې مان ته (مور) بهائی ته (ورور) سیاه ته (تور) او دګر ته (نور)
وائي، یو وخت مقتدر پاچا (بهلول) د کمال پر خوله کښېښو د اوېه مسائي
ملاقادن ته وویل: «بسته! آخر موږ هم د خدای بنده ګان یو» د داسې زغم
مثال چې یو خطیب دې دزرو خلقو په مخ کښې (چې هغه هم مختلف قامونه
وي) د پاچا قام ته «دجال» ووائي او ژبه دې ئې وغندي پاچا دې ومسې
او نصیحتاً دې ورته ووائي: موږ هم د خدای بنده ګان یو» او دا یې داد (توبیخ)
خیال دې ئې لاړه ته ورتیر نه شي آیا نور قومونه به وولاړ ی شي؟ (۳)
سلطان بهلول پاچا له وژلو او وینو تویولو څخه کرکه کوله بخپله ئې جنګ
نه بشلاوه او تل به ئې تر خپله وسه پورې له جنګه څخه ډډه کوله ځکه نو ده
د پاچهۍ په اوږده زمانه کښې ډېر لږ جنګونه و شول او څه جنګونه چې
شوي دي هغه هم ټول دفاعي ؤ خو کله چې به دفاعي جنګ ته اړ شو نو ټه
بیا د یوه خورا تورزن جنګیالي او پښتو ته تېزي سپاهي غوندې جنګېده ځکه

او د۸۰ کالو اوږده ژوند په هیڅ جنګ کښې ترشا نشو او تل بریالی ؤ (۱)

محمدقاسم هندوشاه لیکی :

سلطان بهلول هوښیار، زړه ور او سپاهی میړی ؤ په پاچهی دیر ښه پوهید، په کارو کښې ئې تلوار نه کاوه عدل او نیا وئی تینګ کړی ؤ پرشریعت کلك ولاړؤ په حضر او سفر کښې ئې له علماو او مشایخو سره ژوند تیرېده دپښتنو امرا او سره ئې دومره مساوی یا نه سلوك کاوه چه ددوی ترمخ پر تخت نه کښېناست ددوی پر آسو به سپر بده او ددوی د کورو دو ډیره به ئې پرپاچهی دسترخوان خوړله (۲)

خواجه نظام الدین احمد لیکی :

« سلطان بهلول په صلاح آراسته او دشریعت خوراپابند پاچا ؤ تل ئې شریعت چلاوه او په عدل او انصاف کښې ئې مبالغه کوله دیر ژوندئې د علماو صلحاو او فقراو په صحبت کښې تیروه او دمحتاجانو پر حال ئې ډیر نظر ؤ » (۳)

سلطان بهلول هغه پر اخیمنی پاچا دی چه پخپله ٤٤ کاله پاچهی کښې ئې پو خپل امیر هم ونه واژه.

## دسلطان بهلول اولاده

دسلطان دوي ښځي موږ ته معلومي دي چه یوه ئې (شمسه میرمن) دده خپله تر له دسلطان شه اسلام خان لورده چه د۸۳۹ ه په حدودو کښې ئې واده کړې وه او بله ئې دسرهند دیوه زرګر لورده چه زیبا (٤) یا (هیما) (٥) نومیده، احمد یادګار وائی دغه ښځه سلطان دسرهند دحکومت په وختو کښې لیدلې وه چه دپاچهی پر تخت کښېنوست واده ئې ورسره وکړ، پدې صورت نوددې دواده نیټه تر ۸۵۰ه کال وروسته تاکلای شو دسلطان نه زامن وو بدې دول :

## خواجه بایزید

سرهند او دیپالپور ته ولاړ، د دهلي نیابت ئې ده او خانجهان ته پرېښود (۱) بیا
چه د (بدایون) سیمه سلطان و نیوله دی ئې دغې سیمې (بدایون) واکمن وټاکه
د سلطان د ژوند وروستیو کلو کښې د خپل نوکر له لاسه ووژل شو (۲) دده
یو زوی اعظم همایون تاریخورا وری دی چه د نیکه په ژوند د (کالپي) واکمن و
او د سلطان بهلول د مرګ په حالت کښې ځینې پښتانه امراء دې ته ټینګ و چه
دی دې ولیعهد کړی د سلطان سکندر په وختو کښې بیا د (لکهنوتی) واکمن
شو د سلطان ابراهیم په وختو کښې ئې د ګوالیار له کلابندۍ څخه (لکهنوتی)
ته مخ و نیو او د سلطان ابراهیم په مخالفت ئې لاس پورې کړ.

## ۲ـ شهزاده نظام خان (سلطان سکندر):

شهزاده نظام د سلطان د ګرانې مایني (هیما یا زیبایا زینامیر منې) زوی دی
چه په بی بی ستاری مشهوره وه (۳) دی د سلطان د تخت د نشینۍ پر اوم کال (۸۵۷ هـ)
زیږدلی دی (٤) په ۱۸۶۲ کال چه سلطان د شرقي سلطان محمود سره په شمشاباد
کښې جنګیده یوه برخه لښکر ئې دده او شهزاده جلال خان تر مشرتابه لاندې د خپل امیر
(رای کرن) مرستې له ورو ګمارل د ۸۸۰ هـ کال په شاوخوا کښې د پلار له خوا د سرهند
او پانی پت د سیمو واکمن شو او هلته ئې په نوی ځلمیتوب کښې د تاتارخان سره کلک
جنګ و کړ، تاتارخان ئې ووژه او د دغه ملك او سیمې ئې د پلار په پاچهۍ
را کښې ایستل. سلطان د ژوند په وروستیو کلو کښې د دهلي ایالتي واکهم ده ته
وسپاره په ۸۹٤ هـ کال چه ئې پلار و مړ، دی د همدغه کال د برات د میاشتې پر اولسمه
د جمعې په ورځ د پلار پر تخت کښېنوست او د «سلطان سکندر غازی» لقب ئې

## ۳- مبارك خان :

د پښتنۍ شمسی بی بی زوی یعنی د قطب خان لودی خور بی دی څکه نو د سلطان د مرینې په حالت کښې دولیعهد ی له پاره تر نظام خان پښتنو امراو دی خوښاوه په ۸۷۶ ه کال چه سلطان بهلول دملتان دپناه وروړی پاچا (شیخ یوسف ) په مرسته دپنجاب حاکم تاتارخان پرملتان دبرید له پاره و ګماره دفوځ مشرتوب ئی دمبارك خان په نامه کړ خوپد غه جنګ کښې مبارك خان په ماتې دهلی ته ستون شو (۱) په ۸۸٤ ه کال چه سلطان جونپور ونیو د (بار بکشاه) په نامه ئې پرشرقی تخت کښېنا و.(۲) په ۸۹۵ ه کال ئې د سلطان سکندر (میر یزی وړور) سره جنګ وکړ مغلوب شو. غلام حسین طباطبائی دی تر نظام خان مشر کڼی. (۳) او فرشته لیکی : کله چه سلطان بهلول ومړ په ژوند یو زامنو کښې ئی باربکشاه ترټو لو مشرؤ (٤) مخزن افغان هم باربك شاه تر سلطان سکندر ، مشر بولی (۵) .

## ٤- شهزاده عالم خان (سلطان علاء الدین) :

د ۸٦۲ ه کال په پای کښې چه د سلطان محمدشاه شرقی له ملګرې څخه دده وړور (شهزاده حسین) د ۳۰ زرو سپرو سره د (سرستی) د جنګ له دا که قنوج ته مخ ونیو ؛ سلطان بهلول یو لښکر ددغه شهزاده عالم خان ترمشرتابه لاندې پسې واستاوه ، د شهزاده حسین لښکری څنې تللی وې .

خو د سلطان محمد شاه بل وړور (شهزاده جلال) ئې ونیواو بندی ئې پلار ته راوست(٦) عالم خان د پلار په ژوند د کړه مانك (مانکپور) وا کمن

او د سلطان علاءالدین په نامه ئې دپاچهۍ نغاره‌وډنګوله سلطان سکندر چه پسې ور ووت سلطان علاءالدین (بهیالي) او بیا (کــالپی) ته و تښتېد خو سلطان سکندر د بر زر پخلا کړ اود اتاوې حکومت ئې ور وسپاره. په ۹۳۰ ه کال د ګجرات پاچا (دوهم مظفرشاه) څه لښکرې اوڅه روپۍ ور کړې دهلۍ پر خواد خپل وراره‌سلطان ابراهیم جنګ ته راوخوځېد (۱) ځکه‌چه په‌دغو وختو کښې بابر مغل پنجاب تر دیپالپور پورې نیولی ؤ دپا چهۍ په مینه روند شهزاده عالم خان( بابرمغل )ته‌ورغی او دخپل‌وراره‌پرضد ئې مرسته ځنی وغوښتله هغه‌د(بابا قشقه مغل)په ګډه او اشتراك د(د بیا لپور )حکومت ور کړ اود سلطان ابراهیم سره جنګ‌ئې بل وخت‌ته پرېښود.

(بابر مغل ) چه کابل ته لښکرې ستنې کړې (دولت خان)لودی اوغازی خان زوی ئې پردیپالپور برید وکړ‌عالم خان کابل‌ته و تښتېد ( بابر مغل) دلاهور پرمغلو امراو لیك ور کړ چه‌دسلطان ابراهیم‌پرضد دده مرسته و کړی‌ء! عالم‌خان چه پنجاب ته راغی (دولت خان لودی) دسلطان ابرا هیم جنګ ته لیږلی راغښتې وې‌دی ئې دځان مل کړ اودده (سلطان‌علاءالدین)په نامه ئې دسلطان ابراهیم جنګ ته‌لښکری وخوځولې خو دیرژر په‌ماتی پنجاب ته راستون شو .

په‌۹۳۲ه کال چه بابر بیا پرهند وستان برید‌و کړ چه‌سیالکوټ‌ یا ملوټ‌ته‌راورسید سلطان علاءالدین‌عالم‌شاه‌بیا ورغی(۲) او دیانی‌پت‌په‌ډاګ کښې دسلطان‌ابراهیم پرضد دبابر مغل تر څنګ ولاړؤدلودیودپاچهۍ ترړنګولوورو سته‌په۹۳۳ه کال چه بابر درانا سنګا او دسلطان‌سکندر د بل‌زوی (سلطان محمود )سره[ بیانې] ته

خپلی هغه تولې وعدې ئې چه د هندوستان ترنیولو د مخه ورسره کړې وې پـرمـخ هېرې کړې او بندی ئې کړ، بدخشان ته ئې د یوه بې عمل په صورت واستاوه [سلطان علاءالدین] چه د مغل پاچا دا دروه او د خپل قومی خیانت نتیجه و لیدلـه د بابر ترمرګ وروسته د بدخشان له [قلعه ظفره] څخه و تښتېد او د بلوچستان له لارې ئې د ګجرات پاچا بهادر شاه ته پناه وروړه (۱) په ۹٤۰ هـ کال نو موړی بهادر شاه د مغلو پر ضد ده زوی [تاتارخان] ته ډېری لښکری او روپۍ ورکړی تاتار خان [بیانه] ونیوله میرزا هندال مغل پسی راورتی جنګ و نښت [تاتارخان] په جنګ کښې ووازه شو د سلطان علاءالدین دا امید وروستنۍ زنۍ هم وخوت (۲) او ترمرګه د ګجرات په دربار کښې پسی پاته شو. په ۹۵۰ هـ کال چه دریاخـان غوری د ګجرات د پاچا سلطان محمود او عالم خان لودی جنګ ته راووت دی هم ورسره ملګری مګر کله چه په لښکر ورغوکښې سلطان محمود د احمد آباد پاچا شو سلطان علاءالدین ئې د دریاخان د مرستې په ګناه په دار کړ، دری ورځې په دار ځړیده څو بیا عالم خان لودی، د پاچا اجازې ښخ کړ او د خپلې کورنۍ دپـا چاهۍ رنګولو او قومی خیانت ایداد ئې ولید (۳)

## ۵- شهزاده جلال خان:

په ۸٦٦ هـ کښې چه د سلطان بهلول او سلطان محمود شرقی ترمنځ په شمشا باد کښې جنګ ونښت سلطان بهلول دغه جلال خان او نظام خان ترمشرتابه لاندې یو فوځ د (رای کرن) مرستې لره و ګماره (٤)

## ٦- شهزاده فتح خا :

په ۹۰٤ هـ کال هیبت خان شروانی او نورو امیرانو چه د سلطـان سکندر مخالف

داحال سلطان سکندر ته وایه.

## ۷ـ جمال خان:

## ۸ـ میامحبوب خان(۱) یامیا یعقوب خان(۲)

## ۹ـ موسی خان:

د سلطان دوې لونی موږ ته څرګندې دي:

**۱ـ دشاه عبدالله قریشی ښځه:** په ۸۵۹هـ کال چه دملتان پاچا (شیخ یوسف سهروردی) چه دشیخ بهاءالدین ذکریا (رح) لمسی ؤ سلطان بهلول ته پناه راوړه سلطان ئې زوی (شاه عبدالله) رحمت الله علیه ته خپله لور ورکړه(۳) شاه عبدالله د برهمرتاض او غورمسالک ؤ په ۹۰۰هـ کال ومړ(٤) اوزاړه ډهلی ته نژدې ښخ شو هدیره ئې دشاه عبدالله په روضه مشهوره ده (٥)

## ۲ـ دشیخ صدرجهان سروانی ښځه:

شیخ صدرجهان داحمد زنده پیر زوی اودمشهور شیخ ملی قتال شروانی کړوسی ؤ له (درابن) څخه هندوستان ته ولاړ(٦) وائی سلطان بهلول چه په ۸۵۰هـ کال دډهلی دنیولو په نیت له سرهنده لښکری وخوځولې د شیخ صدر جهان سروانی کوډلې ته نژدې چه دستلج د سیند پرغاړه په [بهوم] کلی کښې وه لښکر و واړول، دشپې باه و نه راوالوتل دخیمو مراندې ئې و شلولی او رونه اودیوی ئې مړې کړې. په دغه حال کښې سلطان کتل چه دشیخ د کوډلې ددیوی لمبه شوری لا نه، دامراؤ سره دشیخ کوډلې ته ورغی او دسوبې دعائی څخه وغوښتله هغه هم دعا ورته وکړه اوسلطان په زړه کښې ووېل: «که مې داسوبه روزی شوه خپله لور به دغه پښتانه شیخ ته ورکوم» کله ئې چه دډهلی پاچهی ومونده له خپله لور ئې هغه فقیر [شیخ صدرجهان سروانی] ته ورواده او ٥٦ واړه او ۱۲ لو ی کلی

په عمر ومړ او په ماليرکښې ئې زيارت مشهور دی (١) دپنجاب د ماليرکوټلې نوابان دهمدغه صدرجهــان اولاده ده، ماليــرکوټله ١٦٥ ميله رقبه او يو لك نفوس لري (٢)

## دسلطان بهلول دوختو حکام

١ـ خواجه بــايزيد : د سلطــان مشــرزوی امړی د [ډهلـی] او بيــا د [بدايون] حاکم ؤ .

٢ـ اعظم همايون : دخواجه بايزيد زوی د کــالپی [لکهنو] حاکم ؤ .

٣ـ مبارك خان [باربك شاه] : دسلطان زوی د[جونپور] حاکم ؤ .

٤ـ شهزاده عالم(سلطان علاءالدين) : د سلطان زوی د کړه مــانــك (مانکپور) حاکم ؤ.

٥ـ شيخ محمد پرملی(کــالاپهاړ) : دسلطان خوريی د (بهرايچ) حاکم ؤ.

٦ـ شهزاده نظام(سلطان سکندر)دسلطان زوی دپانی پت، سرهند ، دوآبې او ډهلی حاکم ؤ .

٧ـ خان جهان لودی: دخواجه بايزيد ترمړينی وروسته د(بدايون)حاکم ؤ .

٨ـ تاتارخان لودی : دپنجاب او لاهور حاکم ؤ .

٩ـ عيسی خان لودی : د تاتار خان لودی زوی(٣)د (پټيالې) حاکم ؤ او دسلطان بهلول تربور، د سلطان سکندر سره په جنګ کښې زخمی شو او په ٨٩٥ هـ کــال ومړ هديره ئې دډهلي په نظام پور کښې تر او سه شته (٤)

## دسلطان بهلول د دربار امراء

مؤرخين دسلطان بهلول دامراؤ شمېر (چه په هغو کښې ځينې هندوان اميران

دومره ویسا او پېرزونه وهچه پهخپل وخت کښې لاځه بلکه دده داولاد پهوختو کښې دې لاکومه عهده یاامیرې ومومی (۱) داځکه چه په سوریو کښې ئې دیاچهی هڅه اوپه نیازیو کښې ئې دده پهقول بېمروتی لیدله او دده تدبر او میرانې اجازه نهورکوله چهدادوه پلاره پښتانه دې دده په دربار کښېلار ولری دده دیاچهی څرکند امراء دادی :

۱- قطب خان لودی : دسلطان اخښی او ترېورۇ په ۸٤۰ ه کال چه اسلام خان پلارئې ومړ دسرهندبرچا کیرئې دسلطانسرهوخورلاودډهلی لښکرې ئې پرسرهندو روستاې لېږوخت وروستهئې بیرته دسلطان سره روغه وکړه اوبیانودسلطان ترڅنګ په هرجنګ کښې پهخورا میرانه او وفادارۍ ولاړۇ په جونپور کښې اوه میاشتې جنګی بندی ۇ ترسلطان څو کاله دمخه په ۸۸٤ه کال په مجهولې کښې په خدایی مرګ ومړاو مړی ئې سرهند ته یو وړل شواو هلته خاوروته وسپارل شو (۲).

۲- خانجهان لودی: دسلطان خوراوریرور یرۇ دسلطان سرهئې خپلوی درلوده په ۸٦۷ ه کال چهسلطان پنجاب تهولاړ دډهلیواکئې دهتهاو قطب خان لودی تهسپارلی ۇ په ۸۸٤ ه کال چه سلطان دسلطان حسین شرقی جنګ ته ورروت هم ئې دډهلی واك دهته سپارلیۇ ،چه سلطان (دهویامو) ته ورسید دده دمړینې خبرورغی ددغه خانجهان یوزوی حسین خان نومېدپه ۸۸۳ ه کال چه سلطان حسین شرقی پرډهلی برید وکا سلطان بهلول دیله میرتهه څخه دسلطان حسین مخ نیوی لره وګماره .

۳- دخان جهان لودی زوی خان جهان:

چه خان جهان لودی په ۸۸٤ ه کال ومړ سلطان ئېزوی (احمدخان)

دسلطان سکندر په وختو کښې ئې دواس زري منصب درلوداودرا يري (U.P ـ مين پور ضلعه) حاکم ؤ مګر دسلطان سکندر ورسره جوړه نه وه (۱) دسلطان ابراهيم په وختو کښې سلطان ابراهيم ته پورته شو .

**۴ ــ ملا منهاج :**

ملامنهاج په کچنيوالى کښې له لاهوره څخه ډهلي ته په علم پسې ولاړ هلته منلى عالم شواو دسلطان بهلول غازى په وختو کښې د ډهلي مفتي ؤ (۲)

**۵ ــ شروانى عمر خان:**

دسلطان په زړه پورى وزيرؤ دمشر (خان جهان) ترمړينې وروسته دهيواد انتظام دده پرغاړه ؤ . مسند عالي خطاب ئې درلود چه دهغو وختو له خورا غورو خطاباتو څخه ؤ .

عمرخان دېر پوه زړه ور توريالي او خوراوفـا داره ميړه ؤ شهـزاده نـظـام (سلطان سکندر) چــه ديلار پــه حکم لــه پانى پته څخه پــرتاتار خان بريد وکړ؛ دى ور سره ؤ خر ګنده توره ئې وکړه دوست او دښمن و ما نه او هم دده په استرېــه کلکه حمله کښې نوموړى تاتار خان وواژه او وروړئې و نـيوه شو دعمر خان زوى (ابراهيم هم پدغه جنګ کښې ښه توره وکړه ( ۳ ) عيسى خان شروانى چه دشيرشاه له لويو اميرانو څخه ؤ دده زوى يا لمسى ؤ ( ٤ )د(علي کړه) مشهور معاصر مولينا حبيب الرحمن خان شروانى د علماى سلف، ذکرجميل اودسيرة الصديق موولف چه (حسرت ) ئې تخلص دى. دده له لمسيانو څخه دى (۵)

**٦ ــ شهاب خان:**

دسلطان ددربار دبير (سرمنشى) ؤ (٦)

---

(۱) تذکره علماى هند ۸۵مخ او اخبار الا خيار ۲۲۵ مخ

**۷ ـ شیخزاده محمد پرملی (۱) خان خانان:**

دسلطان خورا ورنیر امیرؤ دسلطان سکندر په وختو کښې د دربار لـه حاضرباشـوامراو څخه شو په ۸۹۵ هـ کال چه سلطان سکندر (راپړی) له سلطان علاءالدین څخه و نیوله ده (پرملی خان خانان) نه ئی وسپارله په ۸۹۷ هـ کال چه (۲) ئي بیا (بیانه) و نیوله هغه ئي هم ده ته و سپارله پر سلطان سکندرهم خور اګران ؤ په ۹۰۷ هـ کال ومر .(۲)

**۸ لـوانی خان خانان:**

**۹ ـ پرملی میامعروف:**

نوم ئی میافرید ؤ · سلطان ابـراهیم ته یوړ ته شواود ګنګـا تررود یوری خوائی دبغاوت نغاره وږنګوله دسلطان ابراهیم ترمرګه پو ري لا ژو ندی ؤ دسلطان ابراهیم ترشها دت وروسته ئي دبـابر دلښکرو پرضدډیـر جنګونه وکړل اود ګنګادیوري خوا په وتلو امرا ؤ کښې ؤ ـ په ۹۳٤ هـ کـال ئی زوی هم له قنوجه څخه وروتښتېد او د پلار مل شو .

**۱۰ ـ لوانی مبارك خان ،**

دسلطان دیا چهی غوردامیر ؤ اودسلطان په وختو کښې ئی هم خوراعزت دراود درباخان زوی ئی هم دسلطان بهلول دیا چهی له امرا ؤ څخه ؤ ـ مبارك خان د ۹۰۰ هـ کـال په شا ؤخوا کښې په پټنه کښې و مړ (۳)

**۱۱ ـ لودی دریا خان**

د ده دژوند سوانح دسلطان بهلـول تریاچهی د مخـه راوړه شوي ده .

**۱۲ ـ تاتار خان یوسف خیل**

تاتار خان د دریاخان لودی زوی دی (٤)

---

(۱) پرملی خانونه کاکړان بولی (خلاصته الانساب قلمی ۳۹ مخ) پرمـل ګردیز تـه

دی دبابر نامي په قول دينبتنو له هغو شپېژو ، او و ، لويو سردار انو څخه ؤچه شمالي هندوستان ئې و نيوا و بهلول ئې پاچا کړ. دستلج دسيند شمالي برخه تو له دتاتارخان په لاس کښې وه سلطان سکندر دتاتارخان ترمرګ وروسته داسيمې دتاتار خان د اولادې له لاسه و کښلې (۱)

**۱۳ - قطب خان،**

قطب خان د حسين خان پښتانه زوی دی دسلطان بهلول سره د سودا ګری په وخت کښې مل ؤ بياد خضرخانی سلطان علاء الدين عالمشاه له اميرانو څخه شو په ۸٦۱ ھ چه سلطان بهلول دمبارك شاهی سيمو په دوره ووت: دی په (راپړی) کښې کلابند شو دسلطان لښکرو بری بورموند دی، دلو دی خان جهان په زير مه و با خښه شو او برخپل جا ګير پاته شو بيا په ۸٦۳ ھ کال د سلطان حسين شرقی خوانه ورو اوښت.

**۱٤ - میواتی احمدخان،**

دخضرخان د کورنۍ په پاچهيو کښې امير ؤ،خضرخانی دسلطان علاء الدين عالمشاه په کمواکۍ پاچهی کښې ئې پريوه لويه لته غيبزراو ګرزو له اوتر (مهرولې) پورې ئې (چه دډهلی نه خورا نږدې ده) تربوې اندازی خپلوا کړه پاچهی لرله سلطان بهلول چه په ۸٦۱ ھ کال دمبارکشاهی سيمو په دوره ووت دی ورته ايل شو بيا په ۸٦۷ ھ کال د سلطان حسين خوانه ورو اوښت د (چند وار) ترجنګ وروسته بيرته دخان جهان لودی په زيرمه دسلطان بهلول په امراؤ کښې دا خل کړه شو •

**۱۵ - خاص خېل يوسف خان.**

**۱٦ - جلوانی يوسف خان.**

**۱۷ - سيستانی احمدخان .**

**۱۸ - ترك علی خان.**

**۲۳ـجونا خان:**

جونا خان د غازی خان زوی دی د سلطان بهلول له امرا ؤ څخه ؤ

په ۷٦۱ ھ کال له سلطان څخه خوابدی شو او د سلطان محمود شرقی

خواته ووراوښت٬ سلطان محمود د (شمشابات) جاگیر ور کړ.

**۲۴ـسارنگ خانی جمال خان :**

دسارنگ خان لودی له اولادې او دسلطان بهلول دپاچهی له امراؤ څخه ؤ (۱)

**۲۵- رای پرتاب:**

دسلطان له امراؤ څخه ؤ

**۲٦رای کرن**

د سلطان له امراؤ څخه ؤ٬ سلطان چه په ۸٦۲ ھ کال شمشا بات

ونیو٬ دی ئې د (شمشابات) حاکم وټا که.

**۲۷- وزیرخان (خان خانان):**

داسدخان زوی.

**۲۸- شمشیر خان .**

**۲۹ - رای کهبن .**

**۳۰ـشیخ سعید پرملی:**

دسلطان سکندر په امراؤ کښې ئې تفصیل ولولی.

**۳۱- بهادرخان مهته**

**۳۲- ملک چمن.**

دعماد الملک لمسی.

**۳۳- شیخ جمال-**

**۳۴- شیخ عثمان**

## دسلطان بهلول دوختو مصنفین

**۱ شیخ ابوالفتح کالپوی :**

ددغو وختو ډیر ستر عالم ؤ په طریقت کښې ئې دسید محمد گیسو دراز

(رح) خلافت موندلی ؤ په نحو کښې (تکمله) او په تصوف کښې (مشاهده) دده له

آثارو څخه دی. په ۸٦۲ ھ کال ومړ او په (کالپی) کښې ښخ کړه شو (۲)

**۲ـشیخ سعد الدین:**

**۳-سید محمد الحسینی:**

د خپل وخت خورا مشلی ستانه او دسلوك به لاره زښت ډیر پوه عارف ؤ د(بحر المعانی) به نامه په توحید او معرفت کښی غوره اثر لری (اسرار الروح) او(بحر الانساب) هم دده له ا ثارو څخه دی، په ۸۹۰ هـ کال مړدی (۱)

**۴-شیخ حسین ناگوری:**

د شیخ حمید الدین نا گوری لـــه اولادی څخـــه دی(۲)

دخپل وخت جیدعالم ، مجردستانه او په سلوك کښی د شیخ کبیر (رح) له اویو خلفاؤ څخه ؤ. د(نور النبی) په نامه ئی یو تفسیر په ۳۰ جلدو کښی لیکلی دی د(مفتاح) پر دریم توك او د امام غزالی پر سوانح هم شرحې لری ، مکتو بات ئی هم شته په ۹۰۱ هـ کال مړ دی (۳)

**۵-شیخ فیروز ډهلوی :**

شیخ فیر و ز د مشهور محد ث شیخ عبد ا لحق د هلو ی و ر نیکه د ی د سلطا ن بهلو ل د پا چهی په او ا نلو کښی ژ و ند ی ؤ په ۷۵٦ هـ کال چه سلطان محمود شرقی پر ډهلی برید وکا او ښارئی کلابند کړ سلطان بهلول چه له دیپالپور څخه راغی ورسره وجنگید اوسلطان محمودته ئې ماته ورکړه شیخ فیروز دغه نکل تول به شعر لیکلی دی چه لههغه څخه دوه بیته دادی:

سلطان بهلول لودی ته وائی:

| | |
|---|---|
| ا یا قا بض شهر د هلی شنو | حیات چو خواهی ازینجا برو |
| منم قا بض ملك مار است ملك | خداداد مارا خدارا ست ملك |

شیخ عبدالحق ډهلوی پهخپل کتاب اخبار ا لا خیار کښی لیکی چه دغه رساله زمو نبز کره وه خواوس نه لیده کیږی (٤) نوموړی د بهرایچ پهغزا کښی

# ابوالمظفر غازی سلطان سکندر لودی

## (۸۹۴ – ۹۲۳ھ)

[سلطان سکندر یو غښتلی پښتون پاچا او په لودیو کښی تر ټولو لایق ټولواك ؤ دده د پاچهی انتظام خورا ښه ؤ دده په پاچهی کښی په درست ملك کښی کراره کراري او زیاته ارزانی وه دهند طلائی تاریخ] (۱)

« داهغه ورانی و یجاړی چه د گوډ تیمور یرغل د هند سیاست او تمدن ته ور پیښی کړی وې د سلطان سکندر په وختو کښی لیری کړې شوې او هغه د بی تمیزی طوفانو نه چه خواص او عوام به ئی له بیړی ریبزدیدل پر مخ ورك شول د عدل او انصاف دوره شوه او ټول رعیت په خپل ژوندو پوهیدله د ده تقریباً دیرشو کلو پله پوري ادب پالنی او فیاضی د علم او ادب په مړه کالبوت کښی نوی ساه پو کړه زړو علومو او هیرو شو فنونو ته ئې هغه رونق ور کړ چه په شهرت ئې ملکونه ډك شول تر داسی حده چه قدامت پسندو هندوانو لاهم اسلامی ادبیاتو او لسانیاتو ته مخ راو گرزاوه »
(اورینټل میگزین)

« د سلطان سکندر په پاچهي کښی د زمیندارانو (جاگیردارانو) د ظلم او تیری لاسونه لنډ شوی وو. ټولو ته ئې حکم ته غاړې ایښې وې غښتلی او کمزوری که په یوه ستر گه کتل کیدل سلطان سکندر په ټولو چارو کښی لور او پیرزوینه لرله پر خلکو زړ سواند او له غښتنه بیریدو نکی ؤ د یره نفس پرغو ښتنه نه ته » [طبقات اکبری]

« سلطان سکندر خورا لخیرك . یوه او پر امیرانو ضابط پاچا ؤ سلطان خپلوا که پاچهی لرله نیاو او عدل ئې و کا اسلامي ښخښې او شرعی احکام ئې جاری کړل دده په وختو کښی رعیت په خوراډاډ او یو ره زړه په خپلو چارو بخوت ؤ ځکه نو خورا ارزانی

«دسلطان سکندر پاچهی ددیندارۍ، امانت، حلم، وقار، صلاح، او تقوۍ زمانه وه، ده دپوهو، ستانه ؤ او درنو خلقو سره مینه لرله ځکه نو دغسې خلق به خـورا بیره د نړۍ له هره گوټه څخه ځینې ده ته په غوښتنه او ځینې په خپله خوښه ده ته په پـای تخت کښې راغونډ او هلته پسې میشت شول .

په رښتیا سره ددې بختور پاچا دزمانې ښېگڼې تر لیکلو وتلې دی او پخپله ده دفراست او کرامت په باب کښې خورا ډیر ټکلونه کـاوه شی.»

گر این جمله را سعدی املا کند     مگر د فتر د یگر ا نشا کند

(اخبار الاخیار)   (۱)

«سلطان سکندر دآسیاله واکمنو او نومیالیو پاچهانو څخه تېر شوی دی په علم او فضل کښې ئې غښتلی لاس درلود ده په وختو کښې پوهو او فاضلـو خلقو نه په خورا درنه سترگه کتل کېدل» (شېرشاهی تاریخ) «سلطان سکندر دذهن او ذکا نبوغ دمنلو نه دی ده دنیاو (عدل) او احسان له لاسه دظلم او تېری منې سترگی نشی ښکاره کولای.

ده په وختو کښې هر لوری ته علم او فضل نوی رونق وموند، دسخاو، او ښندنو بازار خپور شو،

پوهانو په هر علم کښې تالیفات وکړل او منلو شعر اؤ دهری سوبې له پاره فتحنامې ولیکلې»   (معدن الشفا سکندری)   (۲)

## دشهزادگۍ وخت

شهزاده نظام (سلطان سکندر) دپلار (سلطان بهلول) دتخت ته اخستلو پر اوم کال وزیږید ځکه چه په دغو وختو کښې ئې دپلار پاچهی څه نظام موندلی ؤ

شهزاده نظام خان لهوړ ګینې ښځه زښت د پرځیرك خورا هوښیار او پېغې
وتلې ښکلې ؤ، ددهٔ ښکلا په باب کښې مورخین په ګډه لیکي :

«په دغه زمانه کښې په ټول هېواد کښې سرتر پایه د شهزاده نظام د ښکلې
اوجمال ساري نهٔ او تر ایرو لیرو ملکو پورې دده د ښکلا کوکې خپرې وې».
نقل کا چه له (شهزاده نظام) سره د نوي ځلمیتوب په وختو کښې د شیخ ابو العلاء
دلمسي (شیخ حسن علائی) چه یو خوار ارسپېدلی ستانه او مجذوب سالك ؤ
(۱) مینه مونده شوه یوه ورځ شهزاده په ژمي د باچاهي ماڼې په یوه خونه کښې
ناست ؤ سره ددې چه شاؤخوا پیرې (پهرې) پرراځر خپدلی او ځای پر ځای
حاجبان ولاړ ؤ دغه مجذوب ستانه (شیخ علائی) نا ببره بې اجازې په خونه
ورننووت .

شهزاده چه دده دمینې نکلونه له ځانه سره اورېدلي ؤ او په بڼه ئې هم پېژاند
دده له دغسې آزاد او بې اذنه ورتګه ښځه هك حیران شو در دورغې مخ ئې
پررا وګرزاوه چه :

«ځای پر ځای حاجبان ولاړ ؤ ته څنګه بې اجازې پاچاهي مـا نۍ تـه
راننو تلې؟» لېونې ستانه ورته وویل :

«ماته څه معلومه ده؟ ته پخپله ځان په یوه کړه»

شهزاده و پوښتېد :

ته پر ما مین شوی ئې ؟

ځواب ئې ور کړ :

«په دې باب کښې زما څپل اختیار نه دی »

پەغبر گولاسوئي ترشت ونیواو ککری ئي پەله اوره ډك نغری ومنډ اله دلیوني ستانه ترخواله یوزغ هم راوته ووت او نه ئي سرځني وښوراوه، په دغه ترخ کې دشهزاده اتالیق (اوانی مبارك خان) چه دسلطان بهلولددربار یو دروند امیرؤ پرراننووت او پر شهزاده ئي زغ کړه :

«ها! له خدایه نه بیریږي! څه کوې ؟

لەدې ده تەځه زیان نەرسي، پرځپل زیان وبیریږه» شهزاده دمبارك خان پەزغ دلیوني ستانه ککری خوشي کړه، مبارك خان چه دشیخ علایي ککری لەنغری را وایستله کەئي کتل چه یوو ښتته ئي هم نەدی سوځلی، مبارك خان چەله خوني ووت دشهزاده پەحکم (شیخ حسن) تەبیری وروا چولی شوی او شهزاده تەئرډي پەیوه کوټه کښی بندی کړ شو، لنډ کړی وروسته شهزاده تەخپلو خلقو حال را ووړ چه شیخ علایي پەبازار کښې کرزی.

شهزاده چه دهغی کوټی کړ کی وپرانیتله که گوري ځنځیران او بیری پرتي دی (شیخ علایي) پخپله نشته، شهزاده په (شیخ حسن) پسی سړی و لیږل شیخ چه راوستل شو شهزاده ورته وویل :

«یووارمی دمیني دعوه کوې بیامی له بنده څخه تښتې» لیوني ستانەپه خورا سپیدلتیا ځواب ورکړ :

«زه پخپله نەوم تللی نیکه وایستلم» (۱)

وائي شهزاده تردغی ورځی پس بیاهغه لیوني ستانه (شیخ حسن علایي) ونه ځوراوه او نەئي په سپکه ستر که ورته وکتل .(۲)

## دشهزداه غشی و یشتل .

نکل کا چه سلطان بهلول د (میواړ) د (ازدهی پور) د (رانا) جنگــــ

ځانګه کنبې تاکلی څوړند ګل ووی' شهزاده چه لیندی را کښله دغـشی شوکی ئې ګل داسې سیك وسکښت چه بوټی و نه ښورید .

سلطان لـه‌خو شالی‌ورزوغور ځید پرتندی ئې مچ کړاوسمدستی ئی دسرهند جاګیر او حکومت دده پرنامه و لیکه .

سلطان چه د(رانیا) له جنګه بریالی را ستون شو که څه‌هم شهزاده پخوا هم ترټولو زامنو پر ګران ؤ'دلته ئې یوه خاصه توجه ورته مـتوجه شـوه او دده روزنې لره‌ئې په خورا بیره مخ‌ورو کړزاوه'له کوره‌ئې بیل کړ او د( خان‌خانان ) اتالیقی ته‌ئې وسپاره نورپوهان‌ئی هم دده ښوونې ( معلمی ) لره و ګمارل ځکه نوشهزاده نظام یواځې نکړه او ګرندی سپاهی‌راونه ووت بلکه یوبیاوړی یوه نومیالی مدبر هم شو .

## ل فوځ مشر توب :

په ۸٦۲ ه کال (چه دشمشابات) په شاوخوا کښې سلطان بهلول ل دشرقی پاچا (سلطان محمود) جنګ ته‌پخپله دلښکر و سره رووت یوفوځ‌ئې دشهزاده جلال او شیبز کان شهزاده نظام اوعمادالملك ترمشر تابه لاندې دخپل امیر (رای کرن) مرستی لره و ګماره چه‌د(شمشابات) په کلا کښې د شرقی فوځو لەلاسه کلا بندؤ ( ) .

## دسرهند حکومت

لکه څنګه‌چه مودمخه‌ولوستل دسرهندحکومت‌په‌خوراوړ کینه کښې‌لا(سلطان) دشهزاده نظام پرنامه لیکلی ؤ څرنګه چه تنکی ځلمی شو سمد ستی ئی

دسلطان ددربار خورادرانه او منلي اميران عمر خان شر و انه‌ی او مبارك خان لوانی هم دخپلو لښکرو سره ورسره کړه شول او شهزاده نظام خپل جاګيرته ولاړ او دهغو سيمو دحکومت واګی ئې په لاس کښې واخيستلې .

## دتاتار خان جنګ (۱)

سلطان بهلول پر خپلو اميرانو زياته پېرزوينه لرله لوی لوی جاګيرونه ئې ور کړی ؤ او هلته به دوي خپلواك حکومتونه کول .

په دغو اميرانو کښې دوه خورا غښتلي او نامتو اميران (تاتار خان او هيبت خان) ورته پورته شول او دخپلو سيمو د شاؤخوا پرېا چاهی سيمو ئې لاهم غېږې پسې راوګرزولې.

نکل کاچه: په دغو وختو کښې شهزاده نظام (دپانی پت) حکومت لاره ده هم دشاؤخوا دځينو بهلولي اميرانو دجاګيرخو کليو ته لاسونه وراوږده کړل او پخپل جاګير ئې راکښېايستل، هغو اميرانو سلطان ته شکايتونه ولېږل .

سلطان دشهزاده اتاليق او دفتردار خوجکی شيخ سعيد پرملي ته وليکل:

«تنکی شهزاده دا تجاوزات ستا په سلا کړی دی ،نه که دومره مهره ئې دباغی تاتار خان سيمې چه خو راړدر څرمه دی (۲) ونيسه دا بلو اميرانو دسيمو نيول او تالا څومره مېرانه نه ده .ځيرك او موقع پېژندونکی اتاليق چه دافرمان ولوست سمدستي شهزاده ته ورغی او دپاچهی مبارکی ئې ور کړه .

شهزاده چه دشيخ سعيد داوېناو نغوز له هېښ؛ پاته شو په خورا ترهورتيا ئې وويل : «خير دی؟»

«خیر خبر بت دی خو دیا چا له حضرره پخپل لاس تا ته یا چهی درسپارلي شوي ده»
شهزاده و پوښتېد!
«تا نه څنګه دا څر ګنده شوي ده؟»

شیخ پاچاهی فرمان دشهزاده مخې ته وغوړاوه، شهزاده چه په فرمان کښې دخپلي پا چهی کوم ذکر و نه لید او سر ببره پرد ې ئي یوه کتره ( طنز) هم و اوست شیخ ته ئي مخ را و اړاوه چه :
عجیبه پا چهی را کوي؟»

شیخ په خورا ببره سینه ور ته وویل:
«تنکی شهزاده! پاچهی وړیا نه موندله کېږي کوم کار لره چه پاچا ته ګمارلی ئي داستاد ازموېښت یو خورا مهم میدان دی، که تادا کار تر سره کړ، نو پاچهی یقیني ده، ځکه چه پاچا پخپل ژوند تا هغه جنګ لره ګماری چه دده زړه غواړی او په دی کښې ستا سپاهی توب آزموئي، باور وکړه چه داستاد دپاچهی یو څر ګنده اشاره ده ځکه نو ته ژرو پاڅېږه اوقسمت دې وآزمو یه»

شهزاده دشیخ داسلاځو ښه کړه اوخپل حربی مشا وړین او منصبد اران ئي لکه مبارك خان لوانی او دریا خان زوی ئي، عمرخان شروانی او ابراهیم خان زوی ئي او پخپله شیخ سعید پرملی اومیاحسین زوی ئي سلا لره راغونډ کړل ، ټولو په ګډه دتاتار خان دبرید سلا ور کړه .

شهزاده جنګی تیاری ونیولي په دغه وخت کښې له ده سره یونیم زر سپاره سپاهیان او دغو مره همدده خپل نو کران ؤ، دي ټولو ته ئي خورا ښې وسلې

نکل کاچه : د جنګ په ورځ دشهزاده د کوچنی مګر خورا مېړنی او
غښتلی لښکر ( چه اول دمیدان میړونه وه ) تر مخ شیخ سعید برملی ولاړ و
هر آن به ئي شهزاده ته تر شا کتل. شهزاده سبب ځني و پوښتېد. شیخ ورته دي
شو او کړارئي ورته وویل : « زه ستا پر چارپېر خورا نکړه او توریالی ځلمی
وینم او باور لرم که نه مشرتوب ټینګ کړ ای شي 'توسو به' به زمونږ وی '
که پښتې دي تا مشرتوب ټینګ نه کړای شوای نه خپل اختیار لري خوځوك
چه نادر سره راغونډ کړی دی دغو ټینګار ' میړانو او توروته هم و ګوره
لږه شېبه ودرېږه او وګوره چه دوی څه ډول سرو نه ښندی ' که څه هم د
تاتارخان سره پنځه لس زره لښکر دی خو ستا دملګرو غوندی لس تنه میړونه
او توریالی هم پکښې نشته .

شیخ سعید که څه هم شهزاده ته د داد میړانی ټینګاراو زړه ورتوب خبری
و کړې خو وروسی ئي داهم ورته و ویل :

« که د خدای په مرسته مونږ بري مومند خو سوبه دې تر سره شوه او که داسی
ونه شوه نو تر تا هغه آس لاندی دی چه باد ئي سیالی نه شی کړای؟ پوند ئي کړه
او ډاډه اوسه چه څوك ستا ګرزنه لا نشي در رسېدلای » .

شیخ برملی غوښته چه په دې خبره ننګی شهزاده ډاډه کړی چه تا نه هیچ
خطر نشته ځکه دی ښه پوهېده چه شهزاده لا هلك دی که پرخپل چارپېر د تورو
برېښ دوینو ولې ' د ځلمو خبرکی ' د ګـکر پولغړ پدل ' دتنو ټیپدل ' وويني
اود (و نیسه او مه پرېږده) چیغې واوری تر هور به شی .

د شیخ برملی تر خولی لا د او ښنا پشېره نه وه را وتلی چه شهزاده و...

شیخ چه دا پښتنې له غیرته ډک ځواب واورېد له آسه ښکته راو غورځید شهزاده
ئې تر ښې موټ ونیوا او په خورا خوشالۍ ئې ورته وویل:
«د لښکرو د مشر دومره مېړانه او ټینګار د سوبې څرګندونه ده»
د دواړو خواو لښکري سره ودرېدلې د شهزاده له خوا تر ټولو لمړی (لوانی دریا
خان) له دېرشو مېړو سره د جنګ ډاګ ته ووت، د تاتار خان د لښکر و پنځوسو
ځلمو مخه ورته ونیوله ټوري سره وځرېدلې و ښې سره و ښېدلې پای ته د تاتار
خان ځلمو تر شا تر پلل او په لښکر ننوتل دریا خان چه وکتل چه هېڅوک نور ورته
را نه وتل خپلو ټوریالیو ملګروته ئې مخ راواړاوه:
«دا بری د خدای مرسته، زمونږ مېړانې او د مشر ننګ دی را ځئ چه اوس نو تاسی
دلته ودرېږئ زه یواځې برید کوم»

دریا خان لوانی دری پلا د غلیم پر لښکر وبرید وکړ هره پلا ئې د غلیم ځلمی په وینو
ورنګول او دی په خپله روغ رمټ خپل لښکر ته راستون شو تر دې وروسته د خواجګی
شیخ سعید بر ملی زوی (میا حسین) (۷۰) مېړو سره د جنګ ډاګ ته ووت
د تاتار خان لخوا یو نیم زر و سپرو مخه ورته ونیوله او د میا حسین پر ملګرو ئې
دری پلا پله بسې برید ونه وکړل خو [میا حسین] هم دری سره واره بری ومونداو
روغ رمټ خپلې خواته راستون شو تر دې وروسته شېرواني عمر خان د پنځوسو
سپرو سره شهزاده ته راغی او د [دریا خان] او [میا حسین] تر ستاینې وروسته ئې
میدان ته د وتلو اذن وغوښت په دغه ترڅ کښې د ده زوی [ابراهیم خان] آس را
پورنده کړ د پلار تر مخ ودرېد قسم ئې ور کړ چه میدان ته به نه وزې او ورته
وې ویل:
«لکه څنګه چه تا د مبارک خان او شیخ سعید د زوی توری ولیدلې اوس د خپل زوی د

ابراهیم خان دیلار خبر. و نه منلهٔ د آس مخ چه ئې و گرزاوه وې ویل :
« په کله برید کښې مېړانې نه څرگندیږی، بو الحی و تل بو به »

آس ئې پونده کړ او دغلیم په لس، پنځه اس ذره لښکر ننووت څو تنه ئې په
ډینو ورنکول اوروغ ومی څخنې راووت، شیروانیې عمرخان چه دزوی د اتور ه
ولیدله دجنگ چیغه ئې وکړه او دتاتارخان پر فوځ له خپلې ډلې سره ورننوی
شو. پدغه برید کښې تاتارخان پخپله ووژه شو (حسن خان) ورور ئې
ژوندی دشهزاده دسپاهیانو په لاس کښېوووت، دتاتارخان دفوځ خپه مره شو ل
میدان ئې پرېښود او شهزاده سوبه یو وړه، دشهزاده دغه امری.سوبه دده دعمر
او حربی طاقت په نسبت خورا ستر کارؤ، دخلقو په زړوئې بېره ننوتله او هرچا
ئې توره او مېړانه و منله، سلطان ته چه دغی سوبې زیری ورغی له خوشالۍ
په کمیسه کښې نه ځائیده او په زامنو کښې ئې د (شهزاده نظام) اهلیت و مانه
تر پخوا زیات ورته پراوبرگران شو، وائی سلطان ته له دغه وخته د (شهزاده نظام)
دولیعهدی فکر موندلی شو (۱)

## دتهانیسر پیښه

تهانیسر ( کرو کیشتر ) (۲) دپانی پت په شاؤ خوا کښې دیوه ځای نوم دی
هلته له لرغونه څخه به کال کښې یو وار دهند وا نو خورا لویه او د ر نه
مذهبی میله کېږی له لیرو لیرو ملکو څخه هندوان د زیارت په نیامت و ر نه
راځی هلته یو لوی تاور (تالاب) شته په هغه کښې لامبی د ( کرو کیشتر ) په خورا
لوی او تاریخی مندر ( دهرم سال ) کښې ځوورځی عبادتونه کوی او بېر ته
خپلو خپلو ټاټوبو ته ستنیږی کله چه شهزاده نظام (سلطان سکندر) دپانی پت
حاکم ؤ هم دامېلې کېدلې ده وغوښتله چه په خپل حکومت کښې دادود کوره

کړی ځرنګه چه شهزاده بهٔ هرومرو په هره چاره کښې سلا کوله نوئی خورا وتلی، وتلی ملایان فتوی لره راغونډ کړل، ملك العلماء اجو دهنی ملا عبد الله (چه دخپل وخت يو خورا پياوړی او حق ويونکی ملاؤ) هم دغې غونډې ته راغلیؤ، شهزاده چه خپل فکر او اراده ځرګنده کړه او فتوی ئې وغوښتله ملك العلماء يوښتنه ځنې وکړه:

«شهزاده! هلته څه کيږی؟»

شهزاده ځواب ورکړ: «هلته هندوان لامبی او عبادتونه کوی.»

ملك العلماء وويل:

«دا دې دله کومه وخته کاوه‌شی؟»

شهزاده ورته وويل:

له ډېره لرغونه څخه!

د ملك العلماء وفرمايل:

«تر دې بخوا هم دلته اسلامی پاچهی تېرې‌شوېدی هغو مسلمانانو پاچهانو ولې دا دود کوره نه کړ؟»

شهزاده سمدستې ځواب ورکړ:

«دوی توفيق نهٔ مونډلی»

ملك العلماء په ځواب کښې ورته وويل:

«شرعه داهل ذمهٔ دزړو بتخانو د نړولو اجازه نه ورکوی او نهٔ دهغو دودو د کوره کولو حق چاته ورکوی چه له لرغونه څخه په هغو قومو کښې کاوه‌شی»

شهزاده چه داوېنا و نغوته له قهره برله وا پښېد او په خوراز يږه لهجهٔ ئې

منځې ته درېږي هغه ترخپل سرتېر وي ، ما شرعي مسئله درته وو یله : که په شرعه بند نه ئې نو پوښتېد لم دې ولي ؟ څه چه ما باید ویلي وای هغه مې وویل زیاني ته پوهېږي هر څه چه کوي » .

شهزاده چه د ملك العلماء دا شرعي حکم واورېد ؛ وئې ما نه او له خپلې ارادې څخه و گرزېده .

# د ډهلي حکومت

سلطان بهلول د ژوند په وروستیو کلو کښې د ډهلي حکومت هم شهزاده نظام ته وروسپاره په ۸۹٤ هـ کال چه سلطان د گوالیار له جنگه څخه دراستنېدلو په لاره کښې ناروغه شو شهزاده ئې له ډهلي څخه (سکېت) ته وروغوښت عمر خان شرواني او د شهزاده مور بي بي امبا زیبا ملکي) چه د سلطان په سپارلي کښې وو پټ حال ور ته راواستاؤ چه ډهلي پرېږدي ، سلطان چه دوهمه پلا په خورا شدت وغوښت شهزاده د سلطان حسین شرقي دوزیر « قتلغ خان چه یومنلي مدبر او په دغو ختو کښې په ډهلي کښې بندي ؤ په سلا تر ډهلي د باندې د کوچ په نامه خېمې و نجتلې مگر تر څو چه سلطان د مړینې حال ور ته را نه غی « سکېت » بر خوا و نه لېږدېد . (۱)

# تخت ته ختل (جلوس)

د ۸۹٤ هـ کال د برات په میاشت چه سلطان بهلول د (سکېت) په شاؤ خوا کښې له دې دنیا څخه ستر گې پټې کړې له وصیت سره سم ئې د مړینې حال د ستې ډهلي ته (شهزاده نظام) لره ولېږه شو ، شهزاده د ډهلي واك (سارنگ خاني جمال خان) ته وسپاره او پخپله د (سکېت) خواته تر لېږد پدلو پخوا د ډهلي منلي

شیخ سماءالدین (رح) چه ورته ښه کړه! شهزاده کتاب ورته پرانست ځکه چه دنوموړی کتاب په سر کښې لیکلی دی چه:

بدان اسعدک الله فی الدارین (یوه شه ؟ خښتن دی په دواړو جهانو کښې نېکمرغی او نېکمرغه په نصیب کړه).

نوشیخ پورتنۍ جمله ولوستله شهزاده دبیا بیا لوستلو هیله څرګنده کړه دری ځلا داجمله ولوستله - شهزاده کتاب کت کړ اودشیخ لاسونه ئې مچ کړل دشیخ دغه دعائی ښه مرغ (فال) وګانه دامراؤ سره یې خورا تلوار د(سکېت) لورته وخوځید (جلالی یابهداولی) ته ئی دپلار پرمړی ځان ورورساوه اوترشرعی دودو وروسته ئی دښخولو دپاره دهلی ته جنازه راواستوله که څه هم دده پرپاچهۍ باندی دسلطان بهلول نوربره «عیسی خان» (۱) اوپرملی خان خانان ترمنځ څه خوابدی پیداشوه خودپرزړ دده پروسیله ولاړ پرملی خان خانان، لودی خان جهان اونورودرنوامیرانو جلالی ته نژدې د کالی ندی) پرژی دسلطان فیروز په ماڼۍ کښی د ٤ ۸ ه کال دبرات پر اولسمه دجمعې په ورځ دپاچاهۍ تاج د «شهزاده نظام» پر سرکړی کښېښود، ده ځان لره د [غازی سلطان سکندر] لقب غوره کړ.

## دعیسی خان لودی ترټنه

سلطان بهلول چه ومړ دسلطان تربوره دتاتارخان زوی عیسی خان نه غوښته چه شهزاده نظام (سلطان سکندر) پاچاشی اودی دقطب خان لودی د خوریی شهزاده مبارک خان (باربکشاه) پرسیله کالک ولاړ، سلطان سکندر چه په

عیسی خان ئې ترمانې وروسته وباخښه او سلطان بخپله دهلی ته ځنی راغی (۱)

## د تخت ته ختلو جشن

سلطان سکندر چه د (پټیالي) له سوبې دهلی ته راستون شو د ټولو امیرانو په مخ کښې ئې په دهلی کښې د تخت نشینۍ دود پرځای کړ (۵۳) امیرانو ته ئې آسونه، خلاتونه، جاګیرونه او منصبونه ورکړل و ئې نازول او ټول رعیت ته ئې د یوه کال خراج ورو باخښه (۲) ټولو پاچاهي سپاهیانو ته ئې د دوو میاشتو تنخواوې د انعام په توګه ورکړې (۳)

## د ((نه برید)) تړون

د ملتان پاچا شاه حسین لنګا (۸۷۴ – ۹۰۴ ه) چه د سلطان بهلول په مړینه خبر شو د بانا ارمبارکۍ لیک ئې له ډېرو سوغاتو سره د یوه هیئت په لاس (سلطان سکندر) ته ولېږه او په دغه ترڅ کښې ئې د «نه برید» د تړون هیله هم څرګند. کړه سلطان سکندر د ده دا هیله ومنله او په دې توګه د «نه برید» تړون د ملتان او دهلی د پاچاهیو ترمنځ لاس لیک شو چه:

۱- د دواړو پاچاهیو لښکرې به تر خپلو خپلو پولو (سرحدو) نه سره تېرېږي او یو د بل پر خاوره به برید نه سره کوي.

۲- که مړی پاچاهۍ له بلې پاچاهۍ څخه مرسته وغوښته له ځان به نه ژغوري د هیئت غړو ته سلطان سکندر ډېر خلاتونه او سوغاتونه ورکړل او په خورا درناوي ئې ملتان ته رخصت کړل (۴)

## د شهزاده عالم خان پورته کیدل

سلطان بهلول چه مړ کېده شهزاده عالم خان زوی ئې د (کړه مانک) او (رابرې) د سیمو واکمن و، د پلار تر مړینې څو میاشتې وروسته ئې هلته

سلطان سکندر چه واوریدله، له ډهلۍ څخه ئې لښکري پسې ورواستلې.
سلطان علاءالدین چه په (چندوار) کښې کلابند شوتر څو ورځو کلابندی
وروسته (پټیالي) حاکم عیسی خان لودي ته وتښتید اوله هغه ځایه څخه
خپل وراره (اعظم همایون) ته چه د (کالپي) حاکم ؤولاړ، سلطان سکندر
د (زایږي) واك پرملي (۱) یا لوانی (۲) خان خانان ته وسپاره. پخپله
(اتاوي) ته پسې ور تیر شو اوه میاشتې ئې هلته تیري کړې څو خپل ورور
(سلطان علاءالدین) ئې پخلا اوله (اعظم همایون) څخه را بیل کړ
د (اتاوي) واك ئې سلطان علاءالدین ته وسپاره (۳) او پخپله د ډهلي ته
را ستون شو. (٤)

## د بیانې برید

سلطان چه له اتاوي څخه ډهلي ته راستون شو د بیانې سیمې ته ئې لښکري
و خوځولې دهغې سیمې سر کښان چه ئې څه سره وځپل بیر ته ډهلي ته راستون شو.

## د شهزاده باربکشاه پورته کیدل

شهزاده باربکشاه د پلار په ژوندد (جونپور) واکمن ؤ دده اداره څه کمزوري وه
د سلطان بهلول تر مړینې وروسته د لمرختیزو سیمو جاګیر دارا نو سرونه
پورته کړل اوځینو امیرانو دي هم دسلطان سکندر مخالفت ته پاراوه، ځکه
نو سلطان سکندر د ۸۹۵ھ کال په پای کښې د لمرختیز و سیمو واک خپلو
خو را درنو اوغښتلو امیرانو ته ورو سپاره اودجونپور په دربار کښې ئې هم
خپل معتمدان و ګمارل، مګر (باربکشاه) داونه زغملای شوای او د برتر سلطان
سکندر ته پورته شو، د (پټیالي) حاکم عیسی خان اود بهرایچ حاکم شیخ محمد
پ ملي کالاپهاړ هم ورسره ملي شو عیسی خان دسلطان بهلول تر پوراو شیخ

# دسلطان سکندر وروتل

سلطان چه د «بیانې» له سوبې څخه ډهلی ته راستون شو دری ورځی لا نه
وې تېرې شوې چه دسانگی په ډاک کښې له جونپور څخه د باربکشاه
دپوره کېداو حال ورته راورسېد.

سلطان سانگه وغورځوله او هغه آن ئې دلوانی اسمعیل خان په مشرتابه
جونپور ته بوتکړه فوځ ولېږداوه او پخپله ئې له بوه دراته لښکر سره پټیالي
خوا ته مخ ونیو. د پټیالي په شاؤ خوا کښې عیسی خان مخه ورته ونیوله په جنگ
کښې پخپله ټپی شو لښکروئې ماتې وکړه سلطان د اېلابیا و باخښه مگر له
دغه ټپه څخه د بر ژر ومړ او دپټیالي حکومت سلطان رای کهېن ته (۱) چه
دباربکشاه له خوا ورته را اوښتی ؤ ور کړ.

سلطان چه دپټیالي له ښخړی فارغ شو لونی اسمعیل خان ئې د روغی له
پاره باربکشاه ته ولېږه مگر کله چه اسماعیل خان ناکام راستون شو (۲) او
سلطان دجونپور اورته لښکري ولېږ دولي له هغې خوا باربکشاه هم د خپلو
فوځو اودشیخ محمد کالاپهاړ دفوځو سره مخ پر قنوج راروان شو، قنوج ته
نژدې دواړه لښکري سره مخامخ شوې جنگ ونښت.

نکل کاچه: په دغه ترڅ کښې یوه ملنگ سلطان ترلاس ونیو او ورته ئې
وویل: «بری ستادی!» سلطان په خورا کړ که لاس څخی کش کړ - ملنگ په
حیرت ورته وویل: «زه بر تادبری زیری کوم ته په کړ که لاس را څخه کاږې!»
سلطان ځواب ور کړ:

«دوه مسلمان فوځونه سره جنگېږی په دغسې وخت کښې د یوې خوا
پر سیله گرېدل نه ښایی بلکه هسې بهدې وېلی وای: «په څه کښې چه داسلام
خیر وی هغه دی خدای پېښه کړی - ځکه چه دهری خوا په سر به کښې چه

وايي په دغه جنګ کښي کالاپهاړ چه له خپلي ټولي د لې سره د سلطان
سکندر د لښکرو پرزړه بريد وکړ ونيوه شو او په عين جنګ کښي سلطان ته
بندي ورواندي کړ شو ـ سلطان چه ولیده له آسه ور ته را کوز شو او په غېږ
کښي ئې ونيوه برئې ونازاوه او ورته وئې ويل: «ته زما د پلار پرځای ئې ما
پخپل زوی والی ومنه».

کالاپهاړ د سلطان په دې وضعه ډېر خجل شو او وئې ويل :
«زه ستا د دومرو ښېګڼو بدله بې له يوه سرڅخه بل څه نه لرم يو آس دې
را ته را کړه چه داسر ستا له پاره وښندم» سلطان دی پر آس سپور کړ او
په ګډه ئې د باربکشاه پر لښکرو بريد وکړ، د جونپور لښکرو ماتې وکړه او
باربکشاه بدايون ته وتښتېد، سلطان تر شا په پسې ؤ او هلته ئې کلا بند کړ
باربکشاه مجبور شو چه وسله کښېږدي، سلطان چه پر خپل ورور باربکشاه بري
وموند بېرته ئې خوشاله کړ، د پرئې ونازاوه جونپور ته ئې بوت او تر انتظاماتو
وروسته ئې د پخوا په څېر بيا د جونپور او لمرختيزو سيمو واک ده ته ور پرېښود
مګر په دربار کښې ئې خپل معتمدان ورسره وګمارل او جونپور ته د نژدې
سيمو واک ئې دخپلو درباري اميرانو په لاس ورکړ، پخپله (کالپی) ته
وخوځيد.

## دکالپي حکومت

دکالپي حکومت سلطان بهلول د خواجه بايزيد زوی اعظم همايون
(خپل لمسي) ته ور کړی ؤ په ۸۹٦ هـ کال چه سلطان سکندر له جونپور څخه
هغو سيمو ته ورغی د (کالپی) واک ئې له ده څخه واخيست او (محمود خان لودی) ته ئې
وسپاره له (کالپی) څخه ئې (جهتري) ته مخه وکړه د (جهتري) او (کهتري) حاکم

## د ((گواليار)) دراجا مناسبات

سلطان چه له(جهتري)څخه لښکرى د(بيانې)لور ته خوځولى پخوا ترهغه (شيخ محمد پرملى) (۱)دخورا درنو خلانو او سوغاتو سره د گواليار راجا (مان سنگهه)ته وليږه،

(راجامان سنگهه)هم دسلطان استاځى په خورا درناوى دپنځه ويشتوزرو طلاواوسلو آسو سره ورته راستون كا او د اطاعت دځر گندو او له پاره ئې خپل وراره دزرو سپرو سره دسلطان دربارته راوليږه (۲)

## له(بيانى)بريد

سلطان چه له(جهترې)څخه (بيانې) خورسيږدد (بيانې) واكمن د احمدخان جلوانى زوى(۳)(سلطان شرف)ئې مخې ته راووت او دسلطان سكندرحكم ته ئې غاړه كښيښوده له سلطان ده ته د(بيانې)پرځاى دجاليسر، چندوار، ماهره اوسكيت سيمې په جاگير كښې ور كړې اوشروانى عمرخان ئې د (بيانې) د كلاد كليو ورسپارلو په نيامت و رسره كړسلطان شرف جلوانى چه د(بيانې) كلاته ننووت دروازې ئې وتړلې او كلابند شوسلطان سكندرچه د (جمنا) پرغاړه په ښكار اخته ؤ خان ئې نا گهانه واچاوه او لښكرې ئې د(اگرې) لورته وخوځولې دسلطان شرف له خوا واكمن ( شروانى ) يا جلوانى (هيبت خان)د كلادروازې دسلطان سكندر دلښكرو پرمخ وتړلې او كلا بندشو سلطان د پريه قهر شو څه لښكرې ئې د اگرې كلا بندې ته پريښو د لې اوپخپله ئې درنې لښكرې د(بيانې) خوا ته ستنې كړې (سلطــان شرف) بيا كلابند شو پښتنو لښكرو له هرې خوالارې پروتړلې مځكه ئې خورا پرسره كړه سلطان شرف امان وغوښت او د(بيانې) كلائې د۸۹۷ ه كال په اوايلو

تر انتظامانو وروسته سلطان لښکري اګرې ته راو لېږدواې [اګره] چه ئې
هم د [هیبت خان] له لاسه و کښېله دهلی ته راغی(۱)

## د جونپور او دوړ

سلطان حسین شرقي چه دسلطان بهلول له تور بريښه څخه په ۸۸٤ هـ کال
دجونپور له تخته لاس پر يوی د «بهار» خواته ولاړ، هلته د «جونپور» د تخت
د بیانیولو له پاره په خزه کښي غلي ورته ناست ؤ چه کله به دهلی د پاچهي
غړي په خپل منځ کښي سره ونښتلي او دي به دېلار او نيکه ورڅخه نللي پاچهي
بېرته لاس ته راولی او تل به ئې دهمدغه غرض له پاره د «جونپور» جاګيرداران
لمسول او په لمرختيزو سیمو کښي به ئې دانو دوړ له پاره زيار يوست .

سلطان سکندر چه د «بيانې» په نیولو بوخت ؤ، ده دجونپور يوزمينډار چه
«جوګا» نومېد دسلطان سکندر پر ضد بغاوت ته وامساوه، روبېرئي ورولېږلې
«جوګا» هم په «پنجکوټی» کښي تقريبا يولك تنه لښکر پر خان سره راغونډ کړ
دجونپور نور جاګيرداران هم ورسره ملمه شول، د «کړې» یاقنوج پر حکومت
ئې بريد وکړ ددغه ځای حاکم «لوانی مبارك خان» په جنګ کښي مات شو،
د ګنګا د سین تر [پرستی پال] (۲) یا (جوسی بیاګ) (۳) ګدر چه پوری ووت،
مانو ګانو ونیو او د (تهتهی) راجا (رای بهید یا شهید یو) ته ئې په لاس ور کړاو هغه
بندي وساته. دمبارك خان ورور شیرخان په دغه جنګ کښي شهید شو، دجونپور
دیري سیمي د (جوګا) په لاس ورغلې (باربکشاه) ویو هېد چه ز ۰ هم ورته

تهٔولاړ او دعمه زوی شیخ محمد پرملی (کالابهار) ته ئې پناه ور وړه د جونپور انتظام کېږدو شو (۱) .

## دجونپور دوهم جنګ

(۸۹۷هـ)

دا یلا بیا چه سلطان د(بیاني) له سو بی څخه ډهلی ته راستون شو هغه ئې لا بشپړه نه وه تیره کړې چه دسانګی وهلو ( Polo ) په داګ کښې دجونپور داړو دوړ حال ورته را ورسېد، هیش پاته شو چه څرنګه بوه واړه زمیندار دومره لوی لښکر راغونډ کړ او دجونپور پاچهی ئې ونیوله! سمدستی ئې سانګه وغورځوله او برابر دخانجهان کره ورغی حال ئې ورته ووایه او سلا ئې څنې وغوښتله .

وایی په دغه وخت کښې (خانجهان) پر ډوډۍ ناست ؤ سلطان ته ئې وویل داښه مرغ (فال) دی! ته ډوډۍ وخوره بیا به ګورو، سلطان له ډوډۍ خوړو څخه ته وکړه راووت کوز ته ته ولاړ دډهلی تر ښار دباندې ئې پاچاهی خیمه ووهله امیرانو او لښکرونه ئې دتیارسیء حکم ورکړ چه تیاری بشپړې شولې بوویشتمه ورځ سلطان له هغې خیمې څخه دخورا درنو لښکر وسره په خورا تلوار د جونپور اوړ ته وخوځېد تر ګنګا چه ورېږې ووت په (دلمئو) کښې (۲) بارېکشاه خان ورته را ورساوه ډېرئې وناز اوه، دتهتهې (۳) راجا هم له ډېرې مبارک خان لوانی خوښی کړ او له سوغاتو سره ئې سلطان ته راواستاوه ګړندی سلطان سکندر په لوړ ځو کښې خان دباغی (جوکا) سیمې ته ور

ليږل شوی ؤ دیاغی لښکرو حالات ورته راوړل اووی ويل : چه اوس ترياغی لښکرو پوري لږه لار پاته ده لحکه نوسلطان دهغو لتومسلمانانو چا گيردارا دوته حالونه ور کړل .

«داسيمی او کلاوی چه اوس ستاسی په لاس کښې دی ما تاسی ته دربخښلی دی خدای دی ئې ستا سی روزی کړی ' زه نش د(چو کا) کافرا يداد او لحبلو لره راغلی يم که تاسی پخپله ده ته ايداد ور کولای شیء نبه - کنه له کلائي راوباسیء زه دغه کافرنه خورا کلك ايداد ور کولای شم او تينگ باور لرم چه تاسی به د کافرملا ونه تړیء » .

سلطان له يوي خواد(چو کا) ملهچا گيردارانو ته پارول او له بلې خوائې خپلې لښکری له شاؤ خوا څخه د( کاتهر گړ ) پر کلا ر څرخولی او ديوه لوی بريد ترتيبات ئې نيول ' په دغه ترڅ کښې سلطان حسين د(جونه) له کلا څخه خپل يودروند امير (ميران سدخان) داستاځی په حيث له دې ستوخ او سپور پيغام سره (چه چو کازما نو کردی یام کوه ستاپلار سپاهی سری ؤ لحکه ما له هغه سره خپله توره آزمويله اوته چه له دغی نا پوهی څخه لاس نه اخلی تا ته به نود توري پرځای په موچنه ايداد در کرم) دسلطان سکندر دربار ته راوليږه او په دې تو که ئې دخپل لمسون اوراتگ خبره چه تراوسه پوري پټو له څر گنده کړه (١) .

باحوصله سلطان سکندر د دې ستوخ او سپور پيغام په ځواب کښې په خورا سړه سينه دومره وويل : «تردې پخوا ما (سلطان حسين ) ورور بللی دی

هغه ادب پسې پالم زه دې سېموته دکـ فرانو دا پداد او ځپلو په نيامت (قصد) راغلی یم، دی چه د کـافرانو پرسيله درپېږی ده ته به يخپله څر ګنده شي چه يخپله ناپوهی کوی داتول مسلمانان دا اوری له کومی خولي چه دموچنی توری راوتلي دی که خدای کول پرهغه خوله به ونښلی »

سلطان سکندر تر دغی وینا وروسته دسلطان حسين استاځی (میران سیدخان) ته مخ راو گرزاوه او ورته وې ويل :

« ته خو دنبی [ص] اولادئې ولي دده غوږونه نه ورخلاصوې داومنه چه بیا به پای ته پښيمانی کوې! » میران سیدخان بی له دې بل ځواب نه درلود چه : « زه دخپل سلطان ترخبرې نشم تېرېدلای او دده ترواك نشم وتلای » سلطان وفرمايل :

« قسمت او عقل لکه کندو لمن سره څرمه اوبر له نښتی دی دچا چه نصيب بدشی سدئې هم لـه سره ځی رښتيا داده چه ته ملامت نه ئې ، خوسبا چه (که خدای کول) دی (سلطان حسين) وتښتی اوته ونیول شې زه به داخبره در یاده کړم چه کـه تا (سلطان حسين) پوه کړی وای نه به وو »

تر دغو خبر واترو وروسته د سلطان حسين استاځی رخصت کړ شو او سلطان سکندر د (جونپور) دجا گير دارانو پر ځای دجونپور دښتېدلی پاچا جنګ ته لېږی را وغښتلي دا جنګ د سلطان سکندر د پاچهی دوختو لمړی لوی جنګ ؤ ځکه ئې نودیلار دوختو درانه اوتوريالی اميران څه چه به لښکرو کښې ورسره وو راوبلل او ورته وې ويل : « د مړه سلطان پـه وختو کښی تاسی ډیری توری کړی دی او دنمك حق موادا کړی دی مگر زمايه پاچهی

# د جنګ ډاګ

سبا وختي د جنګ نغارې ووهل شوې؛ پښتانه ځانونو ته راټول شول. سلطان سکندر د لودي اوشاهو خپلو فوځونو د لښکرو په زړه کښې ځای ورکړ — کيڼ پلو ته يې لوهاني فوځ — ښۍ لاس ته يې پرملي فوځ او شانه يې د شروانيو فوځ و دراوه. مبلی توريالي او ازموېلي زړه ور شرواني عمرخان ته يې يو درونده فوځ د سرلاني (قراول) په توګه په لاس ورکړ چه د ټولو فوځونو مخ د سلطان حسين پر خوا واړوي — عمرخان چه د لښکرو تر مخ پر يوه جنګي پيل سپور و، د [جوند] (۱) يا [جموند] (۲) پر جګه او اوږه کلا يې چه سترګې ولګېدلې، وي ويل: «د دغه کلا د چه غليمان پرې نازېږي مونږ بيا هم څه تحمل وکړو، پرېږد په وخندوو، سره د دې که دوی سمې لارې ته رانه غلل بيا نو زمونږ ګناه نه ده».

سلطان حسين بې بخته چه په خپلو لښکرو مغرور و، د [جوند] له خوا ټينګې کلا څخه ور ته راووت او د شېرواني عمرخان له فوځ سره و نښت خورا کلک جنګ وشو مګر ډېر ژر سلطان حسين همت بايلود ميدان يې پرېښود، له وار خطا يې د «جوند» تر ټينګې کلا تېر شو او بيا يې د (بهار) لور ته تر پلل ډېر درانه اميران يې چه (ميران سيد خان استاځی) يې هم پکښې و، د عمرخان د لښکرو پلاس کښېوتل او لوځی پښې لڅ سرونه په خپلو خپلو لنګو تونړ اې مو تې د سلطان سکندر حضور ته (چه پسې راور سيد) ور وستل شول مګر د سلطان شر افت داو نه منلای شوای مخ يې ځنې و ګرزاوه حکم يې وکړ: «د دوی مو ټې خلاصې کړۍ لنګوټې ور

«څښتن دې پر تاسې ورحمیږي څه چه تاسې وکړه هغه دوفا تقاضا وه دسلطان حسین بخت کرزیدلی ؤ، هغه تاسې څه کوی تاسې ډا ډه اوسئ! »

سلطان تردی و بناور وسته هر بندی امیر ته دوه دوه آسونه زر و بخښل او حکم ئې وکړ چه ژر دې دهر امیر له پاره بیله بیله سراپرده، یوه یوه څلور اڅکیزی خیمه، یو یو سایوان «چتر» و بخښل شي، اس لس پرده داره پلنګونه او نور ضروري سامانونه دې هم ور کړل شي دا تول شیونه ډیر ژر مهیا کړل شول خیمې وسرا پردې ونجتلې شوې بیا نو سلطان هغه ټیولی شوی امیران له خپل حضوره خپلو سرا پردو ته رخصت کړل.

نګل کاچه تردغې سوبې وروسته (قنوج) یا کړی پخوانی حاکم لوانی میبا رك خان په دربار کښې ولاړ شو دسلطان حسین تیښته او سپیتانه ئې وغندله او دسلطان سکندر پرزړه او توره ئې اشکی (آفرینونه) وو یل:

سلطان پردې خبره په قهر شو ئې تراته اوورته وی فرمایل:

«سلطان حسین مونږ و تا سې ته دې تښتولی بلکه د څښتن قهر و تښتاوه داهغه سلطان حسین دی چه تاسې ئې تښتولی واست - کوم څښتن چه دی مات کړ هغه څښتن دی بیرته بریالی که لای شي دخدای کړو ته کوری لوبی مه کوی غټې خبری نبې نه وی - سلطان حسین ته له خپله غروره څخه دا کار نې ور پیښې شولې (۱) سلطان سکندر د سلطان حسین تر تېښتې وروسته دجونپور باغې زمیندار ان و خپل ددوی سیمې ئې تالا کړې - پښتنو خلمیو ته خوراډېرې ولجې په لاس ورغلې او د (کهکر) په سیمه کښې دېرو پښتنو مشرانو ته خوراډرانه درانه جا ګیرونه ور کړل شو (۲) سلطان سکندر چه دزمین دارانو له ځپلو فراغت وموند

# دجونپور دريم جنگ

سلطان چه له (جونپوره) څخه (اوده) ته ولاړ هلته ئې يوه مياشت په ښكار تيره كړه حال ئې ورغى چه (باربكشاه) بيا د زميندارانو له لاسه نږدې دى چه جونپور پرېږدى سلطان ته دردورغى شيخ محمد پرملى (كالاپهاړ لوانى) او پرملى خان خانان او شروانى اعظم همايون ئې و گمارل چه د (اوده) له لارې جونپور ته له لښكر و سره وخوځېږى او لوانى مبارك خان ئې وگماره چه د [كړې] له لارې پر [جونپور] ورسى او (باربكشاه) بندى ورته راواستوى د الښكرې له دواړو خواوو پرجونپور ورغلې دجونپور سر كښه زميندارانئې وځبل [باربكشاه] ئې سلطان ته راووست سلطان «باربكشاه» هيبت خان لوانى اوعمر خان شروانى ته وسپاره او دجونپور حكومت ئې مبارك خان (١) ته ور كړاو پخپله ئې لښكرې د «چنار» د كلا لور ته راښږدولې دسلطان حسين ځينو اميرانو چه هلته ځانونه رسولى وو، جنگ ته راووتل تريوه سپك جنگ وروسته په كلا ننوتل ځكه چه كلا د ېر ه ټينگه وه نو سلطان خپلې لښكرې د «پټنې» دلتې «كټبى» يا [تهټهې] سيمې ته وخوځولې «راجا بهيد» يا «راجا بلبهدر» ئې دسوغاتو سره مخې ته راووت ـ سلطان هم دده سيمه ده ته ورپرېښوده له [اريل] ته پسې ور تېر شو په دغه ترڅ كښې [راجا بهيد] يا [رجا بلبهدر] له ېېرې څخه كوركهول او ملك او مينه پرېښوده له او يوائځې ئې [پټنې] ته مخ ونيو، سلطان چه په خبر شو دده تول مالونه او نوكران ئې له كوره كهول سره په خوراد رناوى ور ولېږل او پخپله «اريل» ته ولاړ،

هلته ئې دشهید شیرخان لوانی لو (۱) پیا کوټه (۲) وکړه شمشا با ت ته پسی ورتیرشو هلته ئې د ۸۹۹ هـ کال رووستی شپږ میاشتی تیری کړې او ددغو سیمو ټول علماو دارهماران ئې پوښنا کړل په دي توګه دسلطان سکندر تقریباً دري کلونه پرله پسي تریا یتخت (دهلی) دباندی په جنګو او انتظام کښې تیرشول او هغه چه په ۸۹۷ هـ کال دجونپور دوهم جنګ ته دهلی ته ۲ ورغو اوسپدلو وروسته راوتلی ؤ نو ۹۰۰ هـ کال پوري په لمر ختیز وسیمو کښې پسي پاتـه شو.

## د ((سرکچهه)) او ((شهدیو)) سوبه

## ((۹۰۰ هـ))

چه پشکال (برسات) تیرشو د ۹۰۰ هـ کال په نوی سلطان سکندر لـه شمشاباد (شمس آباد) څخه خلپې لښکري د (بهټني) لورته د (راجا بلبهدر) ځپلو لـره وخوځولي بنارس ته نژدي په (کهارن کهانی) (۳) یا (مکهان کهالي) (٤) کښې د [رای بلبهدر] زوی (ارسنګهه) مخه ورته ونیوله جنګ ونښت کـافرانو ماتی وکړه او (ارسنګهه) بخپله (بهټني) ته وتښتید سلطان چه (بهټني) ته پسي ورغی (رای بلبهدر) د (سرکچهه) (۵) لور ته ونښتید او پرلاري په تیرشو (٦) سلطان چه (دبهټني) له (سرکچهه) څخه (شهدیو) ته ولاړ، ځکه چه له یوې خوا لار خوراسخته وه او له بلې خوا د غلو او ونو خورا کاختی وه دسلطان دفوځ په سل کښې نوی آسونه ضایع شول (۷)

---

(۱) خورشیدجهان ۸۲ مخ (۲) تاریخ فرشته لمړی جلد ۱۸۱ ـ او تاریخ افاغنه ۵۲ مخ او

مخزن افغانی ۹۹ مخ، شوکت افغانی ...

ځکه نو سلطان برمخ نه ولاړ او بیرته ئې (جونپور) ته لښکري پلي را ستنې کړې چه ګوندې هلته به دفوځ سامانو نه وربرابر کړي او لښ به سپاهیان هم دمه اوهوسا شي سلطان چه جونپور ته را ورسید هلته شپږ میاشتې (۱) واوسید او دلښکرو یه انتظام لګیاؤ (۲).

## دسلطان حسین وروستی جنګ

(۹۰۰ھ)

دجونپور زمیندارانو په تیره بیا د(رای بلبهدر) زوی (لکهم چند) چه دسلطان سکندر دلښکرو دا بده ورځ او کتې و کړې حال ولید سلطان حسین شرقي ئې بیا جنګ ته وپارا وه سلطان حسین هم دخورشید جهان په قول دبولك سپرو اوسلو پیلانو سره له بهاره مخ پرجونپور راو کوچیده سلطان سکندر چه په خبر شو، ځکه چه خپلي لښکري ئې لا نه وې چمتو شوی نو ئې خان خانان دیهتې (۳) راجا (رای سالباهن) ته ولیږه او خپلي مرستې لره ئې راو باله دیهتې مرسته لانه وه رارسیدلې چه سلطان حسین بیاد بنارس (٤) یا جونپور (٥) اتلس کروهی ته را ورسید سلطان سکندر هم وروت پهلاره کښې رای سالباهن هم له خپلو فوځو سره ورته را ورسید سلطان سکندر چه دسلطان حسین دلښکرو اوه کروهی ته وور ورسید دخپلو لښکرو شمیرئې واخیست په اوپاررو پښتنو میرو نو کښې اوه زره سپاره او په نورو دیرشو زرو سپاهیانو کښې دري زره سپاره یا نه وو نور ټول پلي شوي بې آسه ؤ، سلطان سکندر د خدای په مرسته پر مخ بسي ور تیر شو د( کنتیت)

بر ګدر تر ګنګاوره پورې ووت (۱) لښکرې سره مخامخ شولې جنګ ونښت د سلطان حسين يو لکو سپرو پر پښتنو مخکښ خوراسره کړه او په دغه ورځ درې پلا پښتنو لښکرې له ځايه بېځايه شوې خو پښتنو مېړو تو تښتې ته غاړه نه کښېښوله او بيا به لکه داوسپنې غرونه کلک ورته ودريدل په دې جنګ کښې پښتنو هغه توري ووهلې چه د رستم رخه به کيدله .

د سلطان حسين د لښکرو په سر لاښ (مقدمه) کښې تول پيلان درول شوي وو دا پيلان چه ئې پر پښتنو راهی کړل د بر خلمی ئی سره وځبل او د پښتنو په صفو کښې ئې درزونه وا چول .

تکل کاچه په دغه ترخ کښې يوه خورا مست جنګی پيل پخپله سلطان سکندر په شونډك کښې واخيست له ډا ګه ئې راوويشت خو مېړنی سلطان خدای وساته هيڅ پرې و نه شوه او په دغه حال کښې ئې هغه پيل پر شونډك هسې په توره ووهه چه په رمباړوئی تر شا تر پلل او وتښتيد .

پښتنو چه د خپل پاچا دا مېړانه يا کرامت وليد بيا تاوده شول په يو د پلا د سلطان حسين د لښکرو پر زړه ورتوی شول او په همدغه بريد ئې د سلطان حسين د لښکرو پښې له ميدانه وکښلې سلطان حسين د [بهار] لور ته وتښتيد او سلطان سکندر تر بهاره سم په پسې ؤ (۲)

سلطان حسين د [بهار] کلا خپل يوه امير [ملك کهندو] ته وسپارله او پخپله د لکهنو تی [بنګال] پاچهی ته واوښت د بنګال پاچا په ښه ستر ګه ورته وکتل جا ګيرونه ئې ور کړل او سلطان حسين له دې ماتې وروسته بيا ترمر ګه پورې د پاچهی نوم وانخيست (۳) مګر مرقع افغان ليکی چه سلطان حسين

# د((بهار)) او((تیرهوت)) نیول

(۹۰۰ هـ)

ځینې وائي دسلطان حسین لښکروچه ماتې وکړه، سلطان حسین[پښتنی] ته مخ ونیو سلطان له لښکروسره په پسې ؤ خو په پښتنه کښې خبرشو چه سلطان حسین[بهار]ته ځان رسولی دی، بېرته راستون شو او پس له نهو ورځو چه خپلو لښکروته راورسېد ــ دبهار خواته ئې مخه وکړه سلطان حسین چه خبر شو پخپله[الکهنوتی]ته وتښتېده اودبهار کلائې[ملك کهندو]ته وسپارله (۱) سلطان سکندر چه [دیو باري] ته ورسېد بو فوځ ئې ترمخ د ملك کهند و خپلو لره د[بهار]د کلالورته واستاوه، [ملك کهندو] چه داراورېد له د وي پښې ئې ځلور کړی اوهسې ئې په تېښته ورزو نه حلاص کړل د سلطان سکندر لښکرو بې له جنګه په ۹۰۰هـ کال بهار ونیو سلطان هم پسې ور ورسېد، بهار ئې [مشوانی محبت خان]ته چه نوی له قندهاره ورغلی ؤ وسپاره (۲)

نورخه امیران ئې هم ورسره پرېښوول او پخپله ئې لښکرې [درویش پور] ته وخوځولې په[درویش پور] کښې ئې دېلو لښکرو مشرتوب [خان خانان]او [خانجهان] ته وسپاره اوهلته ئې پرېښود، پخپله ئې د سپرو لښکرو سره د ترهت [تیرهوت]خواته مخه وکړه د[ترهت]راجائې مخې ته راووت او د کال ئې څو لکه تنګې خراج ومانه سلطان لوانی مبارك خان هلته ددغه کال خراج ټولولو ته پرېښود پخپله تر ۱۵ ورځو سفر وروسته [درویش پور] ته ستون شو (۳)

هلته چه ور ورسېد د ۹۰۱ کال د شوال د ۱۶ (٤)د پېلو لښکرو مشر

زري منصب [نايب سالاري] دپلار جا گیر او د [اعظم همایون] خطاب ور کړ، بیا نو دهندوستان دمشهور ولي شیخ منیري رحمة الله علیه (١) ز یارت ته ولاړ دهري روبهه ئي محتاجانو ته ورکړي، بېرته [درویش پور] ته راغی (٢)

## دبنگال برید،

سلطان سکندر چه شیخ شرف منیری له زیارته (درویش پور) ته راغی دبنګال خوانه ئي چه (سلطان حسین پناه وروړی وه) لښکری وخوځولی، دپښتنو لښکری چه [قتلغ پور] ته ورسیدلي. دبنګال پاچا سلطان علاء الدین [٩٠٠ هـ ـ ٩٢٧ هـ] ئي (٣) د خپل زوی شهزاده دانیال ترمشر تا به لاندي یو تکړه او خورا درونده فوځ چه خورشید جهان ئي یو لك سپاره او پنځه زره پیلان کنی مخ نیوه لیره وګماره لنه دي خوا سلطان سکندر هم د محمود خان لودی هیبت خان او دل [درانی] او مبارك خان لوانی تر مشر تابه لاندي یو ګړندی لښکر چه خلو ښتو زرو سپرو ته رسیده ورو استاوه په (باره) کښي دالښکری سره مخا مخ شولي، تر یوه سپك جنګ وروسته په دي تو که روغه سره وشوه:

١ـ یو د بل په سرحدو کښي به مداخلت نه سره کوی.

٢ـ یودبل دغلیمانو پرسیلمه به نه سره در بېږی او پناه به نه سره ور کوی.

تر روغی وروسته محمود خان لودی هیبت خان او دل [ابدالی] او مبارك لوانی خپلي لښکري [قتلغ پور] ته راستنې کړی پرلاري دبهار په [پټنه] یا [بیتنه] نومی کلی کښي مبارك خان لوانی ومړ، هیبت خان اودل او محمود خان چه [قتلغ پور] ته وررسېدل سلطان سکندر لښکری [درویش پور]

ته را ستنى کړى نو خو ميا شتو او سپېدلو و ر و سته ئې د [ درو يش دور] حکومت د مړه خانجهان زوى اعظم همايون او د [بهار] حکومت ئې دمړه مبارك خان لوانى زوى [دريا خان] ته و سپاره پخپله ئې د [ سارن] (۱) يا [سارده] (۲) لور ته لښکرى ستنې کړې دهغو خواؤ ځينې سيمې ئې د پخوانيو جاګير دارانو له لاسه وکښلې اوهغو پښتنو ته ئې ور کړلې چه نوى له قندهاره ، ارغستان اوکسې غره [ کوه سليمان] څخه ور ته ورغلى وو (۳) .

پس لهدې سلطان د [مچهلى ګنر ه ] لهلارې [ جونپور] ته راغى اوهلته ئې لښکرو ته شپږ مياشتې هو سايې ورکړه .

## د (( پټنې )) بريد

[۹۰٤ ه]

په ۹۰٤ ه کال سلطان خپلې لښکرې لهجونپور څخه د [پټنې] لور تهوخوځولې هغهسيمې ئې تالا کړې د[پټنې 'پايتخت(باندهو ګړ) ته چه سلطان ورسېد راجا کلا بندشو پښتنو ځلميو د برز يارو يوست خوهغه ئينګه کلا ئې فتحه نکراى شواى (٤)

سلطان سکندر بېر ته خپلې لښکرې جونپور ته ځنې راستنې کړې.

پدې يرغل کښې سلطان د(پټنې ) دراجازوه و کيش اوهمدغه ئې مطلب ؤ چه که سلطان ډهلى ته ولاړ شى بيا پر جونپور باندې دبريد فکر په کوم سر کښې

## دموجی خېل ((مبارك خان)) تر ټل

سلطان چه له (پټنې) څخه جونپور ته راغی د جونپور لهحاکم مبارك خان څخه ئې دمالیاتو حساب وغوښت سړی ئې و ګمارل چه د کار بلتهنه ئې وکړی په نتیجه کښې څرګنده شوه په مبارك خان په خېل شپېږ کاله حکومت کښې څو را دېرې روپۍ ګړوپ وهلی دی سلطان حکم وکړ چه تر اې خوند لې روپۍ دې ځنې تحصیل کړې شی څرنګه چه پښتنو امیرانو دده زړه رمی وکړې و نه منلای شوې او سلطان ده‌ې لهپاره چه انتظام وران نشی سره ددې چه پردې خبره څه پښتانه امیران لهسلطان څخه خوا بدی هم شول تر خپل حکم تېر نه شو (۱)

## دشهزاده فتح خان پورته کول (۲)

دسلطان کسرت (ورزش) سانګه وهل Polo ؤ، هره ورځ ئې داد سپاهی توب کسرت له امیرانو سره کاوه، پاته ئې نه درلوده.

یکل کال چه په ۹۰٤ ه کال یوه ورځ دسانګی په ډاګ کښې دا ببره د (شروانی هیبت خان) سانګه ددریا خان (۳) دزوی (سلیمان خان) د سانګی سره داسې وجنګېده چه دسلیمان خان سر په مات شو.

دسلیمان خان ورور (خضرخان) بې پوښتنې او ګروېږنې دیاچایه مخ کښې په لوی لاس سانګه پورته کړه او دهیبت خان ککری ئې ورماته کړه.

دلو بویه ډاګ کښې اله ګوله جوړه شوه او دی محمود خان او خان خانان په منځه ځان ور ورساوه ګوانښ ئې وکړ هیبت خان ئې تر کوره ورساوه لوی پاته شوې.

سلطان هم ولاړ څلور ورځې ساڼګې وهل پانه شوه - څلورمه ورځ سلطان پهدې فکر چه اوس به نود واړی ډلی سره ښخلا شوی وی دساڼګې ډاګ ته راووت که ګوری چه دښهر وانهی هیبت خان بو خېل (شمس خان) هلته غلی ساڼګه په لاس کښې له قهره سره پړسېدلی ولاړدی چه ستر ګی ئې پر خضر خان ولګېدلې ورونې دانګل او ساڼګه ئې پر ککری ور وکتل ،

سلطان چه دمخه لا څارو ؤ پېښه ئی بخپلو ستر ګو ولید له ، شمس خان ئې وروغوښت او پخپله ئې خورا و ډباوه - له ډېری خوا شینئ څخه ئې کسرت (ورزش) پرېښود او کور ته ننووت ، داشخړه ډېره پسی اوږده شوه ، پښتانه امیران سره دوې ډلی شول ، یوه ډله دپاچا مخالفه شوه او بله موافقه سلطان په خبر شو ، مګر هیڅ‌پانه ئې څه ونه ویل دومره ئې وکړه چه هغه امیران ئې چه ده ویسا پر درلوده دځان ساتنی لره وګمارل .

مخالفی ډلی وغوښته چه دسلطان سکندر کشرورور (شهزاده فتح خان) دځان مل کړی او د سلطان پر ځای ئې پر تخت کښېنوی - شهزاده ته ئې داراز ووایه او د پاچا مخالفت ته ئې ولمساوه مګر شهزاده خپل وروړ سلطان سکندر ښه پېژاند او پوهېدی ء چه سلطان که ساه خولی ، متحمل او زړه سواند دی ، مګر متجسس ، مدبر ، سپاهی او سخت ګیره هم دی‌دده دتدبیر په مخ کښې داسې توطئې نشی کېدا ښیا ببدلای او نه کومه توطئه پټه ځنی پاتېدلای شی او که پر پاچا بد ګمانه شو بیا دهغه خلاصون هم څه آسان کار نه دی ، ځکه ئې نو خپلې مور او خپل پیراواستاد شیخ حسن طاهری

ته ورسره او سلطان ته دا نکل سر ته پایه ورسره هسی نه وی چه د هغو مخالفو بد اندیشانو په اور ته و نه سوځي .

د شهزاده فتح خان هم دا سلا خوښه شوه خپل ورور سلطان سکندر ته ورغی نکل ئې سرته پایه ور ته عرض کړ ـ سلطان دده پر و ینا سکته و نکړه ' بخپله ئې هم پلټنی و کړې چه حقیقت ور څرګند شو نو ئې هغو مخالفو امیرانو ته خوراسره لیری لیری جا ګیرونه ور کړل او په دې ډول ئې هغه فتنه چه ډیری وینی به پکښی توی شوې او ډېرې ځوانۍ به پکښی نیمه خوا شوی وای پر مخ ور که کړه (۱)

په دغه لړ کښی ئې په ۹۰۷ هـ کال سعید خان شروانی چه له مخالفته ئې لاس نه اخیست له لاهوره راوغوښت او د برملی تاتارخان اولودی محمد شاه سره ئې د ګجرات خواؤته فرار کړل . (۲)

## د ((سنبهل)) مینه

(۹۰۵ـ۹۰۹هـ)

سلطان سکندر اوه کاله پله پسی د هیواد دلمر ختیزې سیمې په انتظامانو بوخت ؤ دهغو سیمو یاغي زمینداران ئې وځپل د (پټنې) دراجا زړه ئې و کیښ او د بنګال دپاچهی سره ئې د (نه برید) تړون و کاندہ سلطان حسین له پاچهی نه توبه و کښله اوس نو په شرقی خواؤ کښې څوك پاته نه شو چه سر پورته کړی ځکه نو سلطان خپل فوځونه له جونپور څخه راوایستل ' خو بیا هم ځکه چه دهلی د هیواد له شرقی سرحد څخه ډیر لیرې پروت ؤ نو ئې سنبهل ( او سنی مراد آباد ) چه له دهلي څخه لمر ختیز پلو ته پروت دی خپلې استو ګنې له پاره

وهلو ښکار او سیر ته پر شول په دغو کلو کښې د برې ابزې داسې پیښې شته چه باید ذکر شي کومې چه د ذکر وړ دي هغه دادي :

**د ډهلي حکومت:**

دقوام الملك زوی اصغرخان دسلطان له خوا دډهلي حاکم ؤ د ۹۰۷ھ کال په نوي د ...ه دناوړو کارو له امله سلطان ور ته په قهر شو، (ما چي وایې) با (سرهند) حاکم (خواص خان) ئې ور کماره چه ډهلي ته ولاړشي او اصغرخان بندي (سنبهل) ته ور واستوي، خو اصغرخان چه په دې حکم خبر شو پخوا تر دې چه خواص خان ور ورسیږي دخپل اطاعت دغرگندولو په نامه خپل زوی فیروزخان (سنبهل) ته د سلطان حضور ته ور ولیږه - سلطان دفیروزخان د بند حکم و کړ.

خواص خان چه ډهلي ته ورسېد اصغرخان ئې هم بندي (سنبهل) ته پسې واستاوه ډهلي ئې خپل زوی اسمعیل خان ته و سپاره او پخپله بېر ته خپل حکومت ته ولاړ (۱)

ځینې مورخین لیکي چه اصغرخان پخپله د خواص تر ورسېد لو دمخه د ۹۰۷ ه کال د صفرې پر.... دشنبې به شپه ډهلي پرېښود او دسلطان حضور لره (سنبهل) ته ورغی (۲)

## دگوالیار دراجا ستاځی:

په ۹۰۷ھ کال دګوالیار دراجا (رای مان سنګه) ستاځی (نهال سنګه) دسلطان دربار ته له ډیرو سوغاتو سره راغی خو دستاځي ژبې ژبې سلطان مجبور کړ چه د ...ه ته در خصتولو پوخت کښې دخپلو ور تلو او د گوالیار د ...لو وعده ور کړي

## دېرملي خان خانان مړینه:

عمادنه وسپاره (۱) خو یو کال وروسته ئې له دوی څخه (بیانه) لکه واخسته له چه د:ی بې اجازې د سلطان حضور ته راغلل (۲) او خپل یو خو ر ا گرندی او نور یالی امیر خواص خان ته ئې وسپارله ، دوی ته ئې د (شمشاباد کیتهل، جالیسه او شاه آباد) سیمې په جاگیر کښې ور کړې .

## داجمیر حکومت.

سلطان داجمیر حکومت او دینځو زرو سپرو منصب او جاگیر (شیخزی صفدرخان) ته ور کړ (۳) او دا گړې دضبط له پاره ئې هم و گماره :

## د راپړی حکومت :

په ۹۰۸ ه کال سلطان د (راپړي) حکومت لوانی خان خانان ته وسپاره .

## دمیوات حکومت.

په همدغه کال دمیوات حکومت دسلطان له خوا (لودی عالم خان) ته ور کړ شو (٤)

## دلاهور حکومت.

په ۹۰۸ ه کال سلطان دلاهور حکومت (تاسیاله دولت خان لودی) ته ور کړ په دغه وخت کښې د (بهیره) حکومت د میر علی بیك د لمسی دغازی خان دزوی سیدعلی مغل و او خطبه ئې د سلطان بهلول او سلطان سکندر په نامه ویله دولت خان د بابر مغل سرهدار تباط له بیرې دا حکومت له سیدعلی مغل څخه واخیست او خپل مشر زوی علی خان ته ئې وسپاره (٥) د سید علی مغل زوی (منوچهر) دبابر مل شو (٦)

## د ((دهولپور)) سوبه

(۹۱۰ ه)

په ۹۰۰ ه کال سلطان سکندر د بیانې حاکم (خواص خان) دمیوات حاکم (لودی عالم خان) دراپړې حاکم (لوانی خان خانان) او گماریل جه دخواص خان

ترمشر تا به لاندې پر (دهولپور) بريد وکړي، نوموړو خپلې لښکرې پر (دهولپور)
ورو بهولې ددهولپور راجا (مانك ديو) يا (نايك ديو) له پنځو سوو زرو راجپوتو
سپرو سره مخه ورته ونيوله، داسې کلك جنګ ونښت چه غازيانو درې ورځې
پله پسې داسې دوله شاوخوا څخه ځينان وانه ختلای شوای (١) ډير توريالي پښتانه لکه:
(خواجه بين) چه په يوه سر به ئې لښکرې ماتولې په دغه جنګ کښې شهيدان
شول (٢) (نايك ديو) په خورا ميړانه پښې ورته وتړلې او خواص خان هيڅ پرمخ
نه ولاړ (٣)، سلطان ته چه دا حال ورسېد په خورا تلوار ئې د همدغه کال د روژې
دمياشتې پر شپږمه د جمعې په ورځ له (سنبهله) څخه خپلې درنې لښکرې د (دهولپور)
لور ته وخوځولې، هلته چه ورورسېد (مانك ديو) يا (نايك ديو) چه د سلطان
د لښکرو سره د جنګ تاب په ځان کښې نه ليد خپل کور کهول او لښکرې ئې
د (دهولپور) په کلا کښې پرېښوولې او پخپله ئې د (ګواليار) لور ته مخ ونيو -
د کلا خلکو چه هم په ځان کښې د جنګ سېك (طاقت) نه ليدی د شپې ئې کلا خوشې
کړه او پر بېړه ئې مخ ونيول د (دهولپور) سيمه بې جنګه سلطان ته پاتې شوه
سبا سهار چه سلطان په کلا ورننوت تر هرڅه لمړی ئې دوه رکعاته نفل لمونځ
وکړ او پاك خدای ته ئې د شکر په سجده تندی پر خاورو کښېښود بيائې محتاجانو
ته خيراتونه او اميرانو ته خلاتونه او منصبونه ورکړل د سوبې نغارې وډنګېدلې
پښتنو لښکرو د (دهولپور) سيمې تالا کړې او د سلطان په حکم ئې هغه ځنګلونه
او باغونه چه او کروه پله پورې براته او د غليم خورا کلکه پټنځی (کمين)
وه له ينبو وکښل - سلطان هلته يوه مياشت تېره کړه د پېرې بتخانې ئې ونړولې
او ډېر مسجدونه ئې ودان کړل.

ملك ادم کاکړ (١) ئې دخوندو نور و اميرانو سره هلته پرېښود پخپله ئې لښکرې د ګواليار په نيامت د(چنبل) ترسين پورې ايستلې، دوې مياشتې ئې د(اسی) درو ديرغاړه واړول، د ګواليار راجا روغه وغوښتله خپل مشرزوی (بکرماجيت) ئې له ډېرو سوغاتو سره سلطان ته راواستاوه او دسلطان مخالف اميران لکه شروانی سعيدخان، شروانی بابوخان او راې ګڼبش چه ده ته پناه راوړې وه له خپلې خاورې وشړل، سلطان هم داد روغې درخواست ومانه در اجازوی (بکرماجيت) ئې وتازاوه آس او نور خلاتونه ئې ور کړه بېرته ئې پلار ته رخصت کړ تردغې روغې وروسته سلطان (دهولپور) ته راستون شو او (دهولپور) ئې بېرته (دای نايك دبو) ته چه په دغو ورځو کښې دسلطان دربارته په عجز او نمواتو راغلی ؤ وسپاره (٢) او د کلا دودانۍ دپاره ئې هم مرسته ور سره وکړه پخپله (اګرې) ته ځنې وخوځېد (٣)

## د(اګرې)پايتخت کول

دځينو هندوانو په قول کله چه(راجا کرشن) يا (راجا ګينيش د(متهرا) پاچا ؤ (اګره) يوه وړه کلاوه چه راجا به ځينې سياسی بنديان پکښې اچول او تربوه وخته پورې دادو دچارې ؤ (٤)

دغزنی پاچا سلطان محمود چه پرهندوستان پله پورې بريدونه وکړل، په دغو بريدونو کښې بيا اګره دومره تالا شوه چه ديوه کرچندو تی کلـی حيثيت وربا ته شو او بس.

مسعود سعد سلمان هم په يوه قصيده کښې چه دسلطان محمود غزنـوی دکړوسی (سلطان محمود) په ستاينه کښې ئې ويلې ده،دا ګرې د کلا ن کر کوی:

(١) دتاريخ فرشته لمړی جلد ١٨٣ مخ دانوم (لودی آدم خان) راوړی مګر زما تر

حصار آگرہ پیدا شد از بسانه گرد     بسان کوه بر و بارهای چون کهسار

دسلطان سکندر په وختو کښې اگره له سیاسي احاطه د (بیانې) په لته پوري دیوې کلا گې په حیث ښتې وه سلطان چه په ۹۱۰ه کال له (دهولپور) څخه لښکري را ولیږ دولې او په بیانه کښې ئې واړول څکه چه د گوالیار او (نرور) د پیړلو او د جنوب غربي سرحد د ټینګولو په نیامت ئې له دې بره وخنه څخه په خیال کښې ؤ چه پر دغه سرحد د جمنا دسین پرژې پر د خور اټینګه کلا ودانه کړي او پایتخت ئې و ټاکي ، نو ئې څو تنه پوه امیران و گمارل چه د بیړ پر په سپارلي د (جمنا) دسین دواړي ژې و گوري او د یوه نوي ښار دودانې له پاره ځای و ټاکي ـ گمارل شو و امیرانو دا گري د ښار ځای وټاکه ، سلطان چه هم د غه ځای ولید خوښ ئې شو د ښار تیږه ئې کښېښوده (۱) اگره پای تخت شوه او د ډهلي دا سیرې) کلا چه په هغو وختو کښې په نوي ډهلي مشهوره وه او د سلطان سکندر پای تخت وو مرکزیت بایللو .

## د مندرایل سوبه

سلطان چه برسات په اگره کښې تېر کړد روژې په میاشت ئې د (مندرایل) پر (مندرایل) لور ته لښکري وخوځولې ، پخپله ئې په (دهولپور) کښې واړول څه لښکري ئې د (مند رایل) دسیمو تالاته و گمارلي په (دهولپور) کښې تر یوې میاشتې اوسیدلو وروسته سلطان هم دپا ته لښکر و سره پسې ور و خوځېدی (مندرایل) ئې کلا بند کړ د (مندرایل) راجا (کشن سنگه) امان وغوښت (۲) او کلائې ورو سپارله .. سلطان د هغې سیمې بتخانې ونړولې او مسجدونه ئې ودان کړل ـ خپل یوه امیر ته ئې (مندرایل) وسپاره او د (چیتوړ) لور ته

اردهغې بتخانې پرځای ئې یو لوی مسجد ودان کړ دجمعې لمونځ چه ئې په هغه مسجد کښې وکړ بیرته د(دهو لپور) لورته وخوځید (١)

(دهو لپور) ته چه راورسید د(دهولپور) حکومت ئې له (نایکدیو) څخه واخیست او (شیخ قمرالدین) ته ئې وسپاره پخپله اګرې ته راغی او امیران ئې خپلو خپلو جاګیرو ته رخصت کړل (٢)

## د((جام بایزید)) مرسته

(جام بایزید) د ملتان دپاچا شاحسین لنګا وزیر ؤ په ٩٠٤ یا ٩٠٨ ه کال چه شاه حسین ومړ - (جام بایزید) دده له وصیت سره سم د ده ما شوم لمسی (شاه محمود) پر تخت کښېناوه، خو دپاچهی کارو بار او دملك انتظام د(جام بایزید) په لاس کښې ؤ، څو کاله پس چه د(جام بایزید) او (شاه محمود) منځ سبات سره وران شول جام بایزید (شور) ته مخ ځنې و نیو، (شاه محمود) لښکرې پسې ورولیږلې په جنګ کښې دشاه محمود لښکرو ماتې وکړه (جام بایزید وزیر) چه (شور) ته ورسید - خطبه ئې دسلطان سکندر غازی په نامه وویله او حال ئې سرتر پایه سلطان ته ورو استاوه - سلطان خلاتونه او یو فرمان ده ته ورواستاوه داد ئې ور کړاو یل فرمان ئې د پنجاب دحاکم (تا سیا له دولت خان لودی) په نامه ولیکه چه که (جام بایزید) مرسته وغواړې دستی به ئې په مرسته ورسیږې، څوورځې دروسته چه (شاه محمود لنګا) له ملتانه څخه پر (شور) لښکرې وروبهولې پخپله جام بایزید ئې مخ نیوی ته دخپل زوی (عالم خان) سره

دولت خان ئې ترمنځ په دې شرط روغه وکړه چه: د(راوی)سین په دشاه محمود دپاچهی او دجام بایزید دسیمې تك (سرحد) وی هیڅوك به ترخپل تك نه وراوړی (شاه محمود لنګا) ملتان ته وکوچېدیٔ او دولت خان لودی لاهور ته لحنی ولاړ (۱)

جام بایزید تر ډېر وخته پوری دسلطان ترسیوری لاندې د (شور) واکمن و

## داګرې زلزله

د ۹۱۱ ھ کال دصفری پر دریمه په اګره کښې داسې کلکه زلزله و شوه چه غرونه ئې ولړ زول، پخې بخې اوا وبې لوبې ودانۍ ئې ونړولې، دد غې سیمې ژوندو قیامت او مرو حشر ګاڼه (۲)

په طبقات اکبری کښې لیکلی دی:

در نهصد و احدی عشر از زلزلها ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ گردید سوادا گره چون مرحلها

با آنکه بناها پش همه عالی بود ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ از زلزله شـد عـالیهـا سـا فـلهـا

تاریخ داؤدی وائی:

«له بابا آدمه تردې دمه په هندوستان کښې داسې زلزله نه وه شوې او نه زلزله دچا یاد ېدله تردغه وروسته هندوستان ته د زلزلو مخ شـو»

(۳) دې زلزلې دسلطان سکندر یو کالنی پای تخت وران کړ او د ده د یوه کال تولی ودانۍ ئې له مځکې سره سمې کړې، خو ډېر ژر اګره هغه اګره شوه چه د هندوستان له لویو ښارو سره ئې سیالی کوله.

## د((ګوالیار))برید(٤)

## (۹۱۱ ھ)

دزلزلې تر ورانو وبجار وسمو لې وروسته چه پشکال (برسات) تابې تېر شو

چه(دهولپور ) کښې تېره کړه ، دا دهولپور ) کلا ئې (ملك معزالدین ) ته وسپارله ١. د گوالیار لورته و کوچېدل دا چنبهل د سیمن پرغاړه ئې د( کو کهه ) پر گدروا پرول څو میاشتې چه ئې هلته تېرې کړې (شهزاده ابراهـیـم ) او (شهزاده جلال خان ) ئې له ځینو درنو امیرانو سره هلته پرېښودل او پخپله دغزا په نیامت سپور شور دهغو سیمو کافران ئې چه په ځنګلو او غرو کښې علی شوی ؤ تر تیغ سره و کښېل د برې ولجې دغازیانو په لاس کښېوتې په د غو ورځو کښې (سلطان ) اعظم همایون ، لودی احمدخان اوعلیزی مجاهدخا ن وکمارل چه له شاؤ خوا سیمو څخه غلې او ازوغ لښکر و ته راور سو ی د گوالیار راجا چه په خبر شو څخه ئې ورته ونیوله خو څه ئې ونه کړا ی شوای او اعظم همایون دوی ازوغ او غله خپلو لښکروته راورسوله سلطا ن چه د گوالیار دلتې (جنور) نومې ځای ته ورسېد سرلار ( قسر اول ) فوځ ئې لس کروه مخ کښې ولېږه ، د گوالیا ر دراجا لښکر ی له پټګـنیو ( کمین) پر راتوی شوې خو دېښتنو میړ و نو څخه ئې ماتې و کړه د پر راجپوتا ن مړه او بندیان شول په دغه جنګ کښې دېر ملې خانخانان مېر نیو ئمسیا نو (داؤد خان او احمدخان ) (٢ بنې توري ووهلې سلطان هم و نازول ، داؤدخان ته ئې دا(ملك داؤد ) خطاب ور کړ ، تر دغی سوبې و ر و سته سلطا ن اگره ته را ستو ن شو( ٣ )

## د((اودیت نګر )) غزا

«٩١٣ هـ»

په ٩١٢ هـ کال چه پشکال ( برسات) تېر شو سلطان له اګرې څخه د(او دیت نګر) (٤) دغزا په نیامت وخوځېد (دهولپور) ته چه ورسېدېرملی

(او دیت نګر) کلا ته ئې ورګسارل پخپله ئې هم خوروځې پس لښکری پسې ورخو ځوای (چنبهل) دسپین یرغاړه ئې وار ول. خواص خان او بهیکن خان چه له خپلو لښکرو سره ورته راورسېدل د (او دیت نګر) لورته روان شو د روژې پر دریمه (او دیت نګر) ته ورسېد (۱) او ښارئې کلابند کړ ځکه چه د (او دیت نګر) سوبه د ګوالیار د سوبې کلی وه. نو سلطان له هری خوا په خورا شدت لښکری پر ورو بهولې پخپله هم د لوی اختر میاشتې په دوو اسمه ورووت (۲).

پښتنو ځلمیو دیری میړانۍ وکړې او زښت ډېر زحمت ئې پرځان وراوست خو د جلوانی ملک علاء الدین لښکرو د کلا دېوالونه راوپرځول او پښتانه په کلا کښې ورننوتل راجپوتو په کورو کښې جنګونه وکړل او د خپل دود له مخې ئې ډېري ښځې او کوچنیان پخپله وسوځل او ووژل (۳).

راجپوت خورا ډېر په دغه جنګ کښې ووژل شول او د ملک علاؤ الدین سترګه هم دیوه راجپوت په غشی ړنده شوه.

د کلا تر نیولو وروسته سلطان د خدای شکر اداکړ توریالیو امیرانو ته ئې ډېر ډېر خلاتونه وروبخښل - بتخانې ئې ونړولې او مسجدونه ئې ودان کړل. خو ورځې وروسته ئې کلا د مجاهد خان زوی (بهیکن خان) (۴) یا ملک تاج الدین کنبوه (۵) ته وسپارله پخپله (دهولپور) ته وخوځېد.

تکمل کاچه: په دغه سفر کښې د (او دیت نګر) او (دهولپور) ترمنځ یوه ورځ داسې تنده پېښه شوه چه د تاریخ داؤدی په قول بومنکی او به پنځلسو سکندری تنګو ته

شمېرو شو بو الحي انساني تلفات انه سوه تنه وه(۱)

سلطان د۹۱۳ه کال دمحرمي پر شلمه (دهولپور) ته ور سېد څوور ځي هلته يه(دهولپور) کښې واوسېد بيا پاي تخت (اګرې) ته وخوځېد او د ۹۱۳ه کال دصفرې په پاي کښې اګرې ته ورسېد.

## دمجاهدخان دروه(خيانت)

(۹۱۲ه)

سلطان په(اوديت نګر) کښې خبر شو چه د (اوديت نګر) ترسوبي دمخه د ده يو امير (مجاهد خان) د (اوديت نګر) له راجا څخه موك اخيستي ؤ چه دسلطان اراده به په بو چه دچمو در اوديت نګر) له غزا څخه ګرزوي ځکه ئې نو له هغه ځايه د(دهولپور) اميرانو ته حکم راواستاوه چه مجاهد خان بندي کړي خپل خاص حاجب (ملاچمن کنبوه) ئې هم دمجاهدخان سره دار تباط په تور بندي کړ او ملك تاج الدين کنبوه ته ئې وسپاره.(۲)

## دکالپي حکومت

(۹۱۲ه)

دکالپي حاکم(لودي محمود خان) چه ومړ نوئې سلطان دده پرځاي جلال خان زوي دکالپي حاکم وټاکه ځکه چه نورو دووورونو (بهيکن خان او حاجي خان) ئې له ده سره پر دغه حکومت او جاګير شخړه درلوده نو سلطان چه د(اوديت نګر) دغزا له پاره (دهولپور) ته ورسېد فيروزخان پښتانه ته ئې د کالپي حکومت ور کړ (۳)

مګر لږ وخت وروسته ئې بيا شهزاده جلال خان ته د کالپي (۲) او شاؤ

# د «نرور» سوبه (۱)

## (۹۱۴ هـ)

په ۹۱۳ هـ کال چه برسات تېر شو سلطان د (نرور)

د کلا نیولو لره چه د کفارو په لاس کښېوه ایښې راوغښتلې خپل وزرور (۲)
د کالپي حاکم شهزاده جلال خان ته ئې ولیکل:

«دیر ژر له خپلو لښکرو سره پر (نرور) بریډ وکانده ـ کلا، کلابنده کړه که
کلاوالو روغه وغوښتله روغه ورسره وکړه» (۳)

شهزاده هم سمدستي خپلې درنې او خورا منظمې لښکرې ورو بهولې او
(نرور) ئې کلابندي کړلېږي ورځې نه وې تېرې شوې چه سلطان سکندر
هم دخپلو لښکرو سره پسې ورورسېد.

نکل کا چه: سبا ته چه سلطان سکندر دفوځو د تنظیم کتلو او د کلا داستحکاماتو
لیدلو لره راووت شهزاده دخپل فوځي اهلیت ذکر کند. ولو به نیامت سلامي لره
خپلې لښکرې دسلطان مخې ته (پیلان ـ سپاره او پلي) فوځونه بېل بېل په
خورا منظم دول درولي ؤ ـ سلطان چه دشهزاده تنظیم او قوت ولید زړه ئې
ځنې ودربېدی، ځکه ئې نوله دغې ورځې څخه اراده وکړه چه دشهزاده
دغه پرتم او قوت به پر دغه حال نه پرېږدي هغه وچه پس له اتو میاشتو ئې
دده دنیولو حکم سلیمان پرملي، ابراهیم خان لواني او ملک علاؤالدین
جلواني ته ورکړ.

سلطان اته میاشتې د (نرور) کلا ...

ولی د کلا خلك امان غوښتلو ته نه مجبور یږی .

بوه ورځ که ئې کټل د کلا وزیو وار ابز خلاص شو او د ستی بهر له
وتړل شو دې چاری سلطان پر خپلو امیرانو بدګمانه کړ چه ښا یی د کلا
والو سره ارتباط لری ، ځکه ئې نودستی د شهزاده جلال خان د فوځ امیران
ځان ته راوغوښتل ، ملك ادم کاکړ ، میابهوا وزیر او سعید خان لودی ،
ئې د (شیرخان) نیولو لره وګمارل او ابراهیم خان لوانی - سلیمان خان ،
پر ملی او علاؤالدین جلوانی ته ئې د (شهزاده جلال خان) د نیولو حکم
ورکړ - هغو هم دناربخ فرشتې او شوکت افغان دلیکنې سره سم دوی دواړه
ونیول او (او دنت ګرهه) ته ئې بندیان واستول مګر مرقع افغان ئې بند
له لیکی اروایې داحکم هغه رخت وشو چه سلطان اکړې ته خو څـېدی ء
شهزاده جلال خان چه په دغه حکم خبر شو دخپلې رضاعی مورد ( قطب خان
لودی کونډه ) په غېږ ننووت او دهغې په زېړمه خلاص شو ' په هرصورت
سلطان څلور میاشتې نوری هم د نرور کلا ته ( چه خورا ټینګه او اوه کروه
اوږده پرته وه ) تېری کړې تریوه کال کلابندۍ وروسته کلاوالوامان
وغوښت ' سلطان امان ورکړ او کلا وال دخپلو ځالو ځو لو سره تر کلا
راووتل سلطان چه کلا ونیوله دخدای شکرئی ادا کړ هلته ئې د یرمسجدونه
ودان کړل مفتیان ' خطیبان او مؤذنان ئې، وټاکل ملایان او ستانه ئې
هلته واوسول، په جا ګیر ، او تنخوائې خورا ماړه کړل سلطان شپږ میاشتې
هلته نوری تېری کړې چه له انتظاماتو فارغ شو د ۹۱۴ هـ کال د برات د
میاشتې درانه وبشتمه ئې د (نرور) له کلا څخه لښکری راولېږدولې .

مگر تاریخ افاغنه بیا لیکی سلطان ته چه دغه فکر موندہ شو بلکه نو ئي کلائي پر راوگرزوله اودزړی کلا وړانی وبجاړی ئې سمې کړی سلطان تربونیم کال او سېدلو وروسته د(نرور) کلا د (اگرې) په نیامت پر ښبودہ دسلطان سکندر داوروستی جنګ ؤ ـ بیا سلطان پخلپه کوم جنګ باغزانه لښکری ونه خوځولې پس له دې ئې پاته (۹) کاله ټول د ملك په ودانی او انتظام کښې صرف کړل او دده د باچهۍ دغه (۹) کلو نه له هر حیثه دهرچا له پاره که امیرؤ که فقیر، رعیت ؤاو که سپاه د آرامی، امن او هوسا ینې زما نه وه،

## دشهزاده جلال بخښنه

(۹۰۴ هـ)

سلطان چه د نرور له کلا څخه لښکری راوخوځولې او د (بهار) یا (بهېر) کلی ته ور سېدېدو ه میاشت ئې هلته واړول په دغه وخت کښې شهزاده جلال خان د خپلې رضاعی مور (بی بی نعمتو) سره چه د سلطان بهلول اخښې او تربوره لودی قطب خان) کونده وه ورته راغی سلطان ئې پخپله مخې ته ور ووت د پرئې داده کړاو د خپلې اکاد کو نډې (بی بې نعمتو) ئې خورا احترام وکړ ترنقدی بخښش او خلاتو علاوه ئې ۱۲۰ ـ آسونه او پنځلس پیلان هم شهزاده جلال خان ته وبخښل د کا لپې سیمه ئې بېر ته په جا ګیر کښې ور کړه او هغه لورته ئې په خوړا درناوی واستول په دې تو ګه دشهزاده جلال ننواتې د سلطان له زړه څخه تولې هغه بد ګمانی او خیری ایری کړی چه د شهزاده په باب کښې ورپیدا شوی او د سلطان بخښښو او درناوی شهزاده داده کړ د غو سلطانی مهربا نو هغه اندیښني او بیرې چه شهزاده ته د سلطان له خوا ورپیدا شوی وې پر مخ ور که کړې او بېر ته هغسی سره ګران وروڼه شول،

بېلان، خلاتونه او جاګیرونه ورېخښل ـ منصبونه ئې ورکړل کوم مېړني چه په
غزا کښې شهیدان شوي ؤ د هغو کورنیو ته ئې ښه ښه جاګیرونه ورکړل او نور خرڅې
ئې هم ورلره وټاکه (۱)

## دخلجي شهزاده شهاب الدین پناه

دمالوې دپاچا سلطان ناصرالدین خلجي، زوی شهزاده شهاب چه له پلار
څخه په جنګ کښې ماتې وکړه سلطان سکندر ته د پناه راوړلو په نیامت ئې دډهلي
خواته مخ راونیو سلطان د ده ورځو کښې په (ګوالیار) کښې اړولی ؤ چه په خبر
شو ـ خلاتونه او آسونه ئې مخې ته ورولېږل، خو شهزاده شهاب الدین د مالوې
ترڅنګ نه ؤ رانیږدې شوی چه پلار ئې ومړ او بېرته ئې د مالوې پایتخت (ماندو) ته مخ ونیو،

## د ((بلګاهت)) دیاغیانو ځپل

په ۹۱۵ ه کال سلطان (ګوالیار) څخه د (اګرې) په نیامت لښکرې وخوځولې
پرلارې ئې د (بل ګهات) دیاغیانو ځپلو اره لښکرې وګمارلې او هغه سیمه ئې
له یاغیانو څخه پاکه کړه هر ځای ئې تهانې) جوړې کړې او سپاهیان ئې پکښې
واچول او اګرې ته ولاړ.

## د (واسکودګاما) رسېدل هندته

د ۹۱۵ ه کال په شاو خوا کښې مشهور پرتګالی ملاح (واسکو ډ ګاما)
چه په ۹۰۳ ه =۱۴۹۷ ع کال له پرتګاله را هندته را رسیدلی و د ا لمری

# دشهزاده((صاحبخان)) مرسته(۱)

(۹۱۸ هـ

د۹۱۸ هـ کال په شاو خوا کښې د مالوې د پاچهۍ یوه امیر دچندیرې حاکم بهجت خان سلطان سکندر ته ولیکل :

[دمالوی پاچا دوهم خلجی سلطان محمود (۹۱۷ ـ ۹۳۷) د راجپوتو هند وانو دلاس چوغکه ده هرڅه چه (مید نی رای) کافر کوی هغه کیږی دلته د اسلام حال د زړه سوی وړ دی مونږ ستر کی ستا مرستی ته نیولی چه کوندی ستا په زور د سلطان محمود ورور شهزاده صاحبخان پاچا کړای شو او په دې تو که د مالوی له پاچهۍ څخه د کفارو لاس نه لنډ کړو دا وعده کوؤ که بری زمونږ شو خطبه به ستا پر نامه وایو ]

د شهزاده صاحبخان یو بل امیر حافظ خان خواجه سرا نیږ کال د سلطان دربار ته په همدغه نیامت راغلی و او ترډغه وخته هلته نا ست ؤ څکه نو سلطان دوو لس زره سپاره د عماد الملك او سعید خان تر مشر تا به لاندی د صاحبخان مرستی ته وګمارل او د ( سلطان محمود )خطاب او خاص خلاتونه ئی هم ورولیږل ـ سلطان محمد خلجی( شهزاده صاحبخان )ته چه دا مرسته ورسیدله له چند یری څخه د (مانډو) لورته وخو ځید ـ دسلطان محمود خلجی دوه امیران (صدر خان ) او (محمو د خا ن) هم ور نه را واو ښتل.

پای ته د خطبې اوسکې برخبره چه عمادالملك غو ښته چه دسلطان سکندر برنامه دې شی او (بهجت خان ) نه منله، سکند ری امیران خو ابد ی شول او بیرته د ډهلی لورته ځنی راستا نه شول (۲)

هګر لږ وخت پس سلطا ن سکندر دمبارك خا ن لودی، مینځو ی زوی

سعید خان، پیر ملی شیخ جمال، خضر خان، خواجه احمد خان او وای جگر سین کهچواه و گمارل چه چندیری و نیسی، دوی هم ورغلل او د سلطان محمد خلجی په نامه ئی خطبه سیمی ونیولی «بهجت خان» چه دا حال و لید مجبور شو دسلطان سکندر د دربار ته په ننوا تو راغی (۱)

او سلطان محمد خلجی هلته دپاچاپه نامه پاته شو.

## د کشمیر دپاچا مرسته

په ۹۱۹ هـ کال چه فتح خان، فتح شاه د وهمه پلا د کشمیر له پاچا (محمد شاه) څخه پاچهی وا خیستله (محمدشاه) سلطان سکندر لودی ته پناه ور وړه په ۹۲۰ هـ کال سلطان سکندر دیری لښکری په مرسته ورسره کری (محمد شاه) پخپله دسکندری لښکرو سره کشمیر ته وخوځید او ابراهیم زوی ئی د دهلی په دربار کښی پریښود چه دسلطان ابراهیم لودی تروژلی (۹۳۲هـ) پوری هلته ؤ. فتح شاه چه خبرشو د (ما کری جهانګیر) تر مشرتابه لاندی ئی خپلی لښکری مخ نیوی ته ور او استلی، لښکری چه سره مخامخ شولی، جنګ و نښت - جهانګیر سپهسالار د خپل زوی سره وژل شو او نور کشمیر ی امیران د (محمدشاه خواته راواوښتل فتح شاه هندوستان ته وتښتید او (محمد شاه) دریمه پلا دسلطان سکندر په مرسته پاچا شو.

## د علیخان ((ناګوری)) دروه (خیانت)

په ۹۱۷ هـ کال د (ناګور) وا کمن (محمد خان) پر خپلو حریفانو (علیخان او ابابکر) (۲) بری موند - علیخان او ابابکر سلطان سکند ر ته پناه زاوړه سلطان د (میوپور) یا (مهواړ) حکومت علیخان ته و رکړ.

سلطان محمود د خلجی له خوا مقرر ؤ ) وغوښته چه سلطان سکندر ته ایل شی او د کلا کلی ورو سپاری .

علیخان دا حال سلطان ته ولیکه ، سلطان ډیر خوښ شو او د ( رڼهور ) د کلا په نیامت ( بیانې ) ته وخوځید څلور میاشتی ئې هلته په ښکار او سیر تیرې کړې شهزاده دولت خان او مورئې هم حضورته راغلل سلطان ئې ټول امیران مخې ته ورواستل او په خورادرناوی ئې لښکرو ته راوست ډېر ئې ونازاوه څو پیلان او خلاتونه ئې وروبخښل مګر شهزاده دولت خان بیرته دنا کوری علیخان په لمسون د کلیو له سپارلو څخه انکار وکړه ، سلطان ( نا کوری علیخان ) ته نور هیڅ و نه ویل د ( میوپور ) ( میوان ) حکومت ئې ځنی واخیست او دده ورور ( ابابکر ) ته ئې وسپاره د ( تهانګړ ) له لاری ( باډې ته ) راغی دغه سیمه ئې د مبارك خان له زامنو څخه واخیستله او ( شیخ زاده مکن خان ) یا ( بهیکن خان ) ته ئې وسپارله پایتخت « اګرې » ته بېرته راستون شو

## د سلطان سکندر ناروغی او مړینه

سلطان چه د ( بیانې ) له سفره څخه « اګرې » ته راورسید د ټولو سیمو امیرانو ته ئې ولیکل چه د ګوالیار د کلا نیو او له خپلی تیاری و نیسی مګر دا هیله ئې ترسره نه شوه ډیر ژر ئې به ستونی کښې دانه راوختله ، وایی سلطان له ډیره غیرته څخه برځای نه پری ووت تر یا به ئې خپل تینګکار او زغم وساته او خپله ناتوانی ئې څرګنده نه کړه په دغه ناروغې کښې به ئې سپارلی کوله دربارته به راوت او د یا چهی کاروبار ئې چلاوه تر څو چه ناروغی ئې دې حد ته ورسید له چه کوله ئې ترستونی نه تېر یده !!

«زما د قضا لمونځو او روژ و کفاره و شمیره!»

شیخ لاړ، د سلطان د عمر له مخې حساب و کړ او د سلطان حضور ته ئې وړاندې کړ، سلطان حکم وکړ چه دا روپۍ دې زما له خپلې ځانته خزانې څخه چه له بیت المال څخه ګوښې ده ورکړې شي!

درباریانو چه د سلطان د خپلې ځانته خزانې نوم واورېد، هېښ پاته شول چه د سلطان خپله ځانته خزانه له کومه وه؟!

خزانه دار درباریانو ته مخ راواړاو او وې ویل:

«د سلطان داد و دهش چه نورو هیوادو پاچهانو چه به څه سوغاتونه ورته راولیږل او یا چه به ځینو امراو څه تحفې ورته راوړې ماته به ئې حکم کاوه چه دا ګوښې زده او کله چه مې د ځان له پاره څه په کار یدل د ر څخه غوارم به ئې؛ د سلطان خپله ځانته خزانه دغه خزانه ده» (۱)

د دربار علماء او امراء د سلطان تقوی او دور اندیشۍ ته حیران شول.

د خدای کره دی دې مدبر، زړه سواندی، عادل او له خدایه بېریدونکي پښتون غازي پاچا له دغې تاروغۍ څخه د ۹۲۳هـ - ۱۵۱۷ع کال د میانی د میاشتې پر اومه دیکشنبې په ورځ تر ۲۸ کالو او څو میاشتو پاچهۍ و روسته د (۶۶) کالو په عمر په آګره کښې پور پرې نکړ (۲)

جنازه ئې سلطان ابراهیم دهلي ته یووړه او په خیر پور کښې ئې چه اوس په لودي هدیره مشهوره ده ښخ کړ (۳) (انا لله وانا الیه راجعون) بدایوني ملا عبدالقادر د منتخب التواریخ په لومړي جلد کښې دده د مړینې نېټه (جنات الفردوس نزلاً «۹۲۳») راوړې ده، په کنجینه سروری کښې ئې د وفات تاریخ داسې لیکل شویدی

چون ز دار لفنا سفر ورزید | یافت در خلد جا سکندر شاه

سال تاریخ رحلتش سرور | گفت (از عطا سکندر شاه «۹۲۳») (۴)



د نوی دهلی په لودی گارډن کښی د ابو المظفر غازی سلطان سکندر لودی د هدیره ور



دابوالمظفر غازی سلطان سکندر لودی ( ۸۹۴ - ۹۲۳ ه )
دهديري گومبچه سلطان ابراهيم لودي جوړه کړي ده .

# د سلطان سکندر سکه

(نیلسن وایټ) پخپل هغه کتاب کښې چه د ډهلي د پاچهانو د سکو په باب کښې ئې لیکلی دی د سلطان سکندر یوه سکه فوټو ګرافي کړیده. د دغې سکې پر یوه خوا (المتوکل علی الرحمن سکندر شاه بن سلطان بهلول شاه)
او پر بله خوائې
(في زمن امیر المومنین خلدت خلافته) لیکلي دي.

## د سلطان سکندر شي او دربار

سلطان سکندر له هره حیثه د اود یو بو وتلی او غوره پاچا ؤ په دې کښې شك نشته چه سلطان بهلول یو پوخ مدبر، رښتني مسلمان، عادل، رعیت پالونکی نیك پاچاؤ، مګر د سلطان سکندر په باب کښې دیار سو دا متل چه: « اګر پدر نتواند پسر تمام کند » رښتیا کیږي ـ سلطان سکندر په ډیرو خبرو کښې تر پلار اړولی وه (۱)

سلطان سکندر له خدایه ډیر بیریده پر لمانځه خوراټینګ ؤ، هره ورځ ئې قرآن شریف لوست، پر خلکو ئې پیر زوینه او زړه سوی در لود، د ده په وخت کښې رعیت خورا په امن او هوسا ؤ، د ده د وخت او ر زانو ډیره مشهوره ړیدې پرشرعه خورا کلك ولاړؤ د اسلامي احکامو او شرعي اوامرو په رواجولو کښې ئې ډیر زیار یو ست، ډیری بتخانې ئې ونړولی او خو را ډیر مسجد ونه ئې ودان کړل، د ده په وخت کښې به هندوانو هرو مرو یوه کوچنۍ نیلی رښکۍ د قمیصه اوزوته وروړه او دا د ذمي او طاعت نخښه وه، لنګوټې به ئې وړې تړلې

کله کله به له سهاره څخه ترما خستنه پوری په دربار کښې ؤ او عام نیاو (عدل) به ئی کاوه، دحکم او قضا په وخت کښې هیڅکله د هیچا اثر نه پر پر بوت، د ده دربار له پاچاهی کروفره څخه بیخی تش وو دده کریم النفس سپیڅلی او درانه پاچا په دربار کښې دهغو فواحشو او نارو اؤخرك نه موند کیدی چه عموماً دپاچهانو او حاکمانو په دربارو کښې لیدل کیږی دی پخپله عالم ؤ علم او علما ئی روزل مذهبی مشرانو او روحانیو ته ئی په خورا درنه سترګه کتل ځکه به تل ستر پوهان درانه امیران او له خدایه بیریدونکی ستا نه پررا ګرزیدلی وو دده زمانه دصلاح او تقوی زمانه وه هرچا دخیر او ښیګڼو زیار ر یوست ځکه چه د سلطان تر مخ د تقوی خیر او ښیګڼی ارزښت خورا ډیر وو، سلطان سکندر دوخت او پرو ګرام خو را پا بند ؤ هر کار ته ئی وختو نه ټا کلی وو او په هغو وختو کښې به ئی نور کا رونه کړی نه کول (۱)

سلطان د شپی په وروستو برخه کښې له خوبه راویښیده، له عبادت څخه به چه فارغ شو ملکی معاملی به ئی اجرا کو لی بیا به ئی د نورو هیوادو پاچهانو او یا خپلو سرحدی امیرانو ته دفرمانو لیکلو په باب کښې خپلو وزیرانو ته لار ښوونی کولی کله کله به د شپی په نورو کالو کښې به پټه راووت د ښار په کو څو کښې به ګرز ید او د رعیتو په حال به ئی ځان خبر اوه (۲)

سلطان سکندر د قبیلو خلك (دغرو او لیرو سیمو پښتانه) خورا ډیر نازول ځکه نو ډیر پښتا نه امیرا ن پرده را ټول وو (۳) دده له خپلوا میرانو سره د

# دانتصابي شورى مجلس

سلطان سکندر د ملکي معاملو له پاره يو دشورى مجلس هم درلود چه د
مرقع افغان په قول (۷۰) تنه او دشوکت افغان په قول (۱۷) تنه ستر علماء
ئې لکه : مولانا صدر الدين قنوجي ـ ميا عزيز الله سنبهلي ، دسيکري ميا
عبدالرحمن ، شيخ لاون دانشمند او نور غړي وو دا مجلس به تل دپاچا په
رکاب کښي ؤ دوى دپاچا خو ښي او تندي ته نه کتل بلکه د جمهور گټي
ئې کتلي حتى کله به داسي هم پيښه شوه چه دغي انتصابي شورى به د پاچا ،
د رايي او ارادي پر ضد ديوه مخالف حزب شکل وموند لکه د(تهانيسر) په
پيښه کښي چه د مخه مولوستلي ده (۱)

ځکه چه سلطان په قضايي معاملاتو کښي ډير احتياط کاوه ، په ځينو
درنو شخړو کښي به ئې دشورى ترغړو علاوه دهيواد نورو نولي علماء هم رابلل
او دتو لو په گډون به ئې موضوع څيړله لکه په ۹۰۷ ه کال چه په لکهنوئي
کښي د (بودهن) هندو دمسلمانانو پر خبره دهغي سيمي دوو مشهورو ملايانو
(قاضي پيارا )او (شيخ بدر) يو دبل پر ضد فتواوي ور کړلي
سلطان د دغي شخړي له پاره ترخپلي ورسر شورى علاوه له ملتاني څخه د عثماني
الهدادزوي (ملاعبد الله) او دشيخ خواجوزوي (مياقادن) له دهلي څخه
دسعيدخان زوي (سيد محمد) له سرهند څخه (ملاقطب الدين) (ملاالهداد)
او (ملاصالح) له قنوج څخه (سيدامان ) (سيد برهان )او (سيد احسن) يا
(سيداخون) سنبهل ته ور وبلل فتوى ئې ځني وغوښتله ، ترفتوى ور کړ او وروسته ئې

# (۱۸۰)

# قضائي نظام

سلطان سکندر پرنیا و (عدل) مین پاچا ؤ، انصاف ئې ډېر خوښېده، دمظلومانو او غریبانو پر حال ئې ډېر پام ؤ، خورا واړه عرضونه ئې پخپله اوریدل که به کوم امیر پر چا تیری کړی ؤ دهغه امیر وکیل به په دربار کښې تل حاضر ؤ چه دمظلوم دعرض موضوع به یلتی به حق به ئې رسوی خوشاله کوی به ئې او تفصیل او راپور به ئې له عارض سره پاچا هی حضور ته وړاندې کوی (۱)

سلطان پخپله دومره ځیرك او هوښیار ؤ چه خورا ژر د شخړو پایې ته ورلوېده، ده په ټول ملك کښې په هر هر ځای او هر هر ښار کښې نیاو ځی (دارالعدل) جوړ کړی او خورا فاضل دینډار او حق پرسته نیاووالان (قضات) ئې مقرر کړی وو، دوی ته ئې تاکید کړی وو چه په خورا کامله بیطرفی او مساوات به یلتنې کوی او په خورا دیانت به حکم کوی، له ځان سره ئې هم تل د (۷۰) یا (۱۷) تنو پیاوړو علماء یوه شوری کښینولې وه چه دی پخپله په نیاو او انصاف کښې له خطا څخه وژغوری.

دده نیاو (عدل) او انصاف په درست ملك کښې تردې حده پوری د ظلم او تیری سټه (بیخ) کښلې وه چه چا به خپل نوکر ته په تریوتندی او کږو کتو نشو کتلای (۲)

هرهر ځای چه ئې نیاووالان (قاضیان) ګمارلی وو د هغو د کړو تر دې حده پته نګرانی کیدله چه په خپلو خپلو غلطیو به دوی پخپله نه وولا پو هیدلی چه سلطان به بیا په خبر ؤ.

دسلطان دخبررسولو (جاسوسه) تور په ټول ملك کښې داسې غوړ ولشوی ؤ چه دملك دخورا لیرو لیرو ګوښو په ډېر وړو وړو خبرو او پیښو به ډېر ژر خبر یده حتی دامیرانو د کورو حالات ئې دومره لرل چه هغوی مجبور کیدل

نیاو وال (قاضی) ته حکم ؤ چه له سهاره ترما بنامه‌به‌یه نیاوځی (دارالعدل) کښی کښینئ چه هیڅ مظلوم او عارض له نیاو (عدل) څخه ناامیده نشی دسلطان په خاص دربار او پایتخت کښی به د. ستر نیاووال (قاضی مرافعه) سره ال (دوولس) تنه ستر علما دمفتیانو په دول ناست وو د پایتخت شخړی او هغه شخړی چه به دهیواد له نورو ولایاتو څخه د مرافعې به نیامت پایتخت ته راتللې دلته فیصله کیدلې ، هغه شخړی چه دایالتی محکمو تر صلاحیت اوړی وې هم دلته دائرېدلې ، دغی محکمی به له سهاره څخه ترماښامه پوری کار کاوه په مرافعه کښی چه به کومه فیصله راوو تله هغه فیصله به هرو مرو (دشوری مجلس) ته چه له (۷۰) یا (۱۷) تنو مفتنو پوهانو څخه جوړه شوی وه دزیات غور یا فتوی او توثیق له پاره وړاندی کیدله دې قضائی شوری د (اوسنی تمیز) حکم درلوده کومه فیصله چه به په دغه ستر مجلس کښی ومنله شوه بیا به د سلطان حضور ته وړاندې کیدله (۱) د سلطان سکندر دغه (قضائی نظام) له هغه وخت او زمانی سره سم درعیتو دخوښۍ ، آرام او نیاو له پاره خورا کافی ؤ

## دسلطان د قضائی فعالیتو ځوبلګې

۱ ـ د (بهنې) دلتی د (ارول) کلی او سیدونکی بو ه سید د هغه ځای دجا گیر دار میاملی (میاملیح) له لاسه دسلطان حضور ته عرض وکړ چه: «له مائې مځکه په زور اخیستې ده» سلطان د ستر نیاوځی (مرافعی) مشر (میابهوا) ته حکم وکړ: «ددغی شخړی تر بشپړی پلټنی وروسته صحیحه نتیجه راوړاندې کړه»

پر دغه شخړه دوې میاشتی تیری شوی خو نیاوځی (محکمه) هیڅ نتیجی ته ونه رسید. سلطان حکم وکړ: دغه تکه پر بو تلې ده چه داشخړه دوې

دنیاوځی غړو دسلطانی حکم سره سم ئوله ورځ پر سر کړه کړه وورځ
او یوه برخه شپه ئې وو هله ځو ئی هغه شخړه ترتحقیق او غور وروسته د
جاګیردار میاملی (مدعی علیه) په ملامتی فیصله کړه او مدعي ئی مظلوم
او پر حق وبالله٬دا فیصله چه سلطان ته وړاندې شوه سلطان له قهر پر لـه
و ا پشېده ٠ او ( میاملی) جاګیردار ته ئی وویل: « ما پر قطعی حکم نه ؤ کړی؟
چه هیڅوك دی پرخپلاو زېر دستا نو هیڅ ډول تیری نه کوی او د جا ګیر
دارانو په فرمانو کښې می د هریوه جایدادونه او تنخواوی ندی تا کلې ؟
اوتا ولی زما له حکمه څخه تېری وکړ ؟
او دابې وزله دې ناحقه وځوراوه؟ » میا ملی جا ګیر دار چه یو ا میر ؤ
سر ځړولی ؤ ځواب ئی نه دراوډ خپله ګناه ئي ومنله٬ بخښنه ئی وغوښتله .
سلطا ن حکم وکړ: « میاملی د ی د ری پلاپه زوره ووائی چه (میا ملي
ګنهګار اوظالم دی او سید مظلوم او پر حق » میا ملی چه دري پلا دغه جمله
په زوره وویله سلطان وویل « تااره د عه ابداد ( توبیخ ) بس د ی چه نیا وځی
(محکمه) کښې رسواشوی » پس له دی ئی (میاملی) ته بیاتر مر ګه پل جا ګیروړ نه
کړاو هغه ئی هم ځنی واخیست (۱)
(۲) ـ:دا ګـری دښـازد وه بـهـبنې ( بـر هــمن) وروتـه خـوارېده
پرسـرواخیـسـتـل دسـلطـان دلښـکروا ورته ئی چـه هغه وخـت ئـې په
(رایسین) کښې اړولی ؤ مخ ونیو مـته به ئي خپله غریبی کوله چه دسلطا ن
لښکری له هغی کلا څخه جنګ نه وایبزدېد لې دوی هم مخ ورسره ونیو برلار
په یوه کلی کښې دوی ته څه طلاوې څهرنګین تو کران اودوی دانې اعلو نه په
لاس ورغلل کشروزورمشرته وویل « دو مره موو موند ل چه څه ګذاره مو په

کشرورور ته مثل او د کور لور ته ئې مخه و کړه مشر مجبور شو څه چه ئې موندلې ؤ سم بې لیمائی ئې ور سره وویشل او خپله برخه ئې هم ده ته ور کړه چه وړ ینداری ته ئې ورسوي کشرورور کور ته ځان راورساوه بیله لعله څخه ئې نور دوروړ تول ور سپارلي شیان ور پنداري ته ور کړل دوه کاله پس چه مشرورور کور ته راغی ماینې ئې تول دده را استولي شیان ور ته کښیښوول خو یو لعل نه ؤ .

مشرورور کشرور او غوښت د لعل پوښتنه ئې ځنې و کړه کشرورور په ځواب کښې ور ته وویل «ما ستا ماینې ته د نورو شیانو سره ور کړ دا چه ئې اوس نه منې څه زور پر او له دروا غ به ئې ښکاره شي» مشرورور هم پر خپلې ماینې زور راوست هغې بیرته زلي چه هغه ئې او کوتل ولیدل د سپا مهلت ئې وغوښت سهار ئې ستر نیاوال (میابهوا) ته ځان ور ساوه او عرض ئې یرو کړ میابهوا دواړه ورونه را وبلل موضوع ئې ځنې وپوښتېده کشرورور دده په مخ کښې هم وویل «لعل ما ته مشرورور را کړ ما ور پنداری ته وسپاره» میابهوا د شرعي اصولو سره سم شاهدان ځنې وغوښتل ده هم یوه گړی پس دوه تنه شاهدان چه په دریو درپو ئې له قمار خانې څخه را ایستلي ښه کالي ئې په اغوستي یان ئې په ځو رلي او د صندلو پلنې پلنو تیکې ئې پر وهلې وې محکمې ته راوستل او ناحقه شاهدي چه د (مخه ئې لا یه زده کړې وه) په ادا کړه میابهوا چه د شاهدانو ظاهري وضعې ته و کتل درانه خلق ئې په نظر ور غلل د دوي شاهدي ئې ومنله او مشرورور ته ئې وویل «له خپلې ماینې څخه دې لعل واخله» ښځې چه دا فیصله واوریدله ډیره وارخطا شوه هغه آن برابره د سلطان عام دربار ته په دا دوره غله سلطان چه ئې عرض سر تر پایه واورید ور ته وې وویل: «میابهوا نه ولې نه تللې؟» دې په ژړا ور ته وویل «آ! عادله پاچا! هلته ولاړمه مگر ده څنگه چه ښائی هغسې پلټنه

سلطان وویل شاهدان کوم دی؟ شاهدان چه نژدې وو وستل شو سلطان وفرمایل داخو هواره جواریکر (قماربازان) دي ددروي اخلور و تنکو له پاره ناحقه شاهدي ای میا بهوا عرض وکړ: «په ښکاره خودرانه او معتبر خلق معلومیږی» سلطان وفرمایل: «دا به هم ښکاره شی» سلطان حکم وکړ چه ددغی شخړې تول غړی بیل بیل سره وساتی، تر تولو دمخه ئې مشرورور (د ښځی میړه) را او غوښت او وئې پوښتید: «ستا لعل څو مره غټ و؟» مشرورور یوه اندازه په گوتو وروښوو له سلطان څه موم ورته ورکړه او ورته وې ویل: «له دغو مو موڅخه دخپل لعل په شکل او اندازه یو غټی جوړ کړه» مشرورور حکم یر ځای کړ او له هغه مو موڅخه ئې دخپل لعل په اندازه او شکل یو غټی دسلطان حضور ته وړ اندی کړ سلطان هغه غټی ځنی واخیست پټ ئې کښیښود او ددهٔ کشرورور (مدعی علیه) ئې راوغوښت هغه ته ئې هم موم ورکړ او دلعل په شکل او اندازه ئې غټی ځنې وغوښت کشرورو کټ مټ دمشرورور په جوړ کړې شکل او اندازه غټی جوړ کړ او دسلطان حضور ته ئې کښیښود بیائې شاهدان بیل بیل را وغوښتل او وئې پوښتیدل «تا لعل په خپلو سترگو لیدلی دی» هر یوه وویل «هو» سلطان دوی دواړو ته هم بیل بیل د موم ټوټې ورکړې چه د لعل په شکل او اندازه غټی ځنې جوړ کړی شاهدانو هم خپل خپل جوړ کړې غټې دسلطان حضور ته وړاندی کړل خو ددوی دواړو جوړ کړو غټیو د یر توپیر سره درلود بیائې مدعیه (هغه ښځه) راوغوښتله هغې ته ئې هم موم ورکړه چه دلعل شکل جوړ کړی ښځی ته چه ورکړه اووې ویل «څه چه ما نه وی لیدلی دهغه شکل او اندازه څنگه ښوولای شم؟» سلطان چه هر څه سره تینګه کړه بی له دغه ځوابه ئې نور څه ونه ویل او نه ئې د لعل شکل او اندازه جوړ ول ومنل! تر دې پلټنې وروسته سلطان دواړه ورونه ویو پښتیدل

ئې شاهدان هم دغسې و پوښتېدل هغو هم دغه ځواب ور کړچه «موږ يخ پلو سترګو لعل ليدلی دی » خوښځه چه ئې بيا و پوښتيدله چه «تا لعل ليدلی دی» هغه بيا نا کاره شوه سلطان د ناليچې ژبه پوره کړه او دمومو ځلو ر سره غږي ئې ميابهوا (مشر نياوه ال) ته وروا چول او په دردئې ور ته وويل : ته چه په نياو ځی (دار العدل) کښې ناست ئې دغسې عدل او نياو او دغسې پلټنه او تحقيق به کوې؟» بيوزله مدعيه دې په ناحقه غله و بلله غل خو د مدعي ليور دی» بيا ئې پر شاهدانو مخ راو ګرزاوه چه: «که تاسې رښتيا وو اياست خوشې به مو کړم او که پر خپلو دروا غو ټينګ شوئ وژنم مو ځکه چه ما ته د دغې شخړې اصليت او حقيقت ځر ګند شو » شاهدانو چه د مرګ زغ واورو پدغړی ئې و ښتيدل او کيفيت ئې ټکی په ټکی سلطان ته عرض کړ .

سلطان و فرمايل : « تاسې ما ته دروا غ څنګه ويل ؟ تاسې نه پوهيدا ست چه زما تر مخ څوك دروا غ نشي ويلای !؟» .

شاهدانو ځواب ور کړ : «موږ جواريګر (قمار بازان) يو ، وزی ټبزې وو لمړی ځل ئې درې ټنګې او دا ځلی ئې ځلور ټنګې را کړلی د خپلې کور جنامې ئې رار غو ښتلي موږ نتلو دغه ږ بې اسره و باللي ! ولې ځانه سره موو ويل : د بسو ې کولې له پاره چه په بازار کښې اخ اغږ ګرزوا و يو و بل ته لاس نيسو له ناحقې شاهدۍ څخه څه شرم؟ » تر دې خبرو وروسته چه سلطان د ښځې ليوره (مدعی عليه) ته مخ وواړاوه پخوا تر دې چه سلطان څه ور ته ووائې خپله ګناه ئې ومنله په ښه ئې ټکی په ټکی ور ته عرض کړه او پدې تو که ئې له ايداده څخه ځان وژغوره له بيوزلې مدعيې څخه د سلطان د تدبير او فراست په بر کت هغه تبور واو ښت او د دربار خلك د سلطان ځير کې او فراست ته هيښ پېښ با ته شول سلطان ځکه چه شاهدانو ته امان ور کړی ؤ نور ئې څه ور ته و نه ويل حکم

وروسته یو ورته راغی غوټه ئې ځنې وغوښتله دوکاندار ټینګه وکړه او ورته
وې ویل «تر څو چې هغه بل مل دې نه وي در سره غوټه نشم درکولای» هغه ټګ ورته
وویل: «هو غه دې ملګری مې را نه ولاړ دی» دوکاندار چې سترګې هغه لور ته
ور واړولې که ګوري رښتیا هو لته یو سړی ولاړ دی او څه اشاره هم کوي دوکاندار
غوټه هغه ټګ ته ور کړه او ټګ یو څه له تره ولاړ، سبا ته ئې هغه بل ملګری راغی
او دوکاندار ته ئې وویل: «زما هغه بل ملګری تښتېدلی دی پام کوه که
غوټې ته راغی چې غوټه ورنکړې» دوکاندار ورته وویل: «پرون خو تاسې خپله
غوټه له ما یووړه!» ټګ نا ګاره شو او شخړه د سلطان دربار ته ورسېده له سلطان
ټګ و پوښتېد:

«تاسې له دوکاندار سره د غوټې اخیستلو څه شرط ایښی و؟» ټګ ځواب ور کړ
«څو موږ عبر ګ سره را نه شو غوټه به یو نه ور کوي دوکاندار هم دا راسره
ومنله او زه که پرون له ګوره راوتلی وم خو نن مې سلطان ته روادی» دوکاندار
هم پېښه سر تر پایه سلطان ته عرض کړه سلطان د مدعي په ټګی پوه شو ځکه
که د دوکاندار دروه په نیت کښېنې وای امانت به ئې نه منلای.

ټګ ته ئې وفرمایل: «ستا امانت غوټه تیاره پرته ده له شرط سره سم ورشه
خپل بل ملګری راوله او دواړه خپله غوټه واخلئ» ټګ چې د سلطان له درباره
ووت دوې پښې ئې درلودلې دوې ئې نورې پور کړې او پر مخ وتښتېد. بیا ئې نه شو ونه
کتل او د سلطان نکته داني او فراست له دوکاندار څخه هغه تړ روا واړاوه (۱)

علمی ترقیه

محدث(۱) او سید علي مشهدي(۲) او نور هندوستان ته راغلل د ډهلي او اګرې په سیمو کښې میشت شول او ددې مېنې د علم نښې ئې او ته کړل (۳) د ادبیات سرحد دریم جلد په اته وېشتم مخ کښې لیکلي دي:

د لودیو پاچهانو په زمانه کښې د پښتنو د مذهبي تبلیغ جذبه ډېر ښور راغله له ملتان او شاو خوا څخه ئې ښه ډېر علماء د اسلامي تبلیغ له پاره هندوستان ته ورو ولېل په جرېو ر او ګجرات کښې ئې و اوسول په تاریخو کښې لیکلي دي چه د دغو ځایو د مد رسو شمېر تر درې سوو زیات وُ چه تو او ته لودیو پاچهانو اوقاف تا کلي وو او دا دامداد سلسلــه د مغلو په وختو کښې لا جــاري وه د (هندوستان مین قدیم اسلامی درسګاهین) مولف ابوالحسنات ندوی لیکی:

« سلطان سکندر لودیه شریعت پابند او علم خوښوونکی پاچا وُ هند وانو ده په وختو پارسو تعلیم ته لاس ور ته کړ »

په تاریخ داؤ دی او جام جهان نما کښې لیکلي دي:

« سلطان سکندر د ډېرې مدرسې په مو نهرا کښې قائمې کړې » (٤) د سلطان سکندر په وختو کښې د لیك لوست تحصیل مطالعاتو څخه دو مره عا مه شوې وه چه د تاریخ داودی ، طبقــات اکبری او منتخب التواریخ په شهادت د هر چا په سر کښې ( که په امیرؤ که په فقیر ) د علم دزده کړې فکر موند شو ی وُ

د هندوستا ن خلقو د خپل پر چاله علم یا لنی څخه ډېر ۰ کټه وموندله مسلمانا ن بریبزد ۰ قدا مه پسند وهند وانو لاهم له دې موقع څخه استفاده وکړه د علم او پوهنې خواته ئې توجه وکړه

---

(۱) سید رفیع الدین محدث شیرازی په معقولو کښې د مولانا جلال الدین دواني او په حدیثو کښې د شیخ شمس الدین محمد بن عبدالرحمن سخاوی الحافظ المصری شاګرد وُ سلطان ښه اعتقاد ورته درلود ، په اګره کښې ئې د افاضې له پاره راوساوه او هلته یسې ومړ (ص ٦٥ تذکره علمای هند)

مروج علمو ته ئې زده کړل او کمال ته یې ورسېدل ځکه نو د سلطان سکندر د وختو په علمي خدمتو کښې د هندوانو او مسلمانانو برخه سره سمه ده هندوان نه یوازې د پارسو شاعران شول بلکه دومره پوهان یې راووتل چه د درس حلقې ئې اړولې بدایوانی ملا عبدالقادر د سلطان سکندر د وختو تر علمي پراختیا پورې لیکي :

«یو برهمن لاد درس حلقه اړوله شاعر هم ؤ د مسعود بیگ د غزلې په اقتفا چه ده کومه غزل ویلې ده مطلع ئې دا ده :

دل خون نه شدی چشم تو خنجر نه شدی گر
ره کم نه شدی زلف تو ابتر نه شدی گر » (۱)

## تدریسی نظام

سلطان سکندر که له یوې خوا د هیواد تنظیم (امن، رفاه، مساوات، زراعت او حرفت) ته توجه وکړه له بلې خوا ئې تعلیمي مذهبي، اجتماعي تنظیم او اخلاقي تربیې ته هم بشپړه توجه درلوده . او پدې توجه کښې ئې د هیواد هرې سیمې برابره برخه درلوده (۲) د سلطان په وختو کښې درسي نصاب واوښت د سلطان تر زمانې پخوا په منطق کښې بیله شرح شمسې (چه د سید محمد همدانی تالیف دی) او شرح صحایف او په ځینو ځایو کښې د ابو شکور سالي تمهید (۳) څخه بل کتاب نه لوست کیده د سلطان په وختو کښې د ملتان له ملنبې (د تا په زور د لام په سکون د نون او با په زورو) څخه دوه مشهور علما (ملا عبدالله او ملا عزیز الله) د سلطان پاچهۍ ته راغلل لمړي په دهلي او دوهم په سنبهل کښې میشت شو معقول علمونه ئې رواج کړل

دسکالی مفتاح العلوم دمعقولو په درسی نصاب کښی شامل شول (۱) په طب کښی (طب سکندری) دنصاب خورا اهم جزء شو، د هلکانو دروزنی اوښوونې طرز لره دسلطان اتالیق شیخ سعید برملی دادوه اصول وړاندی کړل :

۱ ــ په پسته ژبه او نرمی دی هلکانو ته ادب او تعلیم ور کاوه شی ،

۲ ــ دهلکانو له ترتنې وهلو ، کو ټلو دې ډډه وشی .

سلطان دشیخ سعید وړاندی کړی اصول ومنل او په ټو لو ښو و نځیو کښی جاری کړه شول، دسلطان په وختو کښی دملك په ټولو ښوونځیو کښی په خوراشدت دغه اصول پالل کېدل (۲) او دغه دسلطان سکندر دطرز تدریس اصول دمغل اکبر په زمانه کښی د( بیت الاطفال ) بنیاد شو (۳)

## دعلم او علما وقدر :

سلطان سکندر له علماؤ او ستانه خلکو سره خاصه مینه لرله، په خورا درنه ستر که ئې ورته کتل دېرئی نازول په ۹۲۲ ھ کال چه ئې په «بیانه» کښی ځلور میاشتې تیری کړی ډیر وخت ئی دسید نعمت الله او د شیخ حسینی په صحبت کښی تیر کړ (٤) سلطان دتعلیم، تدریس او اخلاقی تربیی سره لیونی مینه دراوده، علما به ئی راغوښتل او رو زل به ئې، دعلماؤ او صلحاؤ قدر دده په وختو کښی دعلم او صلاح دعمومیت له پاره اوی عامل ؤ، وائی په ۹۱۰ ھ کال چه سلطان په لاهور کښی ؤ شیخ عبدالجلیل سهر ور دی و مړ ، سلطان ئې بخپله غسل او جنازی ته ورغی (٥) نکل کا : سلطان چه به د تلنبی ملاعبدالله

(۱) هندوستان مین قدیم اسلامی درسگاهین.

(۲) مرقع افغان ۸٦ مخ

(۳) اکبر مثل دوډو کو دتعلیم په باب کښی استادانو ته حکم کړی ؤ « چه : ډډو ته

ددرس حلقې ته ورغی ددې له پاره چه دی ه کړ بو په درس کښې معطلی رانه شي غلي به پوې کوښې ته کښېښوست ، ملاصاحب چه به له تدریسه فارغ شو بیا به ئې سره ولیدل (۱) :

نعمت الله هروی په مخزن افغانی کښې لیکي: مثلی عارف شیخ جمالی کنبوه چه دحجاز شام، عراق اوماورا النهر له سفره ځخه هند ته راستون اوسلطان په خبر شو، له سنبهله ځخه ئې پخپل قلم یو منظوم لیك ور ولیږه اوخپل حضور ته ئې راوغوښت کله چه شیخ جمالی د سنبهل حدودو ته راورسید سلطان ئې په خورا تپاك دوه دري کروه مخې ته ورغی او خورا تر دهر کلی ئې وکړ (۲) او ترمرګه ئې له ځانه لیری نه کړ (۳)

مولوی غلام سرور لاهوری لیکي: «شیخ محمد ملازه (۴) چه پلار او ور لو لپه شالیه وکړاې او دخدای په حکمت ئې په هر روزي کښې دېخوا دوه ګون حاصل ؤ، هغه شالیه چه د سلطان سکندر حضور ته وروړې شوې، سلطان د شکر سجده ادا کړه چه د ده په وختو کښې داسې ښه خلق اودخدای نازولي شته» (۵) وائي: دسلطان په وختو کښې دځان جهان لودی بودر باری وکیل (ملك زین الدین) دقرآن شریف تلاوت ته نه کښېښوست په ولاړې به ئې قرآن شریف لوست او قرآن شریف ته ئې دومره جګ رحیل جوړ کړی ؤ چه دده ترځګره پورې به رسیده تول خدمتګاران او کورنۍ به ئې تهجد ته پاڅیدل نو بیا به تر څاښته پورې به درست کور کښې د تلاو خوابې به ذکرا دې وې ملك زین الدین هره جمعې شپه څو منه وریجې خیرات ولې مګر

---

(۱) او رینټل کالج میګزین، تذکرهٔ علمای هند ۱۰۱ مخ او طبقات اکبری

پوهېدانه ئې هره ورځ ورودرې (قل هو الله احد) ویلی شوی وُ (۱) د سلطان دغې توجه
چه تمام علماء او صاحبانو ئې درلوده له یوې خوا ډېر علماوو زړل او له بلې خوائی
په رعیتو او امراؤ کښې وایه (حیا) نېکی ادب دینداری پرهیز کاری امانت
او صلاح په خورا پېښخر موندهٔ کړه او ټولو خلقو د سلطان په تقلید د صلاح
لور ته مخ ونیو. دده په زمانه کښې غلا دارهٔ بدلمنی او داسې نوروران عملونه
تر یوې اندازې زدې خبرې او پخوانی تکلونه وو او دائې ثابته کړه چه تر
ټولی او سیاست تعلیم او تربیه د ملت د سمون له پاره کټوره ده (۲)

## د سلطان د وختو مؤلفات

سلطان سکندر له تالیف سره خاصه مینه لره له ملایان ئې تشویقول چه
په هر علم کښې تالیفونه کړی (۳) دده پروختو کښې تربدیع المیزان سیر العارفین
مفتاح الفیض، شرح عضدی، شرح مفتاح، شرح انوار الفقه، رسالیه عینیه، تفسیر
حاجی عبدالوهاب بخاری او مهرو ماه علاوه دا څلور خورا درانه کتابونه
د سلطان په خاص حکم لیکلی شوی او ده ته منسوب کړه شوی دی:
۱ـ طب سکندری یا (معدن الشفاء سکندر شاهی):

د سلطان په حکم دوېدك له مختلفو نسخو او تېتویر کو مجلد اتو څخه
په علم طب کښې په ۹۰۸ هـ کال د میا بهواتر کتنی او پاملرنی لاندې یو لوی
کتاب د طب سکندر په نامه راغوند او ترجمه کړل شو د هندوستان طبیبانو
به د هغه له مخې علاجونه کول او د نورو را وروسته تألیفاتو له پاره اساس
شو. ویل کیږی چه د سلطان سکندر په ټولو کارنامو کښې یو ډېر مهم کتاب دی. (٤)

مادوندان، جکروت او کیدی څخه را ایستل شوی دی، په مقدمه کښې ئې د علم طب مبادي او په لمړی باب کښې ئې دعلاج مقدمې، په دوهم باب کښې ئې علم التشريح، په دريم باب کښې ئې دناروغيو نخښې او علاجونه راوړه شوی دي (۱) طب سکندري د هندوستان زوړ طب بيرته ژوندي کړ، او بيرا څې او تدوين ئې وروبا خښه (۲)

۲ ـ آئين سکندري : سلطان دخپلې پاچهۍ د دستورالعمل او قوانينو له پاره يو خوراغښ کتاب دآئين سکندري په نامه جوړ کړی ؤ (۳) .

۳ ـ دامر کربهار ترجمه : دسلطان په حکم دامر کربهار کتاب چه په شاستری ژبه ؤ په پارسو ترجمه شو (٤) .

٤ ـ فرهنگ سکندري (تحفة السعادت) : دشيخ ضيا زوی محمد د ۹۱٦ هـ کال دصفري پر لسمه دسلطان سکندر په نامه يو د لغاتو کتاب د (فرهنگ سکندري) په نامه ليکلی دی دا کتاب ۲۳) بابه لري او هر باب دري برخې مفردات او تراکيب لري (٥) .

## علمي مناظري

سلطان سکندر پخپله ملي عالم ؤ . تل به دده په دربار کښې علمي مناظري کيداې او علما به پر را غونډېدو

تکل کاد : (سنبهل) دمېنې په وختو کښې يوه ورځ سلطان علماو ته وويل : «څاروی او الوتونکي يودبل په ژبو او يا خپل قوم په ژبه سره پوهېږي ؟ » علما ؤ ځينې منصوص نبو تونه وړاندې کړل ، سلطان شيخ سعيد پر ملي نه

سلطان ورته وویل: «ما دمخه نا ئه وویل چه زه دعلماؤ سره به دغه باب کښې یوه عقیده لرم خوځه چه ستا په زړه کښې دی هغه هم ووایه».

شیخ سعید وویل: «ښکاری نور وغورووی بیا یوه پانه په شوندو کښې ونیسي، ریز وکړی اوتو نکی له هری خوا پرراتول یبږی او نیول کیږی دوی د ومره نه پوهیږی چه دا ریز زمونږ د کوم ملګری دی؟ او څه وائي؟»

«بل دا چه د چوغکی ستر ګې و ګنډی پر تورئي کښینوی څو ره وی ئي ‘دا ریز کاندی، چغیږی، نوري چوغکی پر راټولیږی او نیول کیږی، نه دوی دومره پوهیږی چه دا بیوزله بندی او مجبور ده، هغه تل خطره لری، با دهغه ولاړ نشو او نه هغه بندی چوغکه دوی په خپل حالی خبروای شی» (۱)

## لطان اود پارسو شاعری

سلطان سکندر د پارسو خوړ الو شاعر (۲) په و بنا کښې ئی یو خاصه خصوصیت او سلاست درلود (۳) دده تخلص ‘ګلرخ’ یا (ګلرخی) ؤ په شاعری کښې ئی د دهلی شیخ جمالی کنبوه استاد ؤ، اشعار به ئی ورکتل او ورسمول د سلطان د پارسو اشعار و بلګې:

| | |
|---|---|
| سروی که سمن پیرهن و ګلبد نستش | روحی است مجسم که در آن پیرهنستش |
| مشك ختنی هست که صد مملکت چین | در حلقهٔ آن زلف شکن در شکنستش |

«ګلرخ» چه کند جوهر دندان ترا وصف

[illegible]

مینه و کړه په همدغه نژدي وختو کښې(شیخ جمالی) استادئي دعربستان، شام عراق له سفره څخه د هلی ته راغلی ؤ؛ سلطان په لاندنی منظوم لیك چه پخپل لاس ئې ولیکئ ( ) راوباله او دده د(مهروماه) مثنوی ئې هم څښتنی و غوښت:

| | |
|---|---|
| ای مفخر گنج لا یزالی | وی سالك راه دین (جمالی) |
| در گرد جهان بسی زده سیر | در منزل خود رسیده با لخیر |
| بر دیده ما فرض مانده | الحمد که آمدی بخانه |
| در مکه و در مدینه گشتی | گو هر بودی عزیز گشتی |
| ای شیخ بما برس بزودی | بسیار مسافرت نمودی |
| بکشای سوی در کهم گام | نادر یابی ز(گلرخی) کام |
| چشمم به(جمال) تو طپان است | دل مرغ مثال در فغان است |
| من اسکندر و تو خضر مایی | باشد که بسوی ما بیایی (۱) |
| ور شیخ ز دو ستان نشد سیر | تشریف نمود نش کشد دیر |
| باید که کتاب «مهرو ماهم» | ارسال دهد چنانکه خواهم |
| از مهر کشد دو دیده را نور | آن مه نشود ز دیده ام دور |

سلطان سکندر لکه چه دوخت او پرو گرام خورایا بندؤ دشاعری ذوق له خپلو چارو څخه غافل نکړ او همدا سبب ؤ چه دده دربار دقصیده سراو شعراو مرکز نه شو (۳)

## ودانئ (عمرانات)

سلطان دنمدن او عمرانا تو سره ډیره مینه درلوده، زړو ښارو ته ئې بیرته ترقي ورکړه (٤) نوی ښارو نه لاری، بندو نه تپا نې مدرسي مسجد و نه او

## ١ ـ دسنبهل ښار:

په ١١٤ درجې ٢٦ دقيقې طول البلد او ٢٨ درجې و ٣٠ د قيقې عرض البلد کښې (سنبهل) ددهلي لمر ختيز پلوته تقريباً ١٠٠ ميله ليرې يو خورا کمکی ښار گی ؤ ،سلطان له ٩٠٥ هـ کال څخه تر ٩٠٩ هـ کال پورې هلته واوول او هغه کوچنی ښار گی دهندوستان او ی ښار شو ،کن خلق يکښې اوسېدل، خو دپښتنو حکومت چه په شمالی هند کښې له پښو ولويد د (سنبهل) اهميت هم ور سره غروب موند(١)

## ٢ـ داگـري ښار:

اگره د(بيانې)په حکومت پورې تړلې يوه قلا گی وه سلطان له ٩١٠ هـ کال څخه بيا تر مړينې (٩٢٣ هـ)پورې اگره پايتخت کړه او هغه ور کلی که څه هم پيلاپه زلزله کښې ونړيد بيا دسلطان په توجه دهندوستان لوی او مشهور ښار شو، مغل اکبر هم اگره خپل پايتخت کړاو تراوسه پورې مشهور او بارونقه ښار دی(٢) اگرې ته نژدې(سکندره) نومې کلی چه (اکبر مغل ) پکښې ښخ دی سلطان سکندر ته خاص نسبت لری (٣)

## ٣ـ دسلطان سکندر بند:

بابر مغل ليکی :دابند سلطان سکندر د(دهولپور)په شا ؤخوا کښې جوړ کړی دی، پر بندسر بيره ئی ودانۍ جوړې کړيدی دغه دم کښې د پشـ کال او به را غونډ يږی خورا لوی دم څنې جوړ يږی ددی دم شاؤخوا ته غرو نه دی، ماهم هلته يو مسجد جوړ کړ (٤)

## ٤ـ له اگرې ترد هولپوره:

پرهر منزله بهٔی چه واړول هلته بهٔی خپهان و کینډل، ودانۍ بهٔی جوړی کړی چه مسافران پکښی واوسی او مانۍ بهٔی دپاچا استو ګنی لهپاره ودانی کړی.

## رباطونه:

دملک تر لیر و لیرو سیمو پوری دډاک دانتظام لهپاره رباطونه ودان شویووچه (ډاک څوکۍ) ئی بللی او په هره څوکۍ کښی بهځه سړی او څه خوراځتلک او کرایهی آسونهووچهډاګونه بهٔی سره رسول داز رباطونه د کار وانو اومسافرولهپارههم بوسیپ سرپناه ؤ.

## دسلطان بهلول پاچاهی هدیره:

دډهلی په (چراغ کلا) کښی دسلطان بهلول دهدیري ګنبده، سلطان سکندر ته منسوبه ده (۱) داهدیره دنصیرالدین چراغ ډهلی دهدیري ترڅنګ واقع ده، پهدوه وخت کښی دهغدله عالیشانو عمارتو څخه ګڼل کیده.

## دډهلی موتهی مسجد:

طباطبائی لیکلیدی چه: یوه ورځ سلطان سکندر د ډهلی په جامع مسجد کښی بوه دانه موتهی (۲) چه پر مځکه پرته وه راپورته کړه او د دباندی غورځولوپه نیامت ئی خپلوزیر (میابهوا) تهور کړه، میابهواهغه دانه کورته راوړه او دخپل تاتوبی په باغچو کښی ئی کښېښووله، په لمړی کال ئی تر ۲۰۰ دانې زیات حاصل څنی واخیست، بل کال ئې هغه ۲۰۰ سره دانی و کرلې پدی ترتیب ئی دهغی بوې دانی دځو کلو له پله پسې حاصله څخه په ډهلی

اعلم بالصواب غلام حسین طباطبائی په ۱۱۹۵ هـ کال لیکلی چه تر او سه دغه مسجد په ډهلی کښی ودان او په هغه نامه مشهور دی(۱) او معاصرخان غازی پخپلو نیا د دا شتو کښی لیکلی دی : دا مسجد سلطان سکندر لودی په ۸۹۵ هـ یا ۱٤۸۸ ع کال جوړ کړی دی او د شیخ نصیرالدین شاه چراغ دهلی دهدیرې په څنګ کښی د (موټهی مسجد) په نامه تر اوسه پورې شته .

## د متهرا لوی مسجد :

غازی سلطان سکندر هرځای چه له هندوانو څخه نیولی دی هلته ئی ډیر د بر مسجدونه ودان کړی دی مګر دهندوانو دخورا متبرك ښار (متهرا) چه دسری کرشن دزو کړی تون دی هغه لوی مسجد چه سلطان سکندر دهندوانو دخاص مذهبی لمبوڅی (ګهاټ) دزینې پر مقابل جوړ کړی دی دستاینې اوذکر وړ دی (۲) په متهرا کښی یو بازار هم سلطان سکندر جوړ کړی دی (۳)

## د یوسف قتال هدیره :

د(ست بلې) او (کهړ کی مسجد) په څنګ کښی د یوسف قتال هدیره (سلطان سکندر لودهی) دپلار په ژوند جوړه کړیده (٤)

# ملکی انتظام

**امنیت :-** سلطان سکندر که له یوی خوا جنګونه کول له بلې خوانې د ملك معاشرتی ، دینی ، تمدنی او تعلیمی تنظیم هم هیرنه ؤ او دې خوانه ئې هم زیات پام او توجه ار له رعیتو دده دښه انتظام په برکت دامن او داد ژوند کاوه (٥) .

دلیرو لیرو سیمو به کلو کښې لا یوه سپاهی له ځا ځخه نه و کټ پایو او ښې خپل استعمال لرموږ یا او په زور نشو اخیستلای (۱) او زوره ورتر ځان کښتو نه تر ستر کو بو ر ته نشو کولای (۲) سلطان په هغو سیمو کښې چه ځه سر کښ خلق به یکښې وو او غریب رعیت به ئې لو ټل او ځوروو ل ځای پر ځای تهانې و دانې کړې وې او ملته به دا من د قیام له پاره څه څه سپاهیان یکښې او سپه ل (۳) هر امیر او جا گیردار دخپلې سیمې دامن مسؤلۇ (٤) سلطان په هره هره ضیمه کښې دامیرانو او حا کمانو دېڅ معلومات په نیامت خپل ځا سو سا ن کمارلی وو چه دډا ک دمکمل انتظام په بر کت به یې ژر ژر دلیرو لیرو سیمو کرچنی خبرې او حالات ورته رار سیدل او دومره به ژر رارسیدل چه دڅا خبره غوږ به لا نه ۇ په خبر شوی (٥) ځکه نو حکام او امیران د بیر ځنې بیر یدل او پر رعیتو ئې ظلم او تیری نشو کولای دوی کمان کاوه چه دا د سلطان کرامت دی او یا ځینو به ویل چه پیر بان ئې مسخر دی! او بل هر ځای چه به سلطان ۇ دربار ئې عام ۇ هیڅ ډا هیڅ ډ ډ لك نه هر ځنې کرز ولای ځکه نو مظلوم او فریادی خلق برابر د ده مخې ته دریدلای شو ای او دې وضعې هم تر یو یې انداز ې دامیرانو او زور ورو خلقو دظلم مخه نیولې وه

## ډاگ:

دهغه وخت دخبر رسولو ذریعې (ډا ک خو کیه) بللې کیدلې دډا گ خو کیو آسو نه هر وقت په هر رباط کښې چمتو ولاړ وو (٦) دسلطان دغه تنظیم په درست هیواد کښې دومره مکمل او اعلیٰ ۇ چه هر وخت به هره خبره خبر یده او هر فرمان او هر حکم ئې امیرانو او جا گیر دارانو ته پر خپل وخت رسیده داسې هم پیښه

شو یده چه دجنګ په وختو کښی به کله ده فرما نو نه (چه په هغه ځای کښی به ئی دانښکرو دخوځولو اوارو لوښېړي لارښو وني وي) ترڅوسوو میلو پوري هره ورځ سهار ومانښام یویو دلښکرومشر ته رسول کیدل او دفرمانو درسولو په انتظام اووخت کښی به هیڅ تو پیر نه رانه (۱) .

## پاد شاهی فرما نونه:

دسلطان فرمانونه چه دامیر انو اوجا ګیر دار انو په نا مه ئې لیکل کیدل دري ډوله وو:

۱ . دعمومی انتظام په باب کښی فرمانو نه (قوانین) چه په عام محضر کښی به اوستل کیدل .

۲ — دخصوصی انتظام په باب کښی فرمانو نه ( هدایات ) چه دامیرا نو په در بار کښی به لوستل کیدل .

۳ — پټ او خورا مخصوص فرما نو نه چه پواځې به ئې په امیرا نو پوری اړه درلوده .د کوم امیر یاجا ګیر دار په نامه چه به فرمان ولاړ هغه امیر یاجا ګیردار ته به دد ه دنمانده په وسیله (چه په پا چاهی دربار کښی به تل ؤ) دمخه لا خبرور غلی ؤ هغه امیریا جا ګیردار به دوه دری کروه مخې ته ور نه راؤت هلته به ئې یوه لوړه تنګاچه (صفه) جوړه کړه چه ډا ګ به وروورسیده فر مان راوړونکی به پر هغه تنګا چه و خوت امیر یاجا ګیردار ته به ئې (چه ګښته به په خورا ادب ور ته ولاړ ؤ ) فرمان وړاندې کړ امیر یا جا ګیر دار به په دواړو لاسو فرمان واخیست پر سر به ئې کښېښود ( دائې دمنلو نخښه وه) که به

## نرخنامې اوروزنامې:

دسلطان سکندر په وخت کښې دخوراکي شیانو د نرخ حکم ؤ چه دهیواد له هر کوټ او گوټ څخه به دغلاتو او نورو حاصلاتو نرخونه او دپیښو او واقعاتو تفصیلات او دلښکرو حال هر روز ورته راستول کیده، سلطان هم هر روز داتوا و ځیانې او نرخنامې سر تر پایه لوستلې دده یادښت (حافظه) دومره زیات ؤ چه که به خورا وړه تبدیلی په نرخ، حاصلاتو او اوضاعو کښې پیښه شوې وه دستي به ئې ده هغې د ندارک له پاره لارې سنجولې، فرمانونه به ئې هغو خواوو ته لیږل [۱] دواقعاتو پلټنې به ئې کولې او پر عملو به ئې غور کاوه

## استخبارات:

د سلطان سکندر په باب کښې د بر و مورخینو دا سې نکلونه ایکلي دي چه له یوې خوا دسلطان داستخباراتو دخورا ښه تنظیم لوی دلیل کیدلای شي او له بلې خوا ځکه چه ځینې ئې تر عقل جگې پېښې او محیر نکلونه دي ځینو کسانو ته دسلطان کشف او کرامت ور منلی او یو ه یله ئې خو شی نکلونه او تشی افسا نې ولی هغه محیر او تر عقل جگ نکلونه پل عنوان نه پریږدو تر دې عنوان لاندې یوازې هغه برخه مثالونه راوړو چه عقل ئې منی او وائی ددغه انتظام برکت ؤ چه د سلطان په وخت کښې دنوطنو مخ تور او امیرا ن تر حد له پاسه اېل او مطیع ؤ:

۱ – سلطان دامیرانو د کورو حالات درلوده: نکل کا چه وه شپه د برسات په ناپې (موسم) کښې اوډی بهیکن خان (۲) په خپل کور کښې دبالا خانې •

سباچه بهیکن خان دسلطان دسلامی په نیامت در بار ته ورغی، سلطان سم دده دلیدلو سره (میا بهوا) وزیر ته مخ ورو گرځاوه او وې ویل:
«ددومره لوی امیر کره دشپې نوکر نه وی او پلنگ پخپله نه باسی.»

## مالیات:

د سلطان سکندر تر پاچهۍ دمخه په ټولو هیواد کښې دغلو (زرعی حاصلاتو) زکوة، عشر حکومت ټولاوه، په ۹۰۰ه کال چه سلطان سکندر دبنگال له جنگه څخه (درویش پور) ته راستون شو علته کښېنوست وه سلطان چه دخپلو رعیتو له زه او بدحال ولید، دملك ټولو سیمو ته ئې د رعیتو د آرامۍ په نیامت فرمان ورواستول چه (عشر) دې نه اخلی، دامنع په وارسی هیوه کال له پاره په یوه سیمه کښې نه؛ بلکه دا کېر مغلو تر وختو پوری هیڅ پاچا په ټول شمالی هندوستان کښې عشر نول نه کړ (۱)

## کرهنه (زراعت):

تاریخ داؤدی لیکی: «سلطان سکندر دیلار پر نیولو ملکو سکته د کرهنو لو ژوند ئې په کراری او خوښی تیر کړ، ټول رعیت ئې که لوړ که ځوړ، خورا ډېر خوشاله وو هیڅوك ئې ډېر نه شوو چه تر ځان پر کښېنوځه تیری وکړی په تیره بیا د (بزگرانو) فکر زیات ور سره ؤ دی به پوهید چه دملك ودانی او سمسور تیا د کرهنې په زیاتوب او ښه والی پوری اړه لری» (۲)

د سلطان سکندر [illegible]

او بزګرانو هم په خورا خوشالۍ ژوند کاوه، حاصلات کال په کال زیاتیدل دزروحاصلات ارزانۍ جاګیرونه لکونه ورسیدل (۱) د سلطان سکندر دغه خاص لوراو توجه څو مظاهر دلته وړاندې کوم چه دبزګرو (زارعي طبقې) سره ئې درلودل:

۱- یووخت د(سنبهل) یوه غریب بزګر مځکه کیندله، پنځه زره طلاوې ئې وموندلې، دسنبهل حاکم(میاقاسم) (۲) چه په خبر شو پاچاهي خزانې ته ئې ځنې تحویل کړې اوسلطان ته ئې خبرورکړ،

لوړهمته پاچاورته وليکل: «هرڅاچه طلاوې موندلې دی هغه ته ئې بېرته ورکړه!»

میاقاسم خیال وکړچه سلطان دهغه غریب بزګر حیثیت لوړ ګڼلی دی اولځکه ئې دپنځوزرو طلاو دبیرته ورکولو حکم کړی دی».

بیر ته ئې دسلطان حضور ته عرض وکړ: «چاچه دغه طلاوې موندلې دی دهغه حیثیت ددومره ډیروطلاو دبیرته ورکولوور نه دی» سلطان چه دمیاقاسم داليك ولوست دقهره ډ‌ېر له‌واینشیده، میاقاسم ته ئې دستي وليکل:

«ناپوهه! هغه بزګر که ددومره طلاووړ نه ؤ نوپاك څښتن ځنګه ورکوای؟ موږ ټول دپاك خدای، بندګان یو، دی دېرښه پوهیږي چه څوك دڅه وړ دي څوك دڅه!» ددې فرمان په‌لوستلو میاقاسم وارخطاشو، دستي ئې هغه غریب بزګر راوباله اودپنځوزرو طلاو همیانۍ ئې ورته کښېښوولې (۳)

۲- بل وخت بیایه «داجود هن» کښې د (بندګي شیخ محمد) جاګیر دار مځکه یوې کیدله ناڅاپه یوه لوبه شا ځه (نخته سنګ) ښکاره شوه

پوونه کـړه که گوری چه پخه څـاده ' شیخ ئی خبر کړ شیخ هم ورسپور شو هلته چه ورغی سړی ئی څـانه ور کښته کړل کی کـتل څـاله خزانی د که وه شیخ خـزانـه راو کښله کو ر ته ئی راوړه 'ځینـی د سـر و زر و داسی لوښی هم پکښی و وچه د(ذوا لقرنین) نوم پر کښلی ؤ دلا هو ر او دپیـا لپور حا کم علی خان (۱ ) چه په خبر شو شیخ ته ئی وایکل :

«ځکه چه داسیمه زما په ایالت کښی ده نود دغی خزانی څښتن هم زه یم .»

شیخ محمد په ځواب کښی ورته ولیکل : « که خزانه خدای (ج) تا ته در کړې وای ما به هیڅ نه وای ویلی اوس چه مهر بان څښتن ما ته دا بخښلی ده نوستا حق پکښی نشته» علی خان حا کم دسلطان حضو رته دا موضوع ولیکله سلطان ځواب ور کړ :

«ته څوك ئی چه په شیخ محمد اعتراض کوی ؟ » شیخ محمد چه داوار و پدله څه دسرو زر وهغه لوښی ئی چه د( ذوالقرنین)نوم پر کیندلی ؤدسو غات او بلکې په توگه دخزانی دنورو شیانو دنو مواو شمیرسره دسلطان دربار ته ولیږل او هیله ئی څر گنده کړه چه «داتول موندلی شیونه چیری تحویل کړم ؟ »

سلطان په ځواب کښی ورته ولیکل :

«داتول له ځانه سره وساته زه او نه :واړه مجبور یوچه دخدای په مخ کښی به حساب ور کو و دا دخدای ملك دی هرچا ته چه ئی ور کوی ور کوی ئی!!» (۰)

۳ ـ سلطان چه به لا چا ته دیوه تا کلی مبلغ جا گیرور بخښلی ؤ که به دهغه جا گیر حاصلات تر هغه تا کلی مبلغ زیات شول دادودؤچه دمالیاتو دفتر به سلطان ته خبر ور کاوه، مگر سلطان له هیچا څخه زیاتی حاصلات نه اخیستل او

حاصل لرونکې سیمه په جاګیر کښې ورکړه مګر د لمړی کال حاصل ئې (نه لکه) تنکې شوی ځکه چه په فرمان کښې (اوه لکه مبلغ) تاکلی شوی وو، ملک بدرالدین د سلطان حضور ته د دوو لکو حاصلاتو د زیاتوب عرض وکړ او د امعلومات ئې هم وغوښتل چه (زیاتی دوه لکه حاصل چیری تحویل کړی ؟) سلطان چه داولوسته فرمان ئې ورولیږه «له ځانه سره ئې وساته» ملک بدرالدین) داخیال وکړ چه وائی امانت ئې د رسره وساته ځکه ئې نود هغو (دولکو) زیاتی حاصل اروبیه د جاګیر په خزانه کښې د سلطانی امانت په نامه کښېښوولې. ل کال د جاګیر حاصلات (یو ولس لکه) تنکی شولې - ملک بدرالدین بیا لکه تیر کال د سلطان حضور ته ولیکل:

«سږ بیا څلور لکه حاصلات زیات شوی دی کومې خزانې ته ئې وسپارم ؟»
سلطان بیا فرمان ورولیږه: «چه د رسره وئې ساته.»

دریم کال حاصلات (پنځلس لکو) تنکو ته ورسیدل جاګیر دار ملک بدر الدین بیا د سلطان حضور ته ولیکل؛ سلطان داپلا فرمان ورولیږه: «داټول حاصلات ستا دخپل جاګیر دی ځکه ئې ښښتن ته ئې هره پلاځله عرض کوی ؟ ۱)»

## مستظرفه صنایع

د سلطان سکندر په وختو کښې د موسیقۍ له پاره هم یوه دائره وه چه مشرتوب ئې د سید روح الله او سید ابن رسول الله د دوو ورونو پرغاړه ؤ. کرم و تلی قوال یا موسیقی دان چه به له کومې خوا پایتخت ته راغی د دوی د دوو ورونو ته به ورته او امتحان به ئې ورکاوه له خورا لیرو لیرو ځایو څخه (سند رغاړی) راتلل او سید انو ورونو ته به ئې خپل سرودونه اوروول. د د غو دوو ورنو

د سازو سرود هیڅ اجازت نه ؤ.

تاریخ داؤدي هم لیکي: «مسی سکندر غاړي چه ـ اري به ئې نه اورل هم مجاز نه ؤ چه به پاچاهي دربار کښې زغ پورته کړي».

مگر هغه وخت چه حکومت سوبیره پر دوهم ممانعت د دغه فن قدر کاوه لس تنه شهنائي زغوونکي (موزیك) پاچاهي نوکران ؤ چه د شپې یوه پهره به تیره شوه دوی به په واري واري راتلل او خپلې غاړي به ئې زغولې مگر دوی مجبور کړه شوي ؤ چه یوازي به دغه څلور غاړي په دغه ترتیب وهي:

١ـ مالکوس ـ ٢ کلیان ـ ٣ـ نکرا (١) ـ ٤ حسیني نکرا ـ که به چا کله بله غاړه وزغوله ترتل کیده (٢)

## د لاسي صنعتو ترقي:

ځکه چه د سلطان سکندر زمانه د امن او د اړزمانه وه هر څوك خپلو کارو ته خلاص ؤ دغلو هم هغه ارزانی وي چه تر دبره ئې شهرت درلود نو صنعت (لاسي کارو) هم د نورو شیانو سره ترقي وکړه سلطان پخپله هم د هنرمندانو قدر کاوه د هر فن له پاره ئې امیران او موظفین ټاکلي ؤ چه د اهل فن او هنرمندانو آزموینې به ئې کولې او نتیجې به ئې د سلطان حضور ته وړاندې کولې کوم امیران چه د کومو فنونو له پاره گمارل شوي ؤ هغوی به هغو فنونو کښې وتلي او رسید لي کسان ؤ (٣) دلته د نمونې په ډول د یوه میاطه یرملی (٤) ځینې لاسي صنایع راوړو:

١ د سنبهل د میښې په وختو کښې چه جوهریان د سلطان د مرغلې د جوړي له ورموندلو څخه عاجزه هول ' میاطه چه د سلامهی له پاره دربار ته ورغلی ؤ

دا کار ېر ښه ښکلې ز مه کړ او د سلطان مرغلرې له خزانه سره کو ر ته یو وړه
سبا ئې دربار ته د سلطان مرغلره له بلې جوړې سره حاضره کړه سلطان چه ښکلې
هم جواهر ښه پېژندل هیښ ور ته پاته شو چه هر یوه ئې را وغوښتل هغو هم د
اصلي او جوړې مرغلرې توپیر و نه کړای شو میاطه د سلطان په حکم اصلي
او جوړه مرغلرې سره بېلې کړې جوهریانو ئې بیه ۳۰ زره تنګې و ټاکه او
سلطان هم حکم و کړ : چه له خزانې څخه میاطه ته ۳۰ زره تنګې ور کړی ؀
میاطه عرض و کړ د اعلحضرت په برکت زما سره داسې جواهر خورا ډېر دي زه ئې
بیه نه اخلم ، سلطان وفرمایل :
که ته بیه نه اخلې زه مرغلره نه اخلم ، میاطه په خورا ادب عرض و کړ :
« دا مرغلره ما ښکلې جوړه کړې ده څه مې نه دي په خرڅ شوي بیه ئې ولې
واخلم ؟ »
سلطان هیښ پاته شو او وې فرمایل : « دا به ښه څرګند کړې چه ستا
څه نه دي پر لګېدلي ؟ میاطه عرض و کړ چه دا راز به په خلوت کښې د پاچا
حضور ته وسپېنم چه خلوت شو میاطه چه هغه مرغلره له سپلګي (ابرک) څخه
جوړه کړې وه یو بوړ غ ابرک ئې ځنې وا ړول او مرغلره ئې خور خور کړل
سلطان د میاطه دغه کمال ته هیښ پاته شو زښت ډېر ئې ونازاوه او خورا ډېر بخښښونه
ئې ور ته ور کړل (۱) .
۲ ـ میاطه یو وخت نیلوفر ګلې لښتي (چه هندوانیانې ئې په غوږ و کوي)
جوړې کړې وې چا چه به په غوږو کړې که به ئې سر ته نیوراوه هغو لښتیو د غوټیو
شکل درلود او که به ئې سر و نیوراوه د غوټیو خولې به وسپړلې شوې او ژړې

و نغښته لمی شوی خولې به ئې سره ور غلی او بیا به هغسی غوټه شوی
لکه چه وې به (۱)

## د بدعتو منځ نیوی

سلطان سکندر مذهبی تعصب ډیر درلود ده د بدعتو سره کلکه مقابله کوله ښځې ئې د زیارتو له تګه څخه (چه شرعاً روا نه دی) منعه کړې، دده په وخت کښې دادود بیخی ورك شو او د غازی (سالار مسعود) (۲) پر هدیره چه په (بهرایچ) کښې به هر کال بیرغ اوریده او د هندوستان له لیرو لیرو سیمو څخه به خلق ور تلل او میله به ئې هلته د مذهب په نامه جوړوله پر منځ منعه کړله (۳)

## د سپاهیانو درناوی (عزت)

د سلطان سکندر په وخت کښې سپاهیانو ډیر عزت درلود او پر سلطان خو را ګران وو سلطان د دوی د هوسا ینې او ارام لپاره زیار ویوست او د دوی ستړیا او تکلیف ئې نه خوښاوه امیرانو ته ئې هم ده نه کتل او د ترلاس لاندې سپاهیانو سره ئې په خو را او راو پیرزوینه ګذاره کوله سلطان د جنګ او بغاوت دور کولو په قیامت د درست هیواد په تولو کاو کښې چه څه کلاګانې وې (۴) یوه هم پرې نه ښووله تولې ئې ورانې کړلې او د ملك په هیڅ سیمه کښې ئې د ځنګله نوم نه پرېښود ځکه چه د غو کلاګانو او ځنګلو ته به تل سر کښو خلقو پناه وړه امن به ئې ور اناوه او د پیوزلو سپاهیانو ویښې به ئې منځ خوشی نو ئیدلی (۵) ده د هر سپاهی ویښو ته به

---

(۱) مرقع افغان ۱۱۸ مخ د تاریخ داوی د ۵ مخ په حواله.

(۲) سالار مسعود غازی د پیر ساهوزوی د عطاءالله لمسی او د غزنی د ستر تو اولك غازی سلطان محمود خوریې وُ په ۴۰۱ ه کال چه سلطان محمود اجمیر ته کوم لښکری وکماری مشر توپ ئې میر ساهو ته ور کړ میر شاهو د اجمیر په سیمو کښې خورا ډیر کارنامې ورك او هلته پسې میشت شو، سالار مسعود غازی په اجمیر کښې په ۴۰۵ ه کال وزیږید چه نوی ځوان شو

خوړا درنه ستر ګڼلی شي چه به یې جنګو کښې ووژل شول ددغه کارنیو
نه به ئې چا ګیرونه او تنخواوې ورته ګټلی (١)

## د سلطان سکندر امن پسندی :

سلطان جنګ نه خوښاوه او دا عقیده لرله چه په جنګ کښې ګټه لږه او
زیان ډیر دی (٢) ځکه نو د سلطان زمان جنګونه دفاعی ؤ سلطان تل دا میرانو
او سپاهیانو دا خته کولو له پاره او یا د سر کښانو او امنیت ورانوونکو ځپلو له لښکری
لیږدولی (٣) ده د ملک دیر او هوس نه درلود او نه یې تو بو له څخه ئې بدورل چه ډیر به
مجبور نه شو جنګ ته ئې لیږلی نه ژاغښتلې او چه چا به روغه او سوله وغوښتله
ده به دستي ور سره منله ده له خپلو ګاونډیو ملکو لکه بنګال ملتان کشمیر سره دا ډیر ښه
تړونونه لرل مګر سره ددې امن پسندي چا چه به سر کښي وکړه او په سمه به لاری
ته نه راواوښت هغه به ئې کلک ټراټه حتی له ملکه به ئې یوست (٤) د سلطان
له ٢٨ کالو پاچهی سره د ده د جنګو تناسب خورا لږ دی او د مورخینو په قول
دا ځکه چه ده له پلاره پر «پاتې شوی ملک سکته کړی وه او د نورو ملکو
د نیولو فکر ئې نه درلود» (٥).

## د سلطان سکندر لوړ افزړه سوی :

سلطان سکندر هغه پاك زړی پاچا ؤ چه لوړ زړه سوی او پیرزوینه اود
ئې ترا یداد او تر ټولو زیاته وه ځینې مجرمین چه به د خورا کلك ایداد ډولا
به هم دده زړه پرسوا او بخښل به ئې ده تل سر کښیان تر قوت او ځپلو په احسان
او ښه ګټو ښه ایلول د ورو زوار خیندوانو سره ئې د ورور ګلوی او عزیزولی سلوك

کاوه له خپلوا میرانو سره ئی دروزونکی به ډول ګذاره لر له د پلار د وحتو امیرانه ئی به خوراد رنبه ستر که کنله حتی د دوی ترمخ پر تخت نه کښېنوست دده دغه لور او پېرزوینې دده دپاچهۍ ترانديو غښتلی سر کښیان ئی ور ته اېل کړل او اېلوامیرانو ته ئی د دښمنۍ او پورته کېدلومو قمع ورنه کړه همدغه سبب ؤچه دده امیرانو چه هر یوه ئی په توره او میړانه لښکری ماتولي تر ده خانونه نذری کړل ، دسلطان دغه دور ور ګلوی سلوك ، تدبیر او دوراندیشۍ وه چه د لیر و لیر و امیرانو ځا ګیر دارانو او راجا ګانو دسیسی او بغاوتونه ئي په غار ننه ایستلی ؤ او هیڅ سر نه شو پورته کولای .

دسلطان دلور او پېرزوینی ځینې ښکاره مثالونه دادی : —

۱ ـ دسلطان بهلول تر بوره (عیسی خان) دسلطان سکندر د تخت نه ختلو مخالفت وکړ سلطان چه پر تخت کښېنوست لښکری ئي پسی ورو بهولی چه بری ئی بر و موندو ئي با خښه او دبټیالي حکومت ئي بېرته ور کړ

۲ ـ شهزاده عالم خان (سلطان علاؤالدین) وروړئي په ۸۹٤ ه کال ورته پورته شو نر ما ني وروسته ئي پخلا کړ داناوي حکومت ئي ور و سپاره

۳ ـ شهزاده باربکشاه ورورئی په ۸۹۵ ه کال په جونپور کښی دمخالفت نغاره وډنګوله سلطان سکندر پسی ورووت په (بدایون) کښی ئی کلابند کړ باربکشاه چه وسله کښېښوه بېرته ئي هغه دجونپور واك وروسپاره .

(۱۰۰۰

٤ ـ (دسلطان دعمه زوی) شیخ محمد پرملی دباربکشاه مل شو په جنګ کښی چه بندی سلطان ته راوستل شو سلطان له آسه ورنه کښته شو په غېږ کښی

٦ - پر شهزاده جلال خان په ۹۰۹ هـ کال بدگمانه شو حکم ئې وکړ چه بندي ئې کړي مگر شهزاده جلال خان چه غالیوړ ته کډه کړه د پر ئې ونا زاوه (۱۲۰) آسونه (۱۵) پیلان د پرې نقد او جنسي بخښښونه ئې ورکړل او بېرته ئې د (کالپي) جاګیر ورو باخښه.

۷ - علي خان نا گوري چه په ۹۲۲ هـ کال د سلطان پر ضد شهزاده دولت خان د (رنتهبور) د کلا نه سپارلو ته ولمساوه سلطان له علي خان څخه د (میوپور) حکومت واخیست ده بل ورور (ابابکر) ته ئې ورکړ ده نه ئې نور هیڅ ونه ویل او نه ئې بیا شهزاده دولت خان ته د کلا د سپارلو خبره پرخوله راوړه.

مگر سلطان سکندر د دومره لوراوېپېرزوینې سره پر امیرانو دومره ضبط وُ چه دده تر مخ ئې ساه نه شوای کښلای : یو وخت چه سلطان پر (میا محمود پر ملي) په قهر شو جاګیر ئې ځنې واخیست (میا محمود د پلي انا گور) ته ولاړ مگر د سلطان اتالیق او خورلور تیر امیر د میا محمود پلار (شیخ سعید پر ملي) ئې زیرمه ونه کړای شوای او نه ئې څو چه سلطان ژوندی وه ونه د خپل زوی د راغوښتنې له پاره ئې هیڅ هڅه ونه کړه (۱) او نه ئې دده نوم د سلطان په مخ کښې پر ژبه راوړه.

## د سلطان سکندر سخا

سلطان سکندر دومره په لاس کښې خلاص او سخي سړی وُ چه هیڅوك هیڅکله دده له درباره نا هیلی نه دی تللی (۲) که به څوك دده دربار ته فقیر راغی هرومرو به امیر ځنی ته ـ هر څوك چه به نوي ورته راغلل ده به ئې د کورنۍ

شمیرل او بیا به ئې له پاچاهي خزانې څخه ډېرې ډېرې روپۍ د هیواد هر ښار او هرې سیمې ته د خو تنو د بندارو امیرانو بلاس لیږلې او هغو محتاجانو ته به ئې د شپېږو شپېږو میاشتو خرڅې ورکاوه پدې تو که به د لیرو لیرو سیمو مستحقین هم له پاچاهي سخا اروزو کړي (دادودهش) څخه نا مېده نه پاته کېدل پخپله د پاچاهت په بېلو بېلو برخو کښې هندوانو او مسلمانو مستحقینو ته هر روځ ارمه او باخه خواړه اوپه هر ژمي کښې به د هر دېن او مذهب نوا او فقیرانو ته تاوده کالي حتی شالونه لاوور کړه کېدل سلطان د هر ځې جمعې تر لمانځه وروسته په اختر و دوو لسمو ورځو او دروژې په میاشتو کښې هره ورځ او د سوو په اخبره هر وخت محتاجانو ته خوراد رانه درانه خیرانو ور کول په اختر و ده (عاشوره) او دوولسمه ئې بندیان خوشي کول او مالي مرستې به ئې ور سره کولې د دین لوبانو ته ئې تنخواوې نا کلې وې چه تر مرګه به ور کولې کېدلې په درست هیواد کښې چه څه مسجدونه وو تولو ته خطیب امام مؤذن اوجارو کښ مقرر شوی ؤ او مناسبې تنخواوې ور ته ورکول شوې وې چه له پاچاهي خزانې څخه به ور کولې کېدلې د شوری مجلس د غړو د کورونه له پاچاهي دستر خوان څخه هر ورځ بوه بوه خواره چه د خواره ور لیږل کېدل که څه هم د شورې غړي به په خاص محل کښې پر دستر خوان حاضر ؤ بیا به هم دوی مجاز نه ؤ چه پر پاچاهي دستر خوان بوډۍ وخوري بلکه کورنو ته به تلل او ور لیږل شوی خواړه به ئې له خپل کهول له سره خوړل (۱)

چا نه چه به ئې څه معاشونه او جاګیرونه ورو ټاکل تر مرګه پورې به ئې نه تخفی کرزول مګر کوم دروه یا درغل به تخفی څرګند شو (۲) او کوم

کښې دور کړي سخا اوخیراتو دا حال ؤچه یو بل وخت کښې به ئې مثال
په سختۍ سره لاس ته راتلی دسلطان سخا پر نورو دومره اغیزه کړې وه چه
هر امیر او بډای به په خیرات او ورکړه کښې تر بل دوړاندې کېد او زیار
یوست او سیالي به ئې سره کولې پر سلطان هم پخپله هغه امیر زیات ګران
ؤ چه د غریبو او بېوزلو سره به ئې زیاتې مرستې کولې کله چه به د کوم
امیر د سخا حال ورغی وبه ئې فرمایل : «د هاسې بنسټ (اساس) ئې نه دی ایښی
چه له هغه څخه دی یو وخت هم ده ته زیان ورسي»
دسلطان سکندر زمانه په سخا او ورکړه کښې مشهوره ده د ده دځینو امیرانو
د سخا څو بلګې لاندې راوړو .

## ۱ ـ دمیا محمود پرملی سخا:

سلطان یو وخت خپل یوه امیر (میامحمود پرملی) ( )ته خپل یو خورا
وتلی آس ورو باخښه ځکه چه سلطان ته د ده دا عادت معلوم ؤ چه چاچه به
څه ځنې وغوښتل هرومرو به ئې ورکول او د هیچا غوښتنه ئې نه رد وله
نو ئې د آزموینې له پاره ورته وویل: «بل چاته به ئې نه ور کوې » څو ورځې
پس یو بېوزی خرڅونکی (یکه فروش) میا محمود ته ورغی او هغه یا چا هغې
آس ئې ځنې وغوښت میا محمود په خورا کبزه غاړه ورته وویله: «یا چا حکم
راته کړی دی چه دا آس چا ته مه ور کوه زه به دغه آس پرځای دوه درې
نور وتلي آسونه درو بخښم» غوښتونکي (سائل) ونه منل (ځکه چه یاچا پخپله
د میا محمود آزموینې لره ګمارلی ؤ) پر خپله خبره ټینګ ودرید ، پای ته
چه ته میا محمود ته ئې وویل :
« که ئې راکوي دغه آس په سر، سره غواړم بل کرټ نه منم ستاسره چه دیاچا

میامحمود پسی ورزغ کړه «څه چه خدای کړي وي هغه به وشي نه آس بوزه زه دسابل غوښتنه له شم ردولای» سبا چه سلطان سکندردسانګي داګ نه ته (میامحمود) هم ورسره ؤ که ګوري چه هغه ببوزي خرڅونګي هم په پاچاهي سپرلی کښي پرهغه آس سپوردی سلطان هغه سپور را وغوښت او وي پوښتید: «آس دی له کومه کړی دی ؟».

«سپا ره په ځواب کښي ورته وویل:

«دسخي میامحمود کوردی نه ورانیزي دادده هغه بخښښ دی چه پاچائي له ور کړی منعه کړی ؤ »(۱) سلطان چه داواوریدل دمیامحمود اورله ئي و کتل اوځه ئي ونه ویل :

## دسید خان سخا

دمبارك خان لودی زوی(سیدخان) ترهغه وخته پورې دې نه خوړ له چه تول ور معلوم وزی او فقیران به ئي ماړه نه کړل او دائي دود ؤهر وزی ته چه به ئي دوډې وکړه یوه یوه طلا ئي هم ور سره ور کو له نکل کاچه یوه روځ چاسیدخان ته وویل ‹ « دشیخ محمد پرملی پخوانيوکیل چه په دربار کښي به او سید دزمانې ناوړو پیښو دفقر حال نه رسولی دی» ده سمدستي سړی پسې ولیږه اوخپل خزا نه دار ته ئي وویل چه یوه دکه لپه طلا وي ور کړه خزا نه دار چه دکه لپه طلا وی راوړی محاسب وشمیرلې دپنځوسو زرو تنګو په بیه طلاوی شوې خزا نه دار یدی فکر چه دا خورا ډېرمبلغ دی سید خا ن ته ئي وویل :سید خان حکم ور کړ« دغومره نورې پسې ور کړه چه یو لك تنګې بشپړی شی »

وائي کله چه سیدخان پخپل ځا ګیر (چند بری) کښي ؤ یوې ښځې په یوه

«داڅه کوی؟» ښځې ورته وویل: «ما دغه بانډې دغسې پخې کړې دی چه تر پخوالۍ ئې تللې دی دسابو په څیر خوند کوی مګر ښه ئې هغه شنه دا و موالی ښه ده» «سید خان اشکی (آفرینونه) ورته وویل او غاب ئې له طلاو رډک کړ وائي یو وخت (سید خان) ښکار ته تللی ؤ یوه بز کړ یوه کټوه مستې ورته راوړې سید خان ډیر ځنې خوشحال له شو او دده کټوئی له طلا ورډ که کړه

نکل کا چه یو وخت سید خان خپل آسونه کتل د ده مصاحب امیر (سربنی صدر خان) هم ورسره و ملری آس چه ئې ورته راوست سید خان خپل مصاحب ته مخ راو ګرزاوه: «دا څنګه آس دی؟» صدر خان ئې ډیره ستاینه وکړه سید خان دستې حکم وکړ:

«دغه آس د صدر خان سربوته وسپاری» پدغه ترتیب تراتو آسو پورې به دسید خان دپوښتنې: «څنګه آس دی؟» په ځواب کښې صدر خان هغه آسونه ستایل او سید خان به حکم کاوه چه «د صدرخان سربوته ئې وسپاری» صدر خان پرنهم آس ستاینه پرې ښوده او دسید خان د «څنګه آس دی» د پوښتنې په ځواب کښې ئې وویل: «بخښنې تر حد زیاتې شوی» سیدخان د کمند و مشر و پو ستپد:

«نن دی څو آسونه معاینې (کتنې) لره راوستلی دی؟» هغه وویل: (یوسلو شل). سید خان و مسل او دی ویل: «صدر خان د یوه یره آس منني ترهوره کړد نن نول آسان مې صدرخان ته ور بخښلی دی»(۱)

یوه ورځ سید خان خپل جواهرات کتل دری دانې جواهر ئې مخې ته پراته ؤ چه د یوه بیه (اوه) د بل دا (پنځه) او ددریم دا (درې) لکه ټنګی وه په دغه وخت کښې د سید خان فکر شو چه یو مصاحب ئې په څیر څیر دغو

سید خان ورته وویل: اوس ئې خوښه کړه مصاحب نو ټولو ارزانۍ د بړی ته لاس ونیو . سید خان ومسل او وې ویل ، دارزانه دبره تا غوره کړه او ګرانه زه درکوم منځنۍ بوازی بانیېزی هغه ئې هم بسې هټا

## ۲ ــ د اعظم خان سخا

داعظم هما یون زوی مددخان چه (اعظم خان) لقب ئې درلود خورا میره محلمی امیرو محتاجانو ته ئې له روپو او طلاؤ ډکې همیانۍ ورکولې ده دادو دؤسوغاتو نه او تحفې چه به (نقدو جنس) ورته راوړې شوې هرڅوك چه به و رسره نا ست ؤ هغو ټولو ته به ئې برخې بکښې ورکولې وائې د سارو په وختو کښې (اعظم خان) دوشاله پر اوږو کوله بوه ورځ چه به ئې پراوږو کړه سبا به ئې هرومرو چاته ښندله .

تاریخ داؤدی لیکي :

« اعظم خان چه په سفر اوسانکه کښې چاته آس ورکړ بیائې خپلی طبیلې ته نه پریښودهغه آس د هغه سری ؤ ختې خورا که به بې هم که ئې غوښته) ددهله خواورکوله کېدله » (۱)

## دسلطان سکندر کرامات

مورخینو دسلطان سکندر په باب کښې ځینې داسې خبری لیکلې دی چه عقل به ئې په مشکل سره منی ځکه نو ځینې خلق ئې دسلطان کرامت ګڼي او ځینې ئې اغراق اومبالغه بولي(۲) ځینې دغسې پیښې ئې دلته اجمالاً راوړو:ــ

۱ــ په ۱۱٤ هـ کال چه سلطان دانبکرو سره د(نرور) له سوبې څخه ګوالیار ته

کړ، ده دلاس دپورته کېدلو سره او ربخ راغله باران واوربد او تول «تبزی او به شول (۱)

۲ـ په ۹۰۰ هـ کال چه سلطان سکندر له شرقي سلطان حسین سره د (جونپور) یا (بنا رس) په اتلس کروهی کښې جنګید ، د سلطان حسین یوه مست جنګی پیل سلطان سکندر له آسه څخه په شونډک کښې واخیست او له دا که ئی را وبشت د هرچا داخیال ؤچه هېو نه به ئې ریزمریزه شوی وی مګر په سلطان هیڅ ونه شوروغ رمی راپا څېد هغه پیل ئې په تو ره وواهه پیل په را مباړو ترشا تر پلل او همدغه پیښه دسلطان حسین دماتې سبب شو ه (۲) ۰

۳ـ په ۸۹۷ هـ کال دجونپور په دوهم جنګ کښې سلطان سکندر دسلطان حسین شرقی ستاځی (میران سید خان) ته وویل :

«سبا به په جنګ کښې ستا پاچا (سلطان حسین) ماتې وکړی او ته به بندی ونیول شې ، ما ته به دی ودروی اوزه به درته ووایم چه که مو خپل پا چا سمی لاری ته را اړولی وای ښه به ؤ

سبا به دسلطان دغه خبره تکی به تکي وختله ( ۳ )

٤ ـ بخـا ری شـیخ حاجی عبدالوهاب (رح) چه دسلطان پیر او دخپل وخت خورا منلی باعمله عالم ؤ حج ته تللی ؤ یوه ورځ سلطان خپل امام منلی عالم شیخ لاون (دانشمند) ته وویل:

«نن شیخ حاجی عبدالوهاب له بیری څخه دهندوستان پرخاوره کښېته شو » شیخ لاون دانشمند له ځانه سره هغه نېټه وليکله شیخ عبدالوهاب چه اکري ته راغی شیخ لاون له بېری څخه د را کښېته کېدلو نېټه ځنی وپوښتېدله . شیخ عبدالوهاب چه کومه نېټه ورو ښوو له کټ مټ هغه نېټه وه چه سلطان

۵ - سلطان یو وخت د (اعظم همایون) په مشرتابه لښکری د (تهټهه)- ته ولېږل (او یا) ورځې وشوې چه سلطان ته د دغو لښکرو حال را نه غی یوه ورځ ئې د (اعظم همایون) زوی فتح خان د پلار له حاله وپوښتید (فتح خان) په خوراو ارخطایی ځواب ورکړ-

«او یا ورځې وشوې هیڅ حال ئې نشته»

سلطان وفرمایل :

«نن له «تیراګه» راستون شو په څو ورځو کښې به راورسېږی»

لږې ورځې وروسته چه د پلار لیك (فتح خان) ته راورسېد «له (تیراګه) څخه ئې د خپلو خو ځېد لو ننوته د سلطان نېټه شوې وه» (۱)

۶ - یو وخت له پاچاهی طبیلې څخه آس ورك شوی ؤ، څو ورځې وروسته د (اکره) کوتوال (محمد زیتون) د هولپورته نژدې غل له آسه سره ونیو، غل په پاچاهی توقیف کښې کښېنول شو، درې ورځې وروسته په دغه نرخ کښې چه سلطان عام دربار ته راووت. لواڼې خانخانان کوتوال ته وویل:

«غل دې د لته ولې کښېنولی دی؟ بوئې زه وئی وژنه» د خانخانان دا حکم لا نه ؤ عملی شوی چه سلطان راووت او خانخانان ته ئې مخ ورواړا وه :

«هغه وخت د غله وژل روا کېدلای شی چه لاری نیسی او یا یه کوم کور کښې د کور په لاسه ووژل شی. دا غل چه پاچاهی دربار ته را غلی او ما هم خپل مال ځنی اخستی دی، دده د وژلې حکم ورکول عجیبه مسلمانی ده؟».

خانخانان چه دسلطان دا له نیاو انصاف او رحمه ډکه وینا واورېدله عرض ئې وکړ «زه پر خپل حکم پښېمان یم، داچا د کرامت څښتن دی چه

۷ ـ وايي يو دوبي د خپلې ښکلې مايبۍ سره دا کړې دښار په نيا مت له چنديرى (۱) څخه راوخوځېد دکلي ځپتان چه په خبر شول ښبې ئې بسي دامچ کړې په لار کښې ئې لاندې کړل دوبي چه د کلي ځپتان په ځان بسي وليدل ماينې ته ئې وويل :

« راځه چه ستنېږو، بېديا اوشپه بسه مخ کښې ده اوددې ځپتانو نيت ښه نه را ته ښکاري» دوى چه دستنېدلو اراده وکړه ځپتانو ورته وويل :

« مونږ هم ښار ته ځوسره ملبه يو بېره نشته » .

دوبي ورته وويل : « مونږ په تاسي ويسانه لرو» .

ځپتانو دخداى تضمين منځ ته راوړو ، دوى هم ويسا پهو کړه او مخ پرښار سره روان شول چه لږ تياره شوه اولهودانۍ ليرى شول ځپتان پرراوغورځېدل دوبي ئې په وينو اوبه کړ او ماينه ئې غوښتله چه وې تښتوى دې بې وزلې شاؤ خوا کتل هېښه ولاړه وه ځپتانو ورته وويل :

«څه ګوري ؟ مېړه مودى په وينوورنګاوه تهاوس زمونږ شوې راځه چه ځو»

دې بې وزلې ورته وويل :

«زه په ضامن پسي ګرزم ،

ځپتانو لاس وروا چاوه چه نا ببره دوه پهوسلو پټ سپاره ښکاره شول ځپتانو تر يلل يوه سپاهي آس پسي پونده کړتول ئې سره وترل اووځېل، دابل سپور ښځې ته ولاړ ؤ ، هغه سپاره چه دمجرمانو له ځېلو څخه فراغت موند د ابل سپاره ته راغې اوپه احترام ودريد ـ دوارو دوبي ته دعا وکړه اوهغه هم روغ رمې را پاڅېد ،

# د سلطان سکندر اولاده

سلطان سکندر څو بچي در لودل یوه ئې د شهید شیر خان لوانی لور یا
کونډه وه چه په ۸۹۹ هـ کال ئې وکړه او په زامنو کښې شپږ تنه
را څرګند دي:

## ۱ـ شهزاده ابراهیم خان

په ۹۱۱ هـ کال چه سلطان سکندر پر ګوالیار برید کاوه د چنبهل د سیند
پر غاړه ئې لښکري ده او ورور تر مشرتابه لاندې پرېښودلې شهزاده ابراهیم د سلطان
سکندر تر مرګ وروسته په ۹۲۳ کال دا ګرې پر تخت کښېناست او "د سلطان
ابراهیم لقب ئې غوره کړ ـ بابر مغل ده له لاسه څخه په ۹۳۲ هـ کال پاچهي وګټله.

## ۲ـ شهزاده جلال خان

په ۹۱۱ هـ کال د چنبهل د سیند پر غاړه سلطان سکندر د دراو لښکرو مشرتوب
ده او ورور (سلطان ابراهیم) ته وسپاره د پلار تر مرګ ینې وروسته د (جونپور)
پر تخت کښېناست د سلطان جلال الدین لقب ئې غوره کړ
دخپل سکني ورور (سلطان ابراهیم) له لاسه ووژل شو.




## ۳ـ شهزاده محمود خان

د پلار تر مرګ وروسته سلطان ابراهیم په (هانسی) کښې کښېنولی و د سلطان
ابراهیم تر وژلي وروسته ئې د بابر مغل سره جنګ وکړ په ماتې (بهار) ته
ولاړ هلته ئې په ۹۳۴ هـ کال د (سلطان محمود) نوم پر ځان کښېښود په ۹۳۷ هـ کال،

## ۵- شهزاده حسن خان (۱) یا حسین خان (۲)

دسلطان ابراهیم په وختو کښې به (هانسی) کښې بندی ؤ

## ۶- شهزاده اعظم همایون

د سلطان ابراهیم په وختو کښې به (هانسی) کښې بندی ؤ

## دسلطان سکندر ددربار امراء

مرقع افغان لیکی : دسلطان سکندر دوختو امراء دومره زیات دی چه د ژوند حالات ئې په څو کتابو کښې نه ځائیږی ځکه ئې نو دیوڅو ورتېرو امراؤ پر لنډه تذکر سکته کوو .

### ۱- خوجگی (۲) شیخ سعید پرملی

دشهزاده گۍ په وختو کښې دسلطان سکندر اتالیق او سرکاری دفتر دار او په پاچهی کښې ئې ورتېرمشر او نکته دان وزیرؤ دده فهم او فراست هرچا مانه دسلطان ابراهیم په وختو کښې و مړ .

### ۲- میا طه پرملی

دشیخ سعید پرملی زوي ؤ دسلطان سکندر په امراؤ کښې خور استر هنرمند او په هرفن کښې وتلی امیراونو میا لی عالم ؤ ده دسلطان سکندر د یوي وتلی مرغلري جوړه له ابر گوڅخه هسی جوړه کړي وه چه سلطان برتېر وتل او تو پیر ئې ونشو کولای- دی دسلطان ابراهیم په وختو کښې و مړ ، مورخین وائي چه میاطه په کمیا او سیمیا کښې هم لاس درلود په صنعای او کاریگری کښې ئې دومره کمال درلود چه

---

(۱) مرقع افغان ۱٦۸ مخ

پخوپخو اوټلوو ټلو کار یکړو ئې مقابله نشوای کولای ددغه هنرمندي کارنامې دومره محیر العقولې دي چه ځینې خلق ئې نشي افسانې ګڼي (۱)

## ۳ - میا حسین پرملی:

دخواجګی شیخ سعید زوی ؤ ده دنکره سپاهي توب سره سره علم هم درلود ، په امر ی سر کښې د (سهارن) او (چنار) جاګیردار ؤ بیا دسلطان سکندر دفوځو سپهسالار شو سلطان ابراهیم ئې په مرګ پسې شوچه اولی تو طیې ئې نا کامې شولې ، نو ئې په پای کښې دمالوې د (چند یری) جاګیر ورکړ ، هلته ئې شیخ زاده ګان پروړپورنه کړل او هغو په خورا بیرحمي ووژه ،

وایی ده پر ز کندن دخپل وکیل خراسان علی حسن په لاس سلطان ابراهیم ته دا پیغام ولیږه « زما په زړه کښې نا ته دروه و درغل نه ؤ خو ستا په زړه کښې کینه وه زه دایم مرم او ته هم را پسې ئې زما وستا نیاو (انصاف) به دعادل څښتن په مخ کښې وسی !

## ٤ - میامحمود پرملی:

دشیخ سعید خواجګی زوی دی دسلطان سکندر یو فقیر مشر به متو کل او خورا سخې امیر ؤ ، دهیڅ فقیر غوښتنې ئې هیڅکله نه رداوه ، میا محمود دزښت درونډ خورا زغمو نکی او کلک سړی ؤ یو وخت چه سلطان سکندر ورته په قهر شوده ئې څه پرو او نه کړه او وې ویل : « پاچا که ناراضه شي دومره درنه خبره نه ده خدای دې نه ناراضه کیږي » میامحمود دسلطان ابراهیم په وخت کښې لاژوندی ؤ .

## ۵ - میابهو اوزیر:

دخواص خان زوی (میابهوا) دسلطان سکندر دپاچهې وتلې بوه او غوره عالم امیر ؤ یو وخت دسلطان خاص حاجب ؤ ، بیا سلطان سکندر دا ګړی د پای تخت

شیخ جمالی دده په باب کښی لیکی :

«میا بهوا وزیر په ځیرکی او کاردانی کښی ساری نه در لود دیا چاهی ستنی په تینګښی وی علماءاو فقیرانی روزل» (۱)

میا بهوا په ۹۰۸ هـ کال د سانسکریت له مختلفو کتابو څخه خو را مستند او جامع طبی معلومات راټول کړل او «طب سکندری» ئی و نوماوه ( )

دده دفراست په باب کښی نکل کا:

یو وخت سلطان سکندر په حرمسرای کښی دننه پر مصله (ځای نماز) ناست ؤ په اشاره ئی له خواجه سرا څخه څه وغوښتل خواجه سرا په ونه پوهید څو خبره ئی ورڅېر که نکرای شوای داندې راووت میابهوا ته ئی (چه هغه وخت خاص حاجب ؤ) حال ووایه میابهوا ور وپوښتید «دسلطان مخ داشارې په وخت کښی کوم لور ته ؤ ؟»

خواجه سرا وویل: «د نوې و دانۍ دوره لور ته»

میا بهوا ورته وویل: «سلطان نجار او رنګمال غواړي».

خواجه سرا هم سمدستي نجار او رنګمال دپاچا مخې ته ودرول پاچا سکندر په خورا حیرت وپوښتید : «څه وپوهیدې چه زه د وی غواړم»

خواجه سرا حال سرتر پایه ورته عرض کړ او پاچا دمیا بهوا پر فراست آفرین ووایه دا ځیرك او پوه وزیر دمغرور سلطان ابراهیم په پاچهی کښی تر دوه کاله بند وروسته په زندان کښی و مړ دده مرګ دلودیو دپا چهی ستنی و لړزولې .

## ٦-خان خانان دلاورخان:

دلاور خان خورا په لاس کښې خلاص بدال سړی ؤ وائې د ده حرم سرای
ته دور څخې د پنځه سوو ... ) ننګو ګلان را نیول کېدل (۱)

## ۷- کالاپهاړ:

شیخ زاده محمد چه په کالاپهاړ (تور غر) مشهور ؤ د عماد خان پرملی زوی
او د سلطان بهلول خور یې دی؛ د سلطان ابراهیم او دی ملکه د ده اوروه (۲)
د سلطان بهلول په ژوند د بهرایچ (۳) واکمن ؤ. په (۸۹۶) هـ کال کښې
دبار بکشاه مل شو د سلطان سکندر سره قنوج ته ورغی و جنګېده په جنګ
کښې ونیوه شوه مګر سلطان سکندر وبا خښه او دې بې ئې ونازه وه. د جونپور
تر نیولو وروسته ئې بیرته د بهرایچ حکومت ورو سپاره د سلطان د مړینې
په وخت کښې د نول (او ۵ه) حاکم ؤ سلطان ابراهیم چه پر خپل ورور
سلطان جلال الدین بریدو کړ او ابنکړې ئې دجو نپور لوري ته وبهولی شیخزاده
کالا پهاړ د سلطان ابراهیم مخې ته راغی.

## ۸- اعظم همایون: (٤)

د سلطان سکندر دو ختو خورا ورتیر امیر ؤ او د (امیرالامراء) لقب ور کړ شوی ؤ
یوه پلا په ۹۰۱ هـ کال د لکهنو تی (بنګال) دهغې برخې چه د سلطان سکندر په
لاس کښې وه حاکم ؤ بیائې د (کړې) واك ورو سپاره د بهار دلتې (درویش پور)
ئې جاګیر ؤ دی د پرو فادار او پر ملك او پاچا مین سړی ؤ.
سلطان ابراهیم د ګوالیار له جنګه بیرته را وغوښت سپك ئې کړ او په زندان
کښې ئې واچاوه وائې چه: دده ورتیرو دوستانو زیار و نوست چه دی د پاچا

---

(۱) مرقم افغان (۱۶۲) مخ

په لومه کښېښنو زی اوله ګوا لیاره ورنه شی څکه دوی پوهېدل چه دابلنه یوه توطئه ده خوده جواب ورکړ:

«موږ د سلطان ابراهیم دپلار او نیکه له پاره ځانونه قربان کړی دی خو مره چه ژوند تاکلی ؤ هغو مره ژوندی و کړ تر تاکلی ژوند زیات نور ژوند نشته ما کومه ګناه نه ده کړې که می وژنی که می پرېږدی دادده کار دی دخدای خواب به دی ور کوی زمایه شرافت او وفا کښې خوهیڅ توپیر نه دی راغلی»

داعظم همایون دسلطان ابراهیم په زندان کښې سترګی له دنیا پټې کړی

## ۹ـ وزیر فتح خان

اعظم همایون زوی فتح خان دسلطان سکندر دوختو څلمی امیر ؤ دسلطان سکندر تر مرګ وروسته دهیواد دویش کالک مخالف ؤ سره ددی هم په ۹۲۳ه کال کښې سلطان جلال الدین خپل وزیر کړ (۱)

سلطان ابراهیم ئې له پلاره سره زندان ته وا چاوه او بیائې د میاحسین سره درغی په شرطونو کښې دده خوشی کول منظور اودی ئې خوشی کړ په ۹۲۲ه کال چه همایون داحمدخان لوانی او میامعروف پر ملی دمقابلې دپاره د ګنګا ژی ته نللی ؤ (جاجمه) کښې فتح خان پرېښې شو همایون دستی پلار نه راولېږه بابر مغل ونازاوه او د ۹۳۳ ه کال د صفری پر انمه ئې د خان جهانی اقب ور کړ اودیو کرور شپېتو لکو تنکو جاګیر ئې ور کړ دی ئې خپل جاګیر ته رخصت کړ او زوی ئې محمود دبر غمل په صورت په دربار کښې څنی وګرزاوه (۲)

## ۱۰ـ سلیمان خان پرملی

سلیمان خان د پرملی خان خانان زوی ؤ په ۹۱۸ هـ کال سلطان سکندر
وګماره چه د حسین خان اسلامی (چه پخوائي نوم رای دونګړؤ) په مرسته
(هنوانت ګړه) ته خپلی لښکری ولېږدوی سلیمان خان عرض وکړ چه نه غواړم
چه دپاچا له حضوره لیري شم سلطان بردي خبره ورنه په قهر شو او حکم ئي
وکړ چه د (رایری) سیمه دي سلیمان خان جاګیروی او ترسبا پوري چه ئې
هرڅه دڅانه سره وایستل شي تر نیه کنه هرڅه چه څني پاته شوه هغه دي عام چور
کړه شي (۱)

## ۱۱ـ اسلام خان

داعظم همایون زوی اسلام خان (۲) هم دسلطان سکندر دوختو څلمی امیرؤ
چه پلار او ورورئي سلطان ابراهیم په زندان کښې واچول ـ اسلام خان په
(کړه نکپور) کښې لښکرې سره راټولې کړې او ترتو لوامر اوره لمری
سلطان ابراهیم ته پورته شو نور له سلطانه خوابدی امیران ورسره مله شول ·

سلطان ابراهیم لښکری پسې وروایستلې په (بانګر مئو) کښې لښکری
سره مخامخ شولې کلک جنګونه وشول .
په دغو جنګو کښې اسلام خان او نور څو سکندری امراء ووژل شول.

## ۱۲ـ لوی خان ((مدد خان))

داحمد خان زوی مددخان (خان اعظم) دسلطان سکندر دوختو یو خورا
درونډ سخي څلمی میره امیرؤ دغریبانو دپالنې سره ئې زیاته مینه لرله ـ څه ئي لیکلای
پالو ستلای نشوای ما لوه (چند یری) ئي په جاګیر کښې وه (۳)

سپه ر غشی او شخولی تیر دان په پوری ته د سلطان سکندر په وختو کښې د(اګري) دپای تخت کوتوال ؤ دسلطان ابراهیم په وختو کښې کله چه سلطان جلال الدین ورور ئې په اګره بريد وکړ او سلطان ابراهيم پخپله د جنګ په داګه کښې ؤ ، ده مدغه ملك آدم کـا کړ په تدبير سره (اګره) له تالا وزغور له شوه او سلطان جلال الدين د پاچاهی نخښو په يا يللو له پاچهی ناهيلی ده کړ شو دملك آدم کا کړ هد بيره په لکهنو کښې ده

زوی ئې شيخ حمزه کا کړ چه له لو يو عرفا ؤ او مشهور صوفيانو څخه ؤ دده تر څنګ ښخ دی(۱) بل زوی ئې سکندر خان دسلطان ابراهيم لودی له امراؤ څخه ؤ.

## ۱۴ـ لوانی دریاخان:

د مبارك خان لوانی زوی دی د سلطان بهلول دزمانی له تور یالیو امراؤ څخه ؤ د سلطان سکندر په وختو کښې ئې خورا ډير اعتبار درلود او د (۹۰۱ه ک.ل) په شاؤ خوا کښې د بهار دلتی حاکم شو (۲)

د سلطان سکندر د شهزاد ګی په وختو کښې دریاخان بوسری ؤ چه پوالحی د تاتار خان مقابلې ته دجنګ په ډګر ته ور ووت او خپله توره ئې په دوست او دښمن ومنله دسلطان ابراهيم دپاچاهی په وروستيو کلو کښې په بهار کښې ومړ (۳) دده زوی بهار خان يا پهار خان (٤) يا بهادر خان (٥) دسلطان ابراهيم په پاچهی کښې د (سلطان محمد) لقب غوره کړ او په بهار کښې ئې دخپلواکی بيرغ اوچت کړ فريد (شير شاه سوری) ته ده دشير خان لقب ور کړ (٦)

## ۱۵ـ شیر خان لوانی :

شیر خان د مبارك خان لوانی ورور دی ـ دسلطان سکندر دوختو امیر ؤ

زمینداران پرراتوبی شول شیر خان ئی شهید کړ د دغه شیرخان کونده یالور سلطان سکندر و کړه (۱)

## ۱۶ـ سعید خان یوسف خیل لودی: (۲)

سعید خان د مبارك خان لودی زوی (۳) د سکندری وختو خوراسخی امیرؤ - په ۹۰۵ ھ کال چه سلطان سکندر دده له مشرورور (احمدخان) څخه د لکهنوتی حکومت و اخیست او بندی ئی کړ د (لکهنوتی) حکومت ئی ده ته و سپاره په ۹۱۸ ھ کال ئی د شهزاده صاحبخان سرستی اره وکماره او د(چندیری) دیوی سیمی حکومت ئی ور کړ سلطان ابراهیم ته پورته شو او د اسلام خان شروانی په جنګ کښی د سلطانی لښکرو په لاس بندی شو ـ کله چه سلطان ابراهیم د میا حسین پر ملی سره روغه وکړه دی ئی هم خوشی کړ ځکه چه د روغی په خط کښی یو دده خوشی کول ؤ. (٤)

## ۱۷ـ اسماعیل لوانی:

سلطان سکندر چه په ۸۹۵ ھ کال د بار بکشاه جنګ ته وو وت دی ئی د دولانو په تو که دیوه درانه لښکر سره د مخه ولیږه قنوج ته چه لښکری ورسید لی بیا ئی دستاځی په حیث د روغی له پاره (بار بکشاه) ته ولیږ.

## ۱۸ - بهیکن خان لودی:

د محمد خان زوی دی پلار ئی د کالپی حاکم ؤ دی د سلطان سکندر له خورا نو مورو امیرانو څخه یو خورا سپیڅلی او یو ستوی سری ؤ (٥) طبقات اکبری بهیکن خان لودی د عالم خان لودی زوی گڼی او پلار ئی داناوی حاکم بولی.

## ۱۹- جمال خان لودی:

جمال‌خان دمشهور سارنګ خان لودی لمسی دی څکه نو په سارنګ‌خانی جمال خان مشهور ؤ.

دی دسلطان بهلول له امراؤ څخه ؤ چه سلطان ومړ او شهزاده نظام ئې له ډهلی څخه د جنازې راوړلو دپاره (جلالی) ته وخوځېده ډهلی‌وا ک‌ئې د (جمال خان) ته وسپاره.

سلطان سکندر چه جونپور له خپل و رور بار بکشاه څخه وا خیست دغه جمال خان ئې دلمر ختیزو ډډو (جونپور حاکم ؤ تا که دبېښتانه سترقولواك شېر شاه سوری پلار حسن خان همدغه جمال خان و روزه او د سهسرام خوا صپور او تا نړې سیمی ئې (۱) به جا ګیر کښې ور تـه ور کړې.

## ۲۰ ناسیا له دولت خان لودی:

دینجاب دوا کمن (تاتارخان) زوی او دسلطان دولت یوسف خېل (۲) لمسی یا کړوسی دی دسلطان سکندر له امراؤ څخه ؤ به ۹۰۸ ه کال سلطان سکندر دلاهور حکومت ور کړ (۳) سلطان ابراهیم چه پرپاچهی کښېناست خپل وزیر ئې کړ په خورا درنه ستر که ئې ور ته کتل، د ۱۲۰۰۰ سپرو مشرؤ پاچائی هم هره څېره منده (٤) او ددغه دولت خان وزیر په زېرمه سلطان ابراهیم دسهسرام او شاؤ خوا سیمو والئ فرید (شېرشاه) ته وسپاره (٥) بیائې دلاهور حاکم و تا که په پای کښې سلطان ابراهیم ته باغی شو.

په ۹۰۸ ه کال ئې د کابل پاچا بابر مغل هند ته ورو باله.

په ۹۳۰ ه کال چه بابر مغل پنجاب تر دیپا لپوره پورې‌و نیو دی دخپلو دروزامنو

بابر چا اندهر سلطان پور په جاگیر کښې ور کړل، خو د یرژر مغل بابر د دولت خان او ده زوی (غازیخان) په دې فکر خبر شو چه دوی د مغلو په پاچهی خوښ نه دی نو ئې دواړه بند یان کړل، چه بابر (نوښارې) ته ورسید دوی ئې دواړه خوشې کړل او بیرته ئې بوالحی (سلطان پور) په جاگیر کښې ور کړ- دولت خان چه ایله شو کډې ئې د پنجاب غرو ته وخیژولی په دغو وختو کښې بابر مغل کابل ته تللی ؤ - ده د سلطان ابراهیم اکا عالم شاه (سلطان علاوالدین) د خان مل کړ او پر دهلی ئې لښکرې وروستلی مگر ماته ئې په نصیت شوه خو په ۹۳۲ھ کښې چه بابر پر هندوستان برید کاوه بیا دولت خان د راوی د سین پر څنډه (۴۰) زره لښکر پر ځان راغونډ کړی ؤ د بابر له لښکرو څخه په (ملوټ) کښې کلابند شو نو خوور ځو کلابندی وروسته ئې امان وغوښت مغلو ده غبرگی توري به غاړه ور ځړولی او په خور اسپکه ور ځ ئې د بابر دربار ته ورووست ځکه چه بابر ته د سلامی له پاره نه پر گونډو کېده مغلو نر ښت و نیوا وپه زور ئې پر گونډو سلامی به و کړه او به دې نو که ئې د خپلې کرهنی حاصل واخستل خوور ځی پس ملوټ کلا ته د بند له پاره د بیولو په لاره کښې له دېره کر و مه پسه نېرشو (۱) دی پوه شه - ور شا عر او عالم ؤ (۲) څلور زامن ئې پاته شول.

## ۱ـ غازی خان لودی:

غازی خان خورا پیاوړی پوه ار منلی عالم وه په شعر خوراښه پوهید، ده خو را لویه او نفیسه کتابخانه در لوده، په ۹۳۲ھ کال چه په (ملوټ) کښې بابر مغل ته په لاس ورغله بابر د کلا تر نیولو په هغه کتابخانه ډیر خوښ شو (۳) پلار ئې چه د سلطان ابراهیم له لاسه په بلو څو ننوتی ؤ دی هم ورسره ؤ

په ۹۳۰ھ کال کښې چه بابر لار هور ځاو (دیپالپور) ونیو دی د پلار او

مغلو بندیان کړل بابر چه (نوښارې) ته ستون شو دی او پلارې ئې خو شی کړل دوی غرو ته وختل او د بابر تر تښتېدلو وروسته ئې خپل کشرور ورغدار دلاورخان و نیو په زندان کښې ئې واچا وه او دیپالپور ئې له سلطان علا والدین څخه واخیست بیائې چه سلطان علاوالدین دغازي خان کړ لښکري ئې د دهلی نیولو ته ولیږلې خو ناکام شو

بیائې لښکرې پر (کلانور) چه دمغلو په لاس کښې وه ورو بهولې محمد علی خنګ جنګ مغل لاهور ته ځغلی وتښتېدده (کلانور) و نیو او به (بیرسرور) کښې ئې وارول - په ۹۳۲ ھ کال چه بابر مغل بیا پر هندوستان برید وکا دولت خان پلار او علیخان ورور ئې د (ملوټ) په کلا کښې کلا بند شول او غازي خان پخپله غرو ته وختوت له هغه ځایه دهلی ته ولاړ او د سلطان ابراهیم مل شو په دغه کال د سلطان ابراهیم او بابر مغل په جنګ کښې وواژه شو (۱)

## ۲ـ علیخان لودی:

علیخان د دولت خان مشر زوی دی دپلار له خوا د (بهیرې) حاکم ؤ (۲) په تولو جنګو کښې دپلار سره ؤ- په ۹۳۲ ھ کال چه پلار ئې د ملوټ پهٔ کلا کښې ونیول شو ' دی هم ور سره ؤ او دده مشر زوی اسمعیل خان هم دبابر له خوا ورسره بندی کړ شو (۳).

## ۳ـ حاجی خان:

ددولت خان کشر زوی ؤ په ۹۳۱ ھ کال چه سلطان علا ؤالدین لودی پر دهلي بریدو کاوه دی ور سره مل ؤ (٤)

## ٤ـ ناسیپاله دلاور خان ((دملغوخانخانان)):

دلاور خــان ددولــت خــان زوی دی پـــه ۹۲۷ ھ کـــال چـــه

آ کړي ته وغوښت - دولت خان پخپله ورته نه غی - دغه دلاورخان زوی ئې ورو لېږه دلاورخان هلته څلور میاشتې بندی کړ شو (۱) چه بیرته پنجاب ته ونښتېد پلار ئې سلطان ابراهیم ته پور ته کړ. په ۹۳۰ ه کال چه ئې پلار او درونه‌و دمغل بابر ورائی ته په پټه ملاوترله، دغه نامسیا له دلاور خان ئې بابر مغل ته چغلی وکړه مغل بابرئې پلار اوغازی خان ور ور بند یان کړل اوده ته ئې ددې چغلی په صله کښې د(خا نخا نان ) لقب ور کړ، بابر چه کابل ته ستون شو پلار او ورو نه‌و ونیوبه زندان کښې ئې واچاوه د۹۳۱ه کال په سر کښې له زندانه‌و ونښتېد اوبه لاهور کښې ئې مغلي امراؤ ته پناه ور وړه اوبیائې له لاهوره څخه دسلطان علاؤالدین لودی سره دسلطان ابراهیم جنګ لره دهلي ته وخوځېد هلته ئې هم ماته په بیځه شوه په ۹۳۲ ه کال چه بابره (ملوټ) کلاونیوله او دده پلار وروراو خپلوان ئې ټول بندیان کړل ده خان ور تــه راور ساره بابر ونازاوه اوبیائر مــر ګــه دبابر مغل تینګ ملاتړؤ - په ۹۳۳ه کال چه بابر درانا سنګا او سلطا ن محمود لودی سره په بیا نه کښې جنګېد ه هم د ی ورسر ه مل ؤ .( ۲)

دشېرخان (سوري شېرشاه) سره چه همایون جنګېد ه‌م ئې ( خان خانان دلا ورخان، کلك ملګری ؤ او تل به ئې همایون مغل ته ویل چه له شېر خان څخه به نه بیغمه کېږي(۳) په ۹٤٥ه کال چه همایون پر بنګال لښکري ورو بهولي، دلاورخان ته ئې (مونګیر) حکومت ور کړ سوری شېرخان خیل بوامیرخواص خان تدخه لښکری ور کړي اوبر(مونګیر) ئې دبربد له یاره‌و ګماره، خواص خان دمونګیر بر کلاورغی کلائې ونیوله اودلاورخان ئې بندی شیرخان ته راووست شېرخان به (مونګیر ) کښې بندی وساته اوبو یا واوربشي ئې دورځې خوا‌ده‌ور ته مقرر کړل (٤)

دپښتو امیرانو په سلاد قومی غداری په ګناه زواژه(۱) او دادپښتنو دپېټاو
پېغور نخښو کې دخاورو په غېږ ورو ستله .

## ۲۱ـ جلال خان لودی:

دمحمود خان لودی ځوی جلال خان دسلطان سکندر په وختو کښې د( کالپی)
حاکم ؤ(۲) په ۹۱۲ ھ کال ئې د( کالپي حکومت) څخنې واخیست.

## ۲۲ـ شیر خان لودی:

غالباً چه دشاهین خان زوی او د ملك فیروز لمسیدی چه په ۹۱۰ ھ کال مړ
دی دسلطان سکندر په وختو کښې دا تاوي حاکم ؤ(۳)

## ۲۳ـ عالم خان لودی:

دمیوات حاکم ؤ.

## ۲٤ـ احمد خان لودی:

دمبارك خان لودي زوی دی دلکهنوتی حاکم ؤ په ۹۱۵ ھ کال سلطان ته خبر
راورسید چه احمد خان له کفاروسره ډیر کښیني ولاړ یږی او نژ دې دی دچه
له اسلامه و ګرزی سلطان دده کشرورور(محمد خان)و ګما ره چه بندی ئې
اکري ته راواستوی(٤)

## ۲۵ـ کبیر خان لودی:

## ۲٦ـ اعظم خان شروانی:

## ۲۷ـ بابو خان شروانی:

په ۹۰٤ ھ کال کښې دشهزاده فتح خان دیورته کولو په ګناه فرار

(۹۱۰هـ) کال چه سلطان پر کو الیار برید وکړه گوا لیاریا چا له خپلې پاچهۍ و پوست .

## (۲۸)-حسین خان پر ملی :

د سلطان سکندر په وختو کښې د(سهارن)حاکم ؤ په(۹۲۱هـ) کال د سلطان خواورته بده شوه حاجی سارنګ ئې (سهارن)ته وروليږه چه لښکرې ئې خپلې خوانه راوا روی اودی بندی اګرې نه راوا ستوی حسین خبرشو دغو تنو ملو سره بنګال ته وتښتېدا و سلطان علاوالدین ته ئې پناه ورووړه که څه هم دسلطان سکندر او سلطان علاوالدین ترمنځ په(۹۰۱هـ) کال تړون شوی ؤچه يود بل مخا لفینو ته به پناه نه سرهوړ کوی مګر سلطان سکندر هيځ ونه ویل او خان ئې نا خبره واچا وه .

## (۲۹)-اصغر خان:

دقوام الملک زوی اصغر خان دسلطان سکندر په وختو کښې ددهلی حا کم ؤ(په۹۰۷هـ) کال د مؤک خوړ لو په ګناه بندی کړ شو .

## ۱۲-مبارک خان موجی خیل لودی: (۱)

دسلطان سکندر په وختو کښې د(را پری ) حا کم ؤبيائې د باربکشاه ترنیولو وروسته دجونپور حا کم مقرر کړيه (۹۰٤هـ) کا ل ئې دما لی خیا نت په ګناه بندی کړ .

## (۳۱)-نصیر خان لوا نی:

دسلطان سکندر له لوری امر اؤ څخه ؤ د(غازی پور ) حکو مت ئې درلـود شل

نهضـت کـښی دی مړ ؤ ما ینـې ئې (٦٠) منه طلاوی شیر شاه ته ور کړی (١)

(۳۲) ـعمـاد خـان پر ملی: دخان خـــانان پرملې زوی ؤ (۲)

(۳۳)ـاقبال خان :

دبارې حا کم ؤ .

(۳٤)ـ ابراهیم خان شروانی:

دمسند عالی عمر خان شروانی زوی ؤ ' دتا تار خان او سلطان سکندر

په جنګ ئې ښې توری ووهلی :

(۳٥ ـبابر خان شروانی:

(۳٦) ـمحمد شه لودی :

په ۹۰٤ ھ کال کښې دشهزاده فتح خان لودی دپو ر ته کو لو په جرم

له ملکه فرار کړ شو .

(۳۷)ـتاتار پر ملی:

په ٤۰۹ ھ کال دشهزاده فتح خان لودی دپور ته کو او په جزم له ملکه فرار کړ شو.

(۳۸)ـشیخ زاده محمد پر ملی :

دعماد خان پرملی زوی او دپرملی خان خانان لمسی ؤ .

(۳۹)ـشیخ احمد پر ملی :

# دسلطان سکندر ددربار خاص

## حاجبان

۱ ـ میاچمن کنبوه :

په ۹۱۳ هـ کال دمجاهدخان سره دلاس درلو دلو په گناه بندی شو (۱)

۲ ـ قاضی مجدالدین :

په ۹۲۳ هـ کال سلطان ابراهیم دشهزاده جلال خان راوستلو ته وگماره ·

۳ ـ شیخ ابراهیم :

په ۹۱۲ هـ کال خاص حاجب وټاکه شو (۲) .

٤ ـ شیخ عمر :

٥ ـ قاضی عبدالواحد چه دکابلی شیخ طاهرزوی ؤ · دتهانیسیر په کلی کنبې اوسېد په ۹۱۲ هـ کال چه سلطان ه(او دیت نگر) غزاته ته، پرلاری ئې په (دهولپور) کنبې خپل خاص حاجب وټاکه . (۳)

٦ ـ شیخ عثمان:

۷ ـ شیخ صدیق :

۸ ـ سعید :

په ۹۲۳ هـ کال سلطان ابراهیم دشهزاده جلال خان راوستلو ته وگماره·

۹ ـ مقبل (٤)

## دسلطان سکندر دوختو مصنفین (٥)

۱ ـ شیخ جمالی کنبوه (رح) :

فضل الله خان چه په خلقو کنبې په (درویش) او شا ر ؤ ·دشیخ جمالی پلا ر ؤ پخپله د شیخ جما لی ا صلی نو م ( حا مد جما ل خا ن ) د ی · د د ه روز نه دخپل پلار تر سیوری لاندی شوې ده چه مېرانیواهه په مروجو

علمو کښې وتلی ملا ـ لمړی ئې تخلص ( جلالی ) ؤ ـ بیا ئې دخپل پیر ، ماما او خسر (شیخ سماء الدین سهروردی رحمته الله علیه) په غوښتنه خپل تخلص (جمالی) کړ ، په شاعری کښې ئې غوره مقام لاره او په قصید و او غزلو کښې ئې په هند کښې دخپل وخت ساری نه ؤ خلقو دو هم امیر خسرو با له دهرات مولانا جامی هم په درنه سترگه ورته کتل شیخ جمالی بو آزاده. فقیر مشر به ، عالم ؤ ، دعمر ډیر کلونه ئې دحرمینو ، شام ، روم ، عراق ، یمن ، فارس ، هرات او سراندیپ په سیاحت کښې تیر کړی دی .

په (سیر العارفین) کښې ئې لیکلی دی : « زه چه هرات ته ورغلم دمولانا جامی کره او سید لم او د ملا حسین واعظ کاشفی سره می هم لیدنی وکړې »

شیخ جمالی دسلطان سکندر علمی مصاحب او استاذ ؤ او دسلطان سکندر سره ئې هیڅه او اختلاط لکه څرنگه چه پهلاندنی شعر کښې وایی پر دنیاوی اغراضو بنا نه ؤ .

میانهٔ من و تو دوستی برای خداست نه از برای متاع زمانهٔ غدار

دسلطان ترمړینې وروسته ئې پر سوز ه مرثی بسی ویلی دی(۱) دسلطان ابراهم لودی په وختو کښې ئې هم هغه دسلطان سکندر دوختو قدر ؤ(۲) دبابر مغل او همایون په دربار کښې هم په درنه سترگه ورته کتل کیدل ، بابر مغل شیخ ته ددغې قصیدې:

شاه دشمن کش ظهیر الدین بابر آنکه او
لشکر بنگاله راز الغار کابل بشکند

خورا درنه صله ورکړه ، همایون هم د ده خبرو ته غوږ نیوه او دیرئی لیده دده زامنو (عبدالحی حیاتی) ـ او (عبدالوهاب یا عبدالصمد گدائی ، هم دخپلو وختو

ديرى درنې قصيدې ارى(۱)اود شير شاه مصاحب ؤ شيخ جمالى په ۹۴۲ ه کال
ومړ او په دهلى کښې دحضرت قطب الدين بختيار کاکى (ر ح) دهديرې
شمالى پلو ته تقريباً زر گامه لرى ښخ کړ شو هديره ئې مشهوره ده (۲)
دده دا اثار پاته دى(۱)سير العارفين-دستانه ؤتذ کره ده (۲).مهروماه يو پارسو
مثنوى دى(۳)دده ديوان

## دوينانمونه ئې :

| | |
|---|---|
| موسى زهوش رفت بيك پرتو صفات | توعين ذات مينگرى در تبسمى |
| همى با شد افغا ن ز اهل دنيا ز | نمازى وغا زى و مهما ن نواز |
| خدا دا د شا ن فقر و شا هى بهم | کزين هردو صفت مباهى بهم (۳) |

هغه وخت چه د سلطان ابراهيم لودى او پښتنو امراؤ په منځ کښى شخړ ى
وى ده د سلطان سکندر په يوه مرثيه کښى داموضوع داسى را وړى ده:

| | |
|---|---|
| اى سليمان زمان آه کجايى اخر؟ | تا کنم پيش تو از فتنه ديوان فرياد |

وايى يوه وزير د مولانا دابيت سلطان ابراهيم ته ورساؤ خو سلطان غوږ پر ونه
نيو او مولانا ته ئى په هغه درنه سترگه کتل (۴)

## ۲- مجدالدين بابر :

د سلطا ن سکندر دوختو له شعراؤ څخه دى بشپړ حال ئى څر گند نه دى
دومره خبر يو چه دخوار زمشاهيانو يوه مفصله منظومه شهنامه ئى ليکلې ده
دار باعى دده ده:

(۱) مخزن افغان قلمى ۱۹۲ مخ شيخ حيا نى په ۹۵۹ ه کال ومړ او د پلار په هديره کښې
ښخ شو اوشيخ گدائى په ۹۷۷ ه کال ومړ منتخب التواريخ ۱۱۹ مخ

در پیش تو گر بگریم دلدارم　　تا ظن نبری که از تو آزارم
خطتوکه دوده آتش نیکو بی است　　درچشم من آمداز آن می بارم

### ۳-برهمن:

دسلطان سکندر دوختو دپاړسو ژبې هندو شاعر دی (برهمن) ئې تخلص دی او نوم ئې څینو (دونگرمل) لیکلی دی دا مطلع دده ده:

دل خون نشدی چشم تو خنجر نشدی گر
ره گم نشدی ز لف تو ابتر نشدی گر

### ٤-شیخ عبدالله تلنبی:

دعثمانی شیخ الهداد زوی به عقلی او نقلی علمو کښې دخپلې زمانې خورا وتلی او منلی عالم ؤ ده لمړی دملتان به شاؤ خوا (تلنبه) کښې درس کاوه بیا دسلطان سکندر په وختو کښې دهلی ته ولاړ او هلته ئې معقول علوم رانږه کړل-

تر ده پخوا په هند کښې یوازې دسید محمد همدانی شرح شمسیه او شرح صحایف لوستل کیدل ده دمعقولو علومو په درسی سلسله کښې دیر نور کتابونه هم مروج کړل او (بدیع المیزان) ئې چه په منطق کښې یو مشهور کتاب دی ولیکه څلویښت تنه نامتو ملایان لکه میاالوړن دانشمند (۱) دهلوی جمال خان ، میاشیخ بدایونی سید جلال له ده څخه پور ته شوی دی په ۹۲۲ه کال ومړ ، شرح میزان منطق هم دده له تالیفاتو څخه دی (۲)

### ۵-شاه جلال شیرازی:

دشیخ محمد نور بخش مرید ؤ دسلطان سکندر په وختو کښې دهلی ته ورغی او هلته میشت شو.

در گلشن راز )شرحه دده له اثارو څخه ده په ۹٤٤ه کال ومړ.

## ٦-شیخ رزق الله:

دډهلی دمشهور محدث(شیخ عبدالحق)اکادی دشیخ ملاوه چه په مصباح العاشقین مشهور دی مریدؤ دده دزو کړی نېټه ۸۹٦ه کال دی (۱)

شیخ رزق الله دخپلو وختو خورا پیاوړی ملا او منلی عارف ؤ ښه طبعه ئې درلوده په پارسو او هندی ژبوئې اشعار ویل ، په پارسو کښې (مشتاقی) او په هندی کښې ئې ( راجق) تخلص ؤ ، شیخ په ۹۸۹ ه کال ومړ (۲)

په هندی ژبه کښې ئې دوې رسالې د(جوت نرنجن)او (بیم آ ین) په نامه خورا مشهورې دی.

## (۷)-شیخ سید حاجی عبدالوهاب بخاری:

دسیدجلال بخاری لمسی دپلار نوم ئی ( سیداحمد ) او مشهور مخدوم (جهانیان)ئې اکادی لمړی په ملتان کښې دخپل خسرشیخ صدرالدین بخاری شاګرداومرید ؤ ترحج وروسته ډهلی ته ولاړ هلته ئې دسلطان سکندر داخښې (شاه عبدالله تربشی )لاس ونیو - سلطان سکندر خورا ښه عقیده ورته درلوده او په ډېره درنه ستر ګه ئې ورته کتله ، شیخ په ۹۳۲ ه کال ومړاو په ډهلی کښې ښخ کړ شو ( ۳ ) دده په اثارو کښې یو(تفسیر) څرګند دی - شاه ابوالغیث بخاری رح دده زوی دی.

## ۸-شیخ حسن کابلی: (٤)

شیخ حسن د ګرد بزی سید شهاب الدین دلمسی (راجی حامد شاه) مرید ؤ(٥)

ولاړئې شیخ طاهر له ملتانه ښار ته تللی او هلته میشت شوی ؤ ، شیخ حسن

په بهار کښې وزیږید' لهور کښو به څخه دعلم څوب ورسره ؤ ' سلطان سکندر لهجوانپوره څخه اکړي نه وغوښت له هغه لخوا به بیا دهلی ته ولاړ او دسلطان محمد تغلق د کلا په (بجي منډل) برج کښې ئې واړول د ۹۰۹ هـ کال دلمرید خور په میاشت هلته ومړ.

شیخ حسن په سلوك او توحید کښې دېرې رسالې لیکلی دی چه (مفتاح الفیض) ئې خورا شهرت لری.

## (۹)-میابهوا:

میابهوا دسلطان سکندر دوختو دعدلي وزیر ؤ دده بشپړ حال دسلطان دامراؤ په لړ کښې لیکلی شوی دی.

هلته ئې نس د (طب سکندری) یا (معدن الشفاء سکندر شاهی) دمؤلف په حیث (چه په ۹۰۸ هـ کال کښې ئې تالیف کړی دی) نوم راوړو.

## (۱۰)- محمد ضیایی:

مولانا محمد دشیخ ضیا یی زوی دی دمولانا سعید الدین شاگرد ؤ په ۹۱٦ هـ کال دافغانو یو فرهنگ د (فرهنگ سکندری) یا (تحفته السعادت) په نامه لیکلی دی ' شعری قریحه ئې هم لرله (۱)

## (۱۱)-شیخ جمال خان دهلوی:

شیخ نصیر الدین زوی دمیالاوڼ دانشمند ورور ؤ دمشهور ملا عبدالله تلنبی خورا پیاوړی شاگرداو په عقلی ونقلی علومو کښې وتلی عالم او دخپل وخت اعلم العلماء ؤ شرح عضدی ' شرح مفتاح او شرح اثار الفقه ئې تصانیف دی (۲) په ۹۸٤ هـ کال دځوانۍ کالو په عمر ومړ



دنوی دهلی په(لودی ټومب) کښې،
دشاهو خېلو لودیو دپاچاهی کورنی د ورو غړو هدیره



لودي مسجد

چه دنوي دهلي دلودي قوم دلويې گومبټي (براګنبد) مخې ته دلودي پاچها و په زمانه کښې جوړ شوی دی



(داودی مسجد) منحنی شکل (طاق)

## (۱۲)-شیخ عزیز الله تلنبی :

دخپل وخت خورا متبحراو منلی عالم ؤ ، دسلطان سکندر په وختو کښې له ملتانه څخه سنبهل ته ولاړ هلته پسې واوسید دېر خلقو علمی فیوضات تری یوو ړل ذکائي، مشهوره وه ، په ۹۷۵ ه کال ومړ رسا له عینیه دده له اثارو څخه ده چه دشیخ امان پانی پتی د(غیر یه)رسالې په ځواب کښې ئې لیکلې ده(۱)

## دلودیو پاچاهی هدیره

## (LODHI TOMB)

دنوی دهلی دروښیدن روډ ترڅنګ دشاهو خیلو لودیو پاچاهی هدیره پرته ده په دې هدیره کښې دری لویی او سره یوالی له توروډبرو ودانی شوی ګنبدی ولاړی دی چه په یوه کښې ئې سلطان سکندر لودی او په بله کښې د شاهو خیلو لودیو د پاچاهی کورنوړ غړو دتل له پاره سرونه ایښی دی یوه بله ګنبده چه اوس په برا ګنبد(لویه ګنبته) مشهوره ده تشه توره ولاړه وه خیال کیاوه شی چه دا ګنبده سلطان ابراهیم لودی ځان لره ودانه کړې وه مګر ځکه چه په پانی پت کښې دجنګ پر میدان ورواژه شو فاتحو مغلو هلته خاورونه وسپاره اوخپله جوړه کړی ګنبده ئی په نصیب نه شوه په دهلی کښې د لودیو دغه پاچاهی هدیره په(لودی ګاړډن) یا(لودی تومب) مشهوره ده په دغه باغ یا هدیره کښې دصفدر جنګ د هدیرې پر مخامخ دخضر خان دزوی سلطان مبارك شاه (٨٢٤-٨٣٧) هدیره هم شته چه سلطان محمد شاه(٨٣٨-٨٤٧)ئی هم ترڅنګ ښخ دی.

## لودی کالونی

## LODHI COLONY

## لودهیانه:

په پنجاب کښې د جالندهر او سرهند تر منځ یو ښار بروت دی چه (لودهیانه) نو میږی.

د شوکت افغان مؤلف لیکلی: چه دا ښار په ٨٤٤هـ — ١٦٢٠ع کال دوو ننو لودیو سردارانو چه یو (نهنګ) او بل (یوسف) نومید ودان کړی دی ځکه نو دلودیانو په ښار مشهور شو چه وروورو (لودانه شهر) (لودهانه) او (لودهیانه) شوی دی (١)

# سلطان ابراهیم

(٩٢٣-٩٣٢هـ)

«دده په مړینه په هندوستان کښې د پښتنو د ٣٢ کلنی پله پوری باچهی کمبله تو له شوه» (دهند صلابی تاریخ)

سلطان سکندر چه د ٩٢٣ هـ کال ذمیانی ردمیاشتی پر اوومه یدا کړه کښې ومړ په ښېږو زامنو کښې ئې دوه سره سکنیوورو نه (شهزاده ابراهیم او شهزاده جلال خان) دباچهی له پاره لیڅی سره راوغښتلی د پښتنا نه دولت امیران سلا ته سره کښېنستل او فیصله ئې وکړه چه: «د سلطان تر ټولو مشر او په توره ځیر کی او ښو اخلاقو منلی زوی (شهزاده ابراهیم) دې د دهلی پاچاشی او دده د پاچهی ټك (سرحد) به د جونپور تر شاوخوا پوری وی او دجونپور پاچهی دی (شهزاده جلال خان) ته وسپارله شی د هیواد دلمر ختیزو سیمو واك به تر لکهنوتی پوری دده وی»

دځینو امیرانو سره دجونپور اورته له کالپی (۱) بااکري (۲) څخه وخوځید
اوداعظم همایون زوی (فتح خان) ئي سره ددي چه دهیواددویش مخالف ؤله
ځانه سره دوز،ر په حیث بوت هلته ئي خپلواك حکومت جوړکړ (۳) مګر
خطبه او سکه ئي دډهلي دپاچا (سلطان ابراهیم) په نامه وه (٤)

## دوږونو بند

سلطان ابراهیم ددی له یاره چه دبغاوت مخه ونیوله شي نو هرڅه دمخه
خپل څلورسره میریزی وروته محمودخان، اسمعیل خان حسن خان او
شهزاده اعظم همایون نظر بند کړل (٥) دهانسی کلا ته ئي ولیږل او هر یوه
ته ئي دوی دوی ښځی او دږوندنول مایحتاج ورسره ورکړل (٦)

## دهیواد دویش مخالفت

که څه هم دهیواد وېش دامیرانو په سلا او دشهزاده ګانو په خوښی
وشو خو بیا هم ځینی پوه او دور اندیشه پښتانه امیران ددی ویش کلك
مخالف وو او دوی پوهېدل چه په یوه ملك کښی دوه پاچهان نه سره چلیږی
څلور میاشتی (۷) ورو سته چه درایری حاکم او دی (۸) یا اوانی (۹) خانجهان
له راپری څخه دسلطان ابراهیم دربارته راغی د هیواد دویش مخالفت په خورا
شدت څرګند شو اودویش مخالف امیران له هری خوا پرراغونډ شول، خان جهان
یوه ورځ د پاچا په مخ کښی دویش سلاور کونکي امیران خورا و غندل او

---

(۱) تاریخ فرشته لمړی جلد ۱۸۸ مخ
(۲) مرقع افغان ۱٦۹ مخ
(۳) تاریخ فرشته لمړی جلد ۱۸۸ مخ
(٤) تا ریخ فرشته لمړی جلد ۱۸۹ مخ
(٥) مرقع افغان ۱۷۰ مخ

پاچا ته ئې وویل: «دپا چاهی هیواد وېش تیر وتنه او د هغه منلې ناپو هی وه باید پوه شی چه پاچهی په گېډه نشی او په یوه نیکې کېنې غبر کې تور ی نه ځائیږی (۱) دخدا ئ جهان دی وېنا پخپله پاچا او د دربار نور امیران خپلو تیروتنو ته ملتفت کړه سلا پر دی شوه باید او س چه لا شهزاده جلال خان قوت نه دی موندلی په لاس ئې راولواو به دې تو گه دراتلونکو ناوړو پېښو مخه و نیسو مگر دا کار هم دهاکو لو بی نه وی، سلطان ابراهیم دهیبت خان په لاس (شهزاده جلال خان) ته یو خور اله مینې ډک لیک ورولیږه او ور ته وئې لیکل:

«دلته یوه خوراضروری سلا در سره کېږی هر څومره ژر چه ځان راورسوی ښه به وی»

او هیبت خان ئې وگماره، په هرچل چه کیږی شهزاده جلال خان به ترډهلی پورې بو پلار اولې مگر شهزاده جلال خان چه د غو چا لو نه پخوالا ملتفت ؤ د هیبت خان په غوږ مالیوا و د سلطان ابراهیم په پا سقه لیک تېر نه ووت او د ډهلی له ورتګ څخه ئې معافی وغوښتله هیبت خان دشهزاد ه جلال خان ځواب او نته د سلطان ابرا هیم دربا رته وایکله سلطا ن ابراهیم دبلې پلا له پاره دشیخ سعید پرملی زوی (میا محمود)، دملك علاؤالدین جلوانی زوی (ملك اسمعیل) قاضی مجدالدین حاجب او سعید حاجب ورولیږل مگر د وی هم ونه کړای شوای چه شهزاده جلال خان دډهلی په راتګ راضی کړی (۲)

## دامیرانو پورته کول

سلطان ابراهیم چه شهزاده جلال خان په راغوښتلو کېنې نا کام شو، نوئې دخپلو امیرانو په سلا دحو نیو راولیږ ختمیز و سیمو د خانانو او امیرانو په لمسون لاس

سپاره لرل خورا درانه خلاتونه، وښلي آسونه، زرین موټي توري او ښاونه ور وابښل، نورو جاګیردارانو او امیرانو ته ئې هم ولیکل چه دشهزاده جلال خان حکم ته غاړه نه ږدي او سلام ته به ئې نه ورځي (۱)

## دتخت ته ختلو جشن

د۹۲۳ ه کال دلوی اختر د میاشتې پر ینځلسمه د جمعې په ورځ سلطان ابراهیم پر پلار تخت چه په خورا درنو جواهرانو او مرغلرو پسللی شوی و کښېنوست، عام دربار ئې وکړ، د دربار امیرانو ته ئې ور منصبونه جاګیرونه او خطابات ورکړل او هر یوه ته ئې زرین موټي توري، آسونه او پیلان وروبخښل، د پرې خزانې ئې پر بېوزلو او محتاجانو وویشلې ټول رعیت ته ئې د درو کالو خراج وروبخښه، بندیان ئې خوشې کړل، او دقندهار او کسې غره پښتنو مشرانو مکې معظمې او مدینې منورې ته ئې د بابل خان او علیزی دلاورخان په لاس خورا درانه سوغاتونه ولیږل (۲)

سلطان ابراهیم د پلار او نیکه دود واړاوه، امیران ئې وګمارل چه په دربار کښې به لاس پرنامه ولاړ وي. له خپلوانو سره ئې هم کرار کرار د خپلوۍ سلوك پرېښود او دا به ئې ویل:

د پاچاهان قام او خپلوان نه لري ټول د پاچاهۍ نوکران دي باید د نوکرانو په شان چوپړ ووهي او یوځای ته ځان ورسوي»

د سلطان بهلول او سلطان سکندر د وخت و درانه امیران چه هیڅکله به هم په دربار کښې نه وو درېدلي، دده په دربار کښې به لاس پرنامه ولاړ وو، د سلطان ابراهیم دغه سلوك ورو ورو د پښتنو امیرانو په زړو کښې څه خیرې پیدا کړلې او درانه امیران به زړه کښې ځني خوابدي شول (۳)

## دشهزاده جلال خان پورته کېدل (٤)

اميران ده نه لمسوی، او هر وخت ئې سوغاتونه او ډېر مالونه دغو اميرانو ته وارسی. دمخالفت نغاره ئې په ښکاره وډنګوله او په جونپور (۱) يا کالپي (۲) کښې د(سلطان جلال الدين) په نامه دپاچهۍ تاج پر کګرۍ کښېښود، خطبه او سکه ئې پر خپل نامه کړه، خپل ملګرو اميرانو ئې و نازول خلاتونه، توري، اسان، پيلان، منصبونه او خطابات ئې ور کړل، جاګيرداران ئې دا ډه کړل دخپلو سيمو د غريبانو او بېوزلو پر مخ ئې دخزانو ورونه وپرانيستل دلښکر و نظم او ترتيب ته ئې لېښکی را وغښتلې. ځکه دی پوهېد چه سلطان ابراهيم هر ومرو پر ده بريد کوی (۳)

## د((کالنجر))بريداو داعظم همايون اوښتل:

د(بندهيلکنډ) په سيمه کښې د(کالنجر) کلا خورا پخه او ټينګه کلا وه سلطان ابراهيم خپلو څه لښکرو د(کړې) دحاکم شروانی (٤) اعظم همايون تر مشر تابه لاندې دهغې کلانيولو ته ور ګمارلی - اعظم همايون ولاړ (کالنجر) ئې کلابند کړ،

سلطان جلال الدين چه په دغو وختو کښې د خپلو لښکرو په تنظيم څه داده شوی ؤ د سلطان ابراهيم دمخورو اميرانو لمسون ته ئې توجه وکړه او زيار ئې يوست چه هغوی په يو چم دځان کړی په دغه لړ کښې ئې اعظم همايون ته چه کالنجر ئې کلابند کړی ؤ- ستائی ولېږل او ورته وئې ليکل:

«ته زما دپلار او اکا پرځای ئې - تا ته ښکاره ده چه زما څه ګناه نشته سلطان ابراهيم خپل منلی تړون مات کړ او داميرانو وېش ئې و نه مانه، دپلار په ملک کښې چه څه لږه سيمه ده ما ره دميراث په تو که ومنله پر هغه ئې هم ستر ګی

تو ته یاید د (حق) یرخوا شي او د مظلوم مرسته و کړي!» (۱) اعظم همایون چه پخوا الا د سلطان ابراهیم له وضعیته څخه څه مانېدلي ؤ . د سلطان جلال الدین د ګېږي غاړي پیغام او بیکسه اغیزه یري و کړه، د کالنجر کلا بندی ئي پرېښوده او د لښکرو سره سلطان جلال الدین لودی ته ورغی.

## د ((اوده)) نیول

اعظم همایون چه له خپلو لښکرو سره (سلطان جلال الدین) ته ورغی سلائي پردې شوه چه لومړی به د جونپور او شرقي سیمو امیران ایلوی، ځکه ئي نو تر ټولو د مخه پر (اوده) برید و کړ، د (اوده) د یوې سیمې (۲) حاکم سعید خان په ځان کښې د (سلطان جلال الدین) د لښکرو د مقابلې توان نه لید - ځکه ئي نو (اوده) پرېښود او لکهنوتی (۳) یا لکهنو (٤) ته ولاړ، له هغه ځایه څخه سلطان ابراهیم ته ټول حال ولیږه .

## د سلطان ابراهیم برید (۵)

د مولوی ابرار حسین په قول د سلطان سکندر ره مړینې دریم کال پر تېرېد و ؤ چه د سکندري وروڼو ترمنځ د جنګ لمبې پورته شوې او دلو دی پاچهي د زوال لمرې خښتې کېښېښو وله شوه.

د (اوده) د حاکم حال چه سلطان ابراهیم ته راورسېد، سمد ستي د یوه کړندي او درانه فوځ سره دلوی اختر د میاشتې پر ۲٤ د پنجشنبې په ورځ .د جونپور لورته وخوځېد، د (بهو ګاون) له لاري چه قنوج ته ورسېد، اعظم همایون اوزوی

---

(۱) مرقع افغان ۱۷۳ مخ د تاریخ داؤدی د ۷۹ مخ په حواله

ئې(فتح خان ) چه د سلطان جلال الدین وزیر ؤ دده خواته راو او ښتل ـ سلطان ابراهیم چه ئې په راتګ خبر شو٬ نول امیران ئې مخې ته ور وا ستل په خورادرناوی ئې دربارته راوستل ډېرئې ونازول . سلطان لا په قنوج کښې اوولیؤ چه داؤده او ګوبد کهپورحا کمان شیخ محمد پرملی او سعیدخان هم ورته راغلل او د سنبهل حاکم (ملك قاسم) هم چه د(چرنولی) دسیمې دمشهور زمیندار (جی چند) (۱ څېلو لره نللی ؤ ترسوبې وروسته په قنوج کښې ځان دسلطان ابراهیم لښکروته راورساوه(۲) .

## د((کالپي))نیول

له سلطان جلال الدین څخه چه اعظم همایون او فتح خان وزیرئې واوښتل د ه ځان د( کالپی ) کلانه ورساوه سلطان ابراهیم له قنوج څخه در ئې لښکرې چه ۳۰ زروته رسېدلې دلودی اعظم همایون٬ شروانی اعظم همایون او لوانی نصیرخان ترمشرتا به لاندې دې ورولېږدولې٬ سلطان جلال الدین چه په ځان کښې دېخ پر تندې مقابلې وس نه لید خپل او د قطب خان لودی کهول ئې په کالپې کښې پرېښود٬ د( کالپی )ساتنه ئې ملك بدرالدین٬ عمادالملك او دلودی قطب خان کوندې ته وسپارله پخپله ئې د دیرشو زرو سپرو او څوغوره پیلانو سره داګری نیوا او ته مخ ونیو٬ د سلطان ابراهیم را استولی لښکری ( کالپی ) ته را ورسیدلې د کالپی ښار ئې ترڅو ورځو کلابندی وروسته ونیو٬ ډېرجنګی بندیان او ډېری ولجې په لاس ورغلې٬ ښار ئې ولوټه .

## د((سلطان جلال الدین)) وسیله اینوول

تر مشر تابه‌لاندې له (۲۲) نورو اميرانو سره (۱) اګرې ته ولېږداوه، سلطان جلال الدين لاد (کاڼپې) په بدله کښې (اګره) نه‌وه لوتلې چه ملک ادم ورور سيد او دا ګرې په ښارنووت، سلطان جلال الدين چه‌ورور سيد (۲) ځکه چه دملک ادم سره دومره لښکر نه‌ؤ چه په دا ګه دسلطان جلال الدين جنګ ته تګر ونيسي نو ئې په‌پسته ژبه سلطان جلال الدين خوورځې د اګرې له‌تالااود يا پتخت دخلکو له‌وژلو او ځپلو څخه راوګرزاوه.

څو ورځې وروسته چه دسلطان ابراهيم بولوې لښکر دجلوانې علاء الدين دزوې ملک اسمعيل لودې، کبيرخان اولواني بالودې بهادرخان تر مشر تابه لاندې پسې ورورسيد ملک ادم داده شوا وسلطان جلال الدين ته ئې حال ورکړ چه:

«که د پاچهي خيال له سره باسې، پاچاهې چتر، نقاره او نورې پاچاهې نخښې پريږدې او دنورو اميرانو په څېر حيث اوژوند منلاې شې نو به دې پسه سلطان ابراهيم و بخښم او د پښواپه څير به د کالپې حکومت او جاګير ځني دروا خلم» (۳)

سلطان جلال الدين نه چه خپله بې وسې څرګنده‌وه نوئې دملک ادم وړاندې کړې شرطونه ټول ومنل، درست پاچاهې ښانونه ئې ورواستول او په دې تو ګه ئې له پاچهې څخه خپله استعفا اعلان کړه.

## دشهزاده جلال خان تېښته

سلطان جلال الدين اوس بيرته (شهزاده جلال خان شو) د پاچاهې دال وډيل له منځه ولاړ. دورور (سلطان ابراهيم) دلوراوېيرزوبنې به هيله‌ئې دا ګرې په ښاو

او نور تفصیل سره د( سلطان ابراهیم) حضور ته و لیږل شي. کله چه سلطان ابراهیم (اټاوې) ته راورسید، د ملک ادم ورلیږلی لیك او له سلطان جلال الدین څخه اخیستی شوی دپاچهي بخښنې وروړاندې کړ او امیرانو ئې هم زیرمې تـه لحاظ نو ته چمتو کړی وو مګر کله چه دا لیك او پاچاهي بخښنی دسلطان حضور ته وړاندې کړی شوې، سلطان دخپل ورور په باب کښې ډیرې سپکې سپورې نا خوالې وویلې او دده هـ کلك اېدا د( توبیخ) اراده ئې څرګنده کړه، امیرانو هم دزیرمې له پاره زړه ونه کړای شو(۱) ددې وضعیت په اوریدو شهزاده جلال خان دبر وارخطا شو. له اګرې څخه ئې مخ ونیو، د ګوالیار راجا (راجه مان سنګه) ته ئې پناه ور وړه(۲) دده په دې تیښته د ملك دو بش شخړه فیصله شوه (سلطان ابراهیم) په جګه غاړه اګرې ته راغې او دپلار تول ملك د پاچهي واکی ئې په لاس کښې واخیستلې مخالف امیران هم ورته ایل شول .

## مقرري

سلطان ابراهیم چه دټول هیواد پاچهي ترلاسه کړه، هیبت خان ته ئې د (دو آبې) (۳) قندهاری کریمدا دتوخي(٤) ته ئې د (سرهند) حکومت او ناسیا له دولت خان لودي ته ئې دهاي ساتنه وسپارله، شیخ محمد پر ملي ئې د(چندېري) په سیمه کښې دسلطان محمد خلجي ( شهزاده صاحب خان) په وزارت و ګماره او دخوشاب حاکم عیسی خان او دل ( درانی) ته ئې د( معرفت خان او دل) پرځای (چه په دغو ورځو کښې مړ شوي ؤ) دملتان دلحینو سیمو حکومت هم ورسپارل (۵)

---

(۱) تاریخ فرشته لمړی جلد ۱۸۹ مخ

# د میا بهوا بند

میا بهوا د (سلطان سکندر) خورا ورتیر او ځیرك وزیرؤ. دده او سلطان ابراهیم ترمنځ څه مانۍ پیدا شو. ده ئې څه پروا ونه کړه ورو ورو ئې دې وضعیت سلطان ابراهیم دده بندولو ته مجبور کړ. ډېلار خورا منلی وزیر ئې ځنځیر په غاړه دا کړې کونوال ملك ادم کاکړ ته وسپاره او پس له څه وخته په هغه بند کښې پسې ومړ. د میا بهوا بند امیرانو ته بې اطمینانی نی مونده کړه، هرچا خپله چاره په اوبو کښې ولیده؛ له دغې ورځې دا لودی حکومت امیران د خپل پاچهی په ورانی پسې شول او د میا بهوا بند دلودی پاچهی ستنې ولړزولې.

که څه هم سلطان ابراهیم د میا بهوا زوی (دلاور خان) ته د خانخانان لقب، دېلار جاگیر او عهده د کشمیر د خواؤ حکومت یا د مخزن افغانی په قول د دارالعدل مشر نسوب او اوه زری منصب ور کړ، مګر دې ته ولو څښتنو دغې بې اطمینانی مخ نشو نیو لای چه د میا بهوا په بند او مرګ د امیرانو په زړو کښې پیدا شوې وه. که څه هم د میا بهوا په بند او مرګ ښکاره څه فتنه پورته نه شوه، مګر د سلطان ابراهیم په پاچهی کښې د امیرانو د تولو بغاوتونو یا پلامه (اساس) شو، که سلطان ابراهیم د خپلو امیرانو زړونه په لاس راوستلې وای دده د پرامیران هغه وفادار ځیرك، کارفهمه توریالی او مدبر امیران وو چه د سلطان سکندر غوندې مدبر او توریالی پاچا په دربار کښې روزل شوي او هر یو د خپل وخت منلی او ټاکلی شخصیونه وو دغو په توره او تدبیر به دده پاچهی خورا درنه او یوه بارونقه، منظمه پاچاهی وای مګر سلطان ابراهیم د پاچهی په نشه مست شو د سلطنت او پلار و نیکه تول دودونه ئې ترشا کړل، د خپلې پاچهی مراندې امیران ئې خپل مخالف او په خپل لاس بار ول (۱) او د پښتنو د حکومت

یا شیروانی اعظم همایون (امیر الامراء) تر مشر تا به لاندې د پرش زره لښکر د رې سوه

پیلان ۱) او یوه در نه تو پخانه د ګوالیار د راجا خپلو اره (چه شهزاده جلال ته ئې

پناه ور کړې وه) و ګمارله، دا لښکر ی چه د ګوالیار سیمو ته ورسیدای، شهزاده

جلال خان ویوهید چه دا لښکر ی د ګوالیار نیولو ته نه دی را استولې شوی

بلکه زما نیول ئې مقصد دی ځکه چه د ګوالیار د راجا پر پناه او مرسته ئې

هم بشپړه ویسا او بروسه نه دراوده نو ئې د خپلو ملو سره د (مالوې) لور ته مخ

و نیوا او د مالوې پاچا د وهم خلجې سلطان محمود د ۹۱۷–۹۳۷) ته ئې پناه وروړه.

پښتنی لښکر و د ګوالیار ښار کلابند کړ، د سلطان ابراهیم په حکم انه تنه

نور خورا درانه امیران چه هر یوه بیرغ او نغاره دراوده. لکه: خان جهان

لودی (چه دولس زره سپاره ئې لرل) . سرفراز خان مشوانی، سرمست خان

سړبنی، خضر خان داوی، سلیمان خان غرشین جلال خان مرسین زی،

مبارز خان لوانی او بهیکن خان پنی هم (۲) له خپلو فوځو سره په مرسته

وروړسید ل پښتنی لښکر و کلابندی لا پسی ټینګه کړه په دغو ورځو کښې

د ګوالیار کلابند راجا (مان سنګه) چه خورا منلی توریالی ؤ په تیر شو

(بکر ما جیت) زوی ئې پر ځای کښیناست د (مان سنګهه) مړینې د ګوالیار

د سوبې هیله لا د پښتنو ځلمیو په زړو کښې ډیره ټینګه کړه او د (باول ګړه) کلا

ئې چه (راجا مان سنګهه) د ګوالیار تر کلا لاندې و دانه کړې وه و نیوله . هغه

د سرو زرو غوائې چه په دغه کلا کښې د رول شوې او اوله د پیرو وختو څخه ئې

هندوانو عبادت کاوه آ کرې ته وا ایږله — سلطان ابراهیم هغه دغوایت له

اګرې څخه ډهلی ته ولیږه او د ډهلی د (بغداد دروازې) پر سر ئې د پرې د نخښې

په نامه ونجت چه د اکبر مغل تر زمانې پورې هلته نجتې ؤ (۳)

په دغو وختونو کښې شهزاده جلال خان چه د مالوې د باچا له پلوه ملګرې شخه ئې (کره کنټکه(١) یا (ګوندوانه)(٢) یا (راجګړه)(٣) ته پناه وړله ګوندوانیانو ونیوه او سلطان ابراهیم ته ئې بندي راوواست - سلطان ابراهیم دهانسي کلا ته د میر بزیوورونو سره د بندله پاره واستاوه مګر بیا ئې خوله وربته کړه د باچاهۍ میندې پر وړور ګلوبه بری ومواد او دائې یو بلابیا ثابته کړه چه انسانانو تل خپلو غرضونه درسید او د بازمخورا ګرانې ککر ئې تر پښو لاندې کړې او د هرو بیر مینونرو په بنوئي خپلې سرو خرو بیې حاصلې کړې دي.

## د اعظم همایون بند

د شهزاده جلال خان وژلو د سلطان ابراهیم زړه یووه کړ. اوس نو د هغو امیرانو دور کولو په فکر کښې شه چه زړه ئې پر بد ګمانه ؤ - تر ټولو لومړی ئې اعظم همایون ته لاس ورو اچاوه؛ په داسې حال کښې چه اعظم همایون د (باول ګړه) ترسوبې ورو ستنه د (ګوالیار) سو به سره نږدې کړې وه ګرې ته ئې راوغوښت او له (فتح خان) زوي سره ئې زندان ته وا چاوه حسین خان ساهوخیل او دی او محمود سترپه دانې ئې ووژل(٤)

د منلي وفادار او توربالی اعظم همایون د بند خبر چه د ګوالیار لښکرو ته ورور سید هوینتا نه امیران هم بیا ته شول. دې خبر بیا تولو امیرانو زړونه د باچا له خوا ودربول او مجبور ئې کړل چه په ښکاره د باچا مخالفت ته اوچښې راوغړي. لودی اعظم همایون (٥) او د مبارک خان لودی مینګوی

---

(١) [illegible] افغان ١٧٧ مخ

زوی ( سعیدخان ) د گوالیار کلا بندی بر بښوو له او ن خپلو خپلو انبکر و سره ئې د ( لکهنوتی ) لور ته چه د دری جا گیرؤ مخه ونیوله .

## داسلام خان پورته کېدل

اسلام خان د ( اعظم همایون زوی ) چه دېلار ترشاد اکړي وا کمن ؤ کله چه دېلار اوورور په بندخبر شود بغاوت نغاره ئې وډنګو له دسلطان ابراهیم بې سببه بند ونو په ډېر وزړو د انتقام لمبې پورې کړې وې د بر بښتا نه امیرانو لکه : لودی اعظم همایون ولړ دی سعیدی خان اونور داسلام خان سره مله شول - دسلطان ابراهیم له خواد ( کړی ) نوی حا کم احمد خان ئې مات کړو په لمرحتیز وسیمو کښې هری خواته د بغاوت لوخړې پورته شوې (١)

## داسلام خان وژل

داحمدخان دماتی خبر چه سلطان ابراهیم ته راورسید لکه چه د پری انبکرې ئې د گوالیار په نیولو بوختې وې دستی ئې څه ونه ویل مګر څورلځې نشوې نیری چه انبکری د گوالیار له سوبې را ستنې شوې او سلطان ابراهیم یوغښتلی فوځ چه پنځوسو زرو سپرو او پنځوسو پیلانو ته رسیدلی (٢)

له دو لسو امیرانو لکه محمود خان برملی . دغازی خان زوی ( قطب خان ) دملك ادم کاکړزوی سکندرخان (٣) علیخان برملی خان خانان ؛ بهیکن خان لوانی سارنګ خان او دمیا حسین پرملی زامن (٤) سره ، داعظم همایون د ورور احمد خان (٥) ترمشر تا به لاندې د یاغیانو ځپلو لره و ګماره - دافوځ چه قنوج ( بانګرمئو ) ته ورسید داعظم همایون یو امیر ( اقبال خان ) چه داعظم همایون دپنځو زروخاصو سپرو او څوجنګي پیلا نوسره

مخه ورته نیولی وه له پټکمینو (کمین) ناببره پرراووت د سلطان فوځ ئې زښت وځپه - پرډېر و مېړو ئې میندې بوری کړې او ډېر ځوانان ئې په وینو ورنګول. بخپله له خپلو لښکرو سره روغ رمټ دجنګ له ډاګه راووت داچېر چه سلطان ابراهیم واورېد - دده فوځ امیرانو ته ئې و لیکل:

«که هغې اتې دیاغیانو له لاسه ونه کښېلې زره ته مې لوېږي چه تاسې هم دباغیانو مله یاست» بو بل فوځ ئې هم داحمد خان په مرسته ورولېږه «له هغې خوا څخه اسلام خان هم د ځلو پښتنو زړوپه وسلو پټو سېږ و او یمځو سوه پیلانو سره جنګ ته راووت. نژدې ؤ چه فوځونه پرله ونښلي، چه بخاری شیخ راجو چه د خپل و خت منلی ستانه او په دغه و خت په قنوج کښې ؤ) او قندهاری شیخزاده ۱) ئې منځ ته راولوېدل - یاغیانو ته ئې نصیحتونه و کړل او ددستی وینو توبو او څخه ئې سره راز کړ زول له یاغیانو څخه چه ئې دوی غوښتنی (مطالبې) ویوښتلې دوی ورته و یل:

«مونږ نور هیڅ نه غواړو که سلطان (اعظم همایون) خوشی کړی مونږ به بغاوت پرېږ دواوحتې بلې پاچهی ته به ځنی ولاړ شو» سلطان ابراهیم ته چه دباغیانو دغه مطالبه وړاندې کړه شوه و ئې نه منله د بهار حاکم (دریا خان لوانی) دغازی پور حاکم (صیر خان لوانی) او داود هحاکم (شیخ محمد برملی ئې و کمارل چه له خپلو درنو فوځو سره دسلطانی لښکرو په مرسته پریاغیانو ورشی.

دادرئې لښکرې چه داحمد خان په مرسته ور ور سېدلې کمك جنګ ونښت اس زره پښتانه ځلمی سره ووژل شول یاغیانو ماتې ورکړه - اسلام خان

# ((د مغل بابر)) لومړی برید

د (سلطان ابراهیم) تېر یو له بوی خوا په ملك کښې د خپلو امیرانو دوینو واي وبهولي له بلې خوائې د باندنیو حمله کوو نکو ته هم په خپل ملك کښې د برید له پاره لاره جوړه کړه بابر مغل چه له ۹۱۰ ه کال څخه په کابل کښې د هندوستان د نیولو په نمه شپې سبا کوله مګر د سلطان سکندر د توری او تدبیر په مقابل کښې ئې خپل بری نه لیده کله چه د ډهلي پاچهي مغرور سلطان ابراهیم ته ورسیدله او د خپلو امیرانو په وینو ئې خېرې ورنکولې بابر مغل ته د خپلې سوبې امکانات څرګند او د ۹۲۵ ه کال په سر کښې ئې مخ پر هندوستان خپلې لښکرې راو بهولې تر اباسین رابوری ووت او د پنجاب تر (بهیره) پورې ئې ټولې سیمې ونیولې له (بهیری) څخه ئې د (مولانا مرشد) په لاس سلطان ابراهیم او دولت خان ته داپیغامونه راولیږل:

«څکه چه دا سیمې د پر وخت د تیمور په دولت پلاس کښې وې نو او س هم (بهیره) ماته راپرېږدئ نور به زه ستاسو په پاچهی کار نلرم» دا ستاځی تر لاهوره راتېر نه شو او نه ئې دولت خان ولیدلای شو او نه د سلطان ابراهیم دربار ته ورتللو نه پرېښود شو څو ورځې وروسته بیا کم کابل ته ستون شو (۱) بابر له (بهیري) څخه تر اباسین پورې د دغې سیمې حکومت (خنک جنګ محمد علي او هندو بیګ) ته وسپاره او له (هاتي) څخه ئې د ګکهړو د (پرهالې) د کلا تر نیولو وروسته د اومړی خور پر بو ولسمه بېرته کابل ته لښکرې ستنې کړې (۲) څکه چه سلطان ابراهیم

له (بهېرې) پسې واخیست او کابل ته ئې په تېښته مجبور کړ(١) د سلطان ابراهیم دې بیا کې (بابر) لاړه ور کړ او دغه کال په پای کښې ئې بیا د لاهور د نیولو په نیامت پر هندوستان لښکرې راوېستې خو تر اباسین نه ورا پورې وتلې چه پر بدخشان باندې د سلطان سعید د برید حال ور ته راغی او بېرته ئې کابل ته ترېلل(٢)

## دمغل بابر درېیم برید

په ٩٢٦ هـ کال بیا بابر له لسو زرو تنو سره له کابله څخه د هندوستان لوري ته وخوځید هر ځای چه به پښتانه په کړ تووړ تلل ځپل به ئې څو (سیالکوټ) ته ور سید د دغه ځای خلقو امان وغوښت (سیدپور) ته پسې ور ننوتل او د (سید پور) مشر د خپل سیمې ساتنې ته ملا وتړله جنګ و نښت مغلو ډېر میړونه ووژل په د رست ملك کښې ئې ځوانان اربنه او د سر پناه هیڅ ودانۍ پرې نه ښودل له تول ئې یو پناه کړل د (سیدپور) مشرئې هم و واژه او ډېرش زره ښځې او کوچنیان ئې ځني یو تلل(٣) سلطان ابراهیم ځکه چه د (دریا خان لوانی او نصیر خان لوانی) سره په جنګو بوخت وو د بابر لوری ته ئې دا یلا بیا هیڅ تو جه و نه کړه

## د «راناسنګا» برید(٤)

راناسنګا راجپوت (دچتوړ) وا کمن چه د (مالوې) دخلجي پاچهې له کمزورې څخه استفاده کړې او د (مالوې) د پاچهې زیانه برخه ئې لکه: نتپور، سارنګپور، بهلیسا لاندې کړې وه په غو وختو کښې ئې د لودي پاچهې حدودو ته هم لاس راوغزاوه د (چندېرې) په حدودو کښې ئې امنیت وران کړ(٥ سلطان ابراهیم

(١) بابر نامه ١٥٠ مخ

(٢) بابر خیل دغه لښکر کښې دیو سفر و د تر تنې په نامه ضبط کړیده (١٥٦ بابر نامه)

(٣) تاریخ فرشته [illegible]

ئې ځبلواره د میاما کېن ترمشرتابه لاندې بوفوځ وروابېزه مګر دغه فوځ
په‌ما ئې‌را ستون شو ـ سلطان ابراهیم پخپله انبکری پسې را وایستلی او
رانا سنګائې تېښتې ته مجبور کړ.

## داعظم همایون وژل اود دریاخان پورته کېدل

داسلام خان په وژلو یاغیان له برمه ولویدل سلطان ابراهیم تر پخوا
ډېر پسې مغرور شو او د پلار د امیرانو په ورکولو ئې بیا لاس پورې کړ
(اعظم همایون) ئې په زندان کښې په زهرو وواژه(۱) دې خبرې بیا یو ځل
بلا ږې راوېښې کړې هرې خوانه دفتنې او رونه پل شول د هر امیر به زړه
کښې دخان له بېرې د بغاوت اراده وګرزېدې ترتو او دمخه خان جهان لودی
حسن خان نورزی(۲) دریاخان لوانی (دبهار حاکم) او محمد خان سروری لاس سره
یو کړ د پاچا د خلاف نغاره ئې ووهله او لوانی دریاخان ئې په خپله پاچهی (مشرتوب)
وټاکه تیا زره انبکرئی راغونډ کړ او د بهار ارته سیمه ئې د سلطان ابراهیم له
پاچهی بیله کړه لېزوخت وروسته دریاخان ومړ او مبارز خان (بها در خان)
زوی ئې د ( سلطان محمد شاه ) په نامه پر ځای کښېنو ست خطبه و سکه
ئې پر خپل نامه کړه او یو لك سپاره ئې سره راغونډ کړل (۳) د شروانی
اعظم همایون زوی سعید خان هم د لوزرو سپرو سره ورته راوا وښت (٤)
لوانی نصیر خان دغازی پور حاکم چه د سلطان ابراهیم له انبکر و مات شو
هم د سلطان محمد شه مل شو سلطان محمد تر (سنبهاله) پورې لاسونه را اوږده
کړل دې ډې سیمې ئې د سلطان ابراهیم له پاچهی بېلې کړې څو پلا چه د
سلطان ابراهیم لښکري مقابلې ته وروو تلې په ماته ځنې راتر شاشولې (٥)

## دسلطان محمد خلجي ډرینه

دمالوې شهزاده صاحبخان چه دسلطان سکندر لودي په مرسته په (چندیري) کښې د(سلطان محمد خلجي) په نامه حکومت جوړ کړی ؤ دسلطان ابراهیم په باچهۍ کښې ومړ یو کوچنی زوی ئې (احمد شاه) پاته شو سلطان ابراهیم چندیري له احمد شاه څخه واخیستله او مستقیماً ئې خپل حاکم پکښې مقرر کړ (۱)

## دمیا حسین وژل

دخواجگی شیخ سعید پرملي زوی (میا حسین) چه دسلطان سکندر خورا ورتیر امیر او وفادار سپهسالار ؤ سلطان ابراهیم ئې په وژلو بسی شو مګر ځکه چه له یوې خوا دامیرانو دښکاره بنداو وژلي نتایج خوراترخه او ناوړه ورته ثابت شول نو ئې په ښکاره دده دوژلو اقدام ونه کړ بلکه : چم او درو له لارې ئې غوښته چه دی له منځه وباسي او بل دمیا حسین په ښکاره نیول څه اسان کار هم نه ؤ ځکه چه اوس ټول امیران دسلطان ابراهیم په بد نیت پوهیدلی ؤ هر چا د ځان دساتنې له پاره دبر قوتونه برابر کړی او پوره احتیاطئې کاوه که چه دسلطان ټول تدبیرونه په دې لاره کښې ناکامه شول نو ئې (میا حسین) او (میا معروف) دهغه ځلوېښت زرو فوځ سره د (رانا سنګا) ځپلو له وګمارل چه تردوی دیوه دبر کم رتبه امیر (شیخ ما کهن) تر مشر تابه لاندې دمالوې لورته لیږل کیده (رانا سنګا) په دغو روځو کښې د مالوې په سیمو کښې اله ګوله جوړه کړې وه او د چندیري او (بهیلسی) سیمو ئې تو لې نیولې وې مګر دا فوځ په رښتیا د یاغي رانا سنګا ځپلو لره نه لیږل کیده بلکه و ائې د (میا حسین) د نیولو له پاره ... (میاما کهن) ته حکم

لنهه ئي دا چه ميا حسين او ميا معروف له څهلو فوځو سره د (ميا ما كهن)
تر مشر تابه لاندي د (راناسنګا) جنګ ته وخوځيدل مګر ميا حسين چه خو را
ځيرك سړى او د سلطان هر حركت ته ځير او په دغه پټ حكم ئي هم خبر
ؤ له ځانه سره ئي ډېر احتياط كړاوه او د ميا ما كهن هر حركت ته خو را
څارو ؤ .

نكل كړيا: يوه روځ (ميا ما كهن) د ميا معروف ځاى ته د زوى د پاڼ
ور كو او په نامه ورغى ميا حسين چه خبر شو دستي ئي ځان ورور ساوداو (مياما كهن)
ته ئي په رډه وويل :

«ميا ما كهنه! د ميامعروف دنيولو خيال له سره باسه موږ نه دچا نو كران
او نه دچا تر لاس لاندي يو ولاړ پېژه خپل كور ته ځه زموږ پاچاخو ليونى شوى
دى، ته نا څه شوى دى ؟»

د ميا حسين و ينا (ميا ما كهن) پد ې پوه كړچه ميا حسين د ده حركت
ته ځير دى او په هيڅ تدبير نشي ير كاميا بيدلاى. چه خپل نا توبى ته راغى
ټول حال ئي سر تر پايه (سلطان ابراهيم) ته وليكه ، سلطان ته چه د غه ليك
ورور سيد په ځواب كښې ئي ورته وليكل:

«ته نا پوه ئي د بل تا نو بى ته ولې تلي؟ دداګ په منځ كښې خيمه ووهه
ټول اميران د پاچاهي فرمان داروولو په پلمه راوبوله چه ټو ل راشي لمړى
(ميا حسين) بيا (ميامعروف) ونيسه او ورته ووايه چه دد غه پاچاهي فرمان
به حكم مى بند يا ن كراست » (۱) مياما كهن ته چه دا فرمان ور سيد
خيمه ئي ووهله اميران ئي راوغوښتل مګر د ميا حسين احتياط او تدبير د ميا

«پاچاهي حکم ؤ چه فرمان به په خیمه کښي در ته اولم»

میا حسین ځواب ور کړ: «کومه اراده چه ته لري هغه نه ترسره کیږي موږ خبر یو چه هاالښکري زمونږ له پاره راتا پیشتلي شوي دي، که څه هم زمونږ ګډکري د پاچا دخدمت نذر دي خو پدغه ذات ځانونه نه شوو سپار لای (۱) ترديې خبرو اترو وروسته میاحسین په ښکاره د کوچ او مخالفت نغاره وډنګوله خپلي لښکري ئي واليږدولي (تووي) نه ولاړ او له هغه ځایه د (رانا سنګا) په لښکرو ننووت (۲) درانا له فوځه سره ئي دسلطان ابراهیم پر لښکرو برید وکړ پدغه جنګ کښي دسلطان دلښکر ډیر ځلمي ووژل شول او د (رانا) فوځو د (میا حسین) په مرسته بري ومونده ، دسلطان لښکري ونښتيدلي او (میاحسین) تریباني په پسي ؤ دبیاني حاکم (دریا خان) هم پدغه جنګ کښي ووژل شو سلطان ابراهیم چه دخپلو لښکرو په ماتي خبر شو پخپله ئي خورا درني لښکري له (اګري) څخه پسي وروځولي به بیانه کښي دواړه فوځونه سره ونښتل که څه هم نوم درانا سنګا دفوځ ؤ مګر دمیاحسین دانتقام جذبې کار وکړ او سلطاني فوځونه ئي ترشا کړل (میاحسین) چه دسلطان دلښکرو ماتي ولیده خپلي پښتنو الي او مسلماني ملامت کړ او په زړه کښي خورا پښیمانه شو ځکه ئي تو خپل ورور میاطه نه (چه یو خوراهنر مند امیر ؤ) ووبل:

«دسپین ږیر توب زمانه ده مناسبه نه وه چه په دي آخر وخت کښي د کافرمله شوو او دمسلمانانو ورونو وینې موو بهولي ماغوښته چه سلطان مونږ وبیژني

او داعظم همایون شروانی زوی (فتح خان) له بنده خوشی کړي زه به ستا هیڅ مخالفت ونه کړم» (۱) میاطه چه دا پیغام دسلطان ابراهیم حضور ته ورساوه سلطان ابراهیم په خورا ورین‌ندی ومانه او دوایه امیران ئې دستی له بنده خوشی کړل . د کین کنبه سلطان ابراهیم په دربار کښې توبې او معافی ځای نه در لود. دچه دا پیغام ومانه او سیدخان او فتح خان ئې خوشی کړل دا ټول دمیاحسین دنیولو او وژلو له پاره یوه توطئه وه، میاحسین ته چه دسلطان ځوابی پیغام ورسید له (رانا) څخه بیل شو او د کین کنبه سلطان دداد په نیامت (اکړي) ته راغی سلطان ښه راشه درشه ورسره وکړه او دمالوې د(چندیری) سیمه ئې په جاګیر کښې ورکړه ده هم ومنله وائی میاطه ډېل وروز میاحسن ته په دغه وخت کښې دوبل: «سلطان ابراهیم خورا کین کنبه پاچا دی پا بدخو را ګیر ی او کو ښه بېیمی ته ولاړ شې .»

خود میاحسین ژوند بشپړ شوی ؤ قضا خپل کار کاوه د میاطه سلائې ونه منله او ورته وئې ویل : «زه د(رانا) دمقابلې له پاره (ما اوه) عوره کوم» اجل نیولی میاحسین (چندیری) ته ولاړ او دغې سیمې په انتظام بوخت شو لږی ورځی نه وې تېری شوی چه کین کنبه سلطان خپل یوه ور تیر سری (دریا بادی شیخ فرید) ته اوه سوه طلاوی نقدی او (لس) کلی د جاګیر په توګه ور کړل او دمیاحسین وژلو لره ئې وګماره (۲) شیخ فرید (چند یری) ته ولاړ او هلته ئې دغه ځای دوولس زره شمخز اده ګان دپاچاهی بخښښو

«خدای ته دې ډېر ډېر شکرونه وي چه ورارهٔ مې دومره لایق شو چه ماته سلا راکوي. مګر ډېره ګرانه راته ایسي چه دغه تار یا کیان به زماسره دروه (خیانت) وکړای شي که زه ناړی پر تو کړم ډېر به او لېږه شي سباڅي ګوره چه که خدای کول زه څه کوم!» میاحسین نېروت غلیمان ئې سپك او کموا که وګڼل او دشیخ جمال سلائي رد کړه دشپې شیخزاده ګان ددوه پرتاټوبې بربد وکړ، میاحسین په‌میړانه خپل‌وس تمام کړ خوافسوس چه‌اجل راغلی ؤ میاحسین ګاري ولګید دمرګ په حال کښې ئې خپل وکیل خراسانی حسن علي ته وویل:

«زماله خواسلطان ته ووایه زمایه زړه کښې نا ته دروه و درغل نه ؤ خوستا په زړه کښې کینه وه زه دایم مرم او ته هم راپسې ئې، زمااوستانیاز (انصاف) به دعادل څښتن په‌مخ کښې‌وشي» وائي دا روستۍ جمله لاددهٔ ترخولې بشپړه نه وه راوتلې چه دغلیم یوه تېره ئې پربه وېنو لژنده کړکړی داسې ولګېداله چه بیائي ستر ګې رڼې نه کړې مګر تاریخ داو دي لیکي چه پدغه حال کښې هم ده پر ډېره وېشتونکي دتوري ګذاروکړاو دغه ګکړی ددهٔ ترمرګ دمخه پر داګ رغښته (۱) دمیاحسین توریالی دوینوغچ پاته نه شو قدرت ډېر ژر وګیښې البړی و رځې نه وی ټپری شوی (رانا سنګا) چه د توریالی میا حسین په مرګ دخپلې‌لارې څخه یوه اوبه سنګره ایسته ولیداله دچندیری پر شخیزادګانو راوغورځید او نقر یباً له یوه مخه ئې ترتیغ وکښل(۲) (چندیری) ئې له لودی پاچهي څخه بیله کړه او خپل یوه معتبر امیر (میدني‌راو) ته‌ئي وسپارله(۳) چه‌تر۹۲۳ه کال‌پوري ئې په لاس کښې وه(٤) پهر صورت دسرتمبه سلطان‌ابراهیم هوده تر سره شوه

# د ناسیاله دولت خان پورته کیدل

د میا حسین وژلو بیا د امیرانو په زړو بېره ننه ایستله د سلطان نورو نې امیران هم پر ځانو وېرېدل او دوه د پاچهۍ په رنګیدلو پسې شول لکه چه: پدغو وختو کښې سلطان ابراهیم د پنجاب واکمن او خپل پخوانی او خورا ورنېږدې وزیر (لودي دولت خان) له لاهوره څخه پایتخت ته وغوښت ځکه چه د سلطان ابراهیم سفاکی د نورو په زړو کښې بې اعتمادي پیدا کړې وې نو دولت خان په خپله ورنه غی او خپل کشر زوی (دلاور خان) ئې ورولیږه (۱) دلاور خان څلور میاشتې د سلطان ابراهیم په دربار کښې تېرې کړې د سلطان ظلم ضد سرتمبه کی او تلوّن مزاجي ئې له نژدې ولیدله پر خپل مرګ وېرېده او بې اجازې ئې یوه شپه د لاهور خوا ته مخ و نیو په شپېږ ورځې ئې ځان پلار ته ورساوه (۲) د پاچا د بدنیت ضد او سرتمبه کی خبرې ئې ور ته وکړې پلار ئې ترین غازی خان او نور د پنجاب د سیمو امیران له ځانه سره ملګري کړل او د سلطان د بغاوت نغاره ئې په ښکاره وډنګوله (۳) لمر ختیزې سیمې خو پخوا لا تر (سنبهل) پورې د (سلطان ابراهیم) له پاچهۍ بېلې کړې شوې وې اوس ئې د ملك شمالی سیمې هم ورنه باغی شوې جنوب غربی خوا تر (بیانې) پورې د رانا سنګا دیله پورې برید و نو له لاسه ورانه و بجانه وه بدبخته (سلطان ابراهیم) له هرې خوا څخه د ده له لاسه پاخول شوو بلاؤ کېر کړی و.

## د مغل ((بابر)) بلنه

ځکه ئې نو تر هرڅه دمخه دسلطان بهلول زوی عالم شاه (سلطان علاء الدین) ته چه د ګجرات باچادوهم مظفر شاه(۹۱۸-۹۳۲) ته ئې پناه وړی وه لیك و لیږه پنجاب ته ئې راوغوښت او دسلطان ابراهیم مخالفت لره ئې دباچهي په تمـه وپارا وه.

او له بلی خوا ئې د کابل مغل باچا(بابر) ته پر هندوستان باندی دبر ید بلنه ور کړه او ددی کار لپاره ئې خپل زوی(دلاور خان) کابل ته واستاوه (۱) بابر چه دا حال له خدایه پرآسمان غوښت او پر مځکه په لا س ور غی له ښادۍ په کمیسه کښی نه ځائیده او برې د اختر ورځ شوه.

## دناسیاله دولت خان تېښته

دولت خان ته لادمغلو لښکر ي په مرسته نه وې رارسېدلې چه د سلطان ابراهیم فوځو ته پر ورغلل، دنا سیاله دولت خان غړی ونښتېدل او د خپلو دروسروزامنوعلی خان، غازی خان او دلاور خان سره ئې بلوڅانو ته پناه وروړه (۲) پنجاب د(سلطان ابراهیم) پهلاس ورغی اولودی مبارك خان، بهار خان اولوانی بهیکن خان دپنجاب دسیمو امیران شول (۳)

## دمغل بابر څلورم برید

مغل بابر چه د دولت خان په تېښته خبر شو په خوراتلو ارئی دهندوستان خوا ته لښکری وبهولې، دلاهور شپېر کروهه ته چـه ور سېده د پنجا ب دسیمو امیرانو (بهار خان، لودی مبارك خان، لـوانی بهیکن خـان) ئې له خپلو لښکرو سره مخه ونیوله، کلك جنګ وشو مغلو بری موند دلا هور

د( دیپالپور ) لورته منځ ونیود دیپالپور کلا ئې هم ونیوله دهغه ښار خلق ئې هم له پوهمخه ووژل اودخپل چنګېزی قساوت بل ثبوت ئې ورکړ (۱)

## دسلطان علاء الدین ورتګ

دسلطان بهلول زوی عالم شاه (سلطان علاء الدین لودی ) د سلطان ابراهیم په پاچهی کښې د ګجرات پاچا دوهم مظفر شاه ته پناه وروړې وه په ۹۳۰ هـ کال دډهلی دپاچهی دامیرانو په بلنه دسلطان ابراهیم دپاچهی درنګولو په نیامت له ګجراته څخه منځ پر ډهلی راولېږدېد' مظفرشاه څه لښکری او څه روپی هم ورکړلې (۲) په دغو وختو کښې بابرمغل هم پرپنجاب لښکری راېهولې وې ' سلطان علاءالدین چه د( بابر )په برید خبرشو دپنجاب لورته ئې منځ ونیوچه ګوندې چه د(بابر) په مرسته ژر پرخپل وراره سلطان ابراهیم بری ومومی بابرمغل په (دیپالپور) یا(سیالکوټ) کښې ادولی ؤسلطان علاءالدین وړورسېد بابر دده راتګ دځان له پاره یونیك مرغ (فال) وباله' مګر کله چه دولت خان لودی اوغازی خان.روی ئې دبابرپه مخالفت لاس پورې کړ بابرخپله نقشه ناکامه ولیدله بیرته ئې کابل ته لښکرې ستنې کړې اود تګ په وخت کښې ئې ددیپالپورحکومت (سلطان علاءالدین لودی)او( بابا قشقه مغل) ته په ګډه ورکړ (۳) ·

## دناسیاله دولت خان بند

دولت خان چه دبابرمغل په راتګ پنجاب ته خبرشو' له بلوڅو راووت اوددروسروزامنوسره ئې ( دیپالپور) تـه ځان وررساوه' بابرمغل وناړاوه

شامت د رابللی (بابر مغل) په زندان کښې له غازی خان زوی سره واچاوه او
تر مغلو او پښتنو دواړو پوري ئې مخ تور شو .

انګل کاچه دولت خان بابر مغل ته سلاور کړه چه تر هر څه دمخه د جلوانی
پښتنو ځبلو لره چه په (نهاره) کښې پر ببن شاهو خیل او اسمعیل جلوانی راغونډ
شو بدی لښکرې واستوې ، مګر د (دولت خان) ناسیا له زوی دلاور خان بابر ته وویل:

زما پلار او غازی خان وروړمې دمغلو په باچهی خوښ نه دی ، دوی غو اړی چه
په دې تو ګه دمغلو لښکرې له تاڅخه بیاې کړې او دربانډې راوغورځې ،

بابر مغل ځکه (او یا په دغه پلمه) دولت خان اودی او غازی خان منځوی
زوی ئې زندان ته واچول او ترڅو چه (وښارې) ته و نه رسید خوشی ئې نه کړل (۱)

## دبابر مغل ستنېدل (( رجعت ))

بابر مغل چه خپل راباو نکی دولت خان له ځان سره مخالف ولید ځکه ئې
نو له سرهنده څخه بېرته لښکرې د کابل په نیت لاهور ته ستنې کړې لاهور ئې
(میرعبدالعزیز میر اخور) دیپالپور ئې (سلطان علاءالدین لودی) او بابا قشقه مغل)
سیالکوټ ئې (خسرو کوکلتاش) او کلانور ئې (محمد علی خنك جنګ)
ته وسپاره .

چه تر (ستلج) پورېووت او په (نوښاره) کښې ئې واړول هلته ئې نا سیا له
دولت خان لودی او غازی خان زوی ئې له بنده خوشی کړل او بوا ځی
د (سلطان پور) سیمه ئې (چه دپلار نیکه میڼه ئې وه) په جا ګیر کښې ورو
پرې ښوول له دوی چه ایله شول او ځانونه ئې (سلطان پور) ته ور ورسول ، کډې ئې پا

# د شهزاده بهادرخان پناه (۱)

په ۹۳۱ هـ کال د گجرات شهزاده (بهادرخان) له خپل پلار دوهم گجراتی مظفرشاه (۹۱۸ ـ ۹۳۲) څخه خوابدی شو، دا جمهر او میوات له لارې ئې سلطان ابراهیم لودی ته پناه یووړه، سلطان دېر ونازاوه او په خورا درنه سترگه ئې ورته لو کتل (۲) مگر د غه بې پاسه شهزاده کله چه بابر پنځمه پلا پر هندوستان حمله وکړه بابر ته ئې لیکونه ولیکل او له مغل پاچا سره ئې کورواوده عوښته ئې چه د بابر خوا ته ورواړي ـ خو د پلار د مرگ خبر ورته راغی او د گجرات لور ته ئې مخ ونیو (۳)

# د دولت خان لودی او مغلو جنگونه

بابر مغل چه کابل ته ولاړ د ولت خان لودی او غازی خان پر (سلطان پور) بريد وکړ، ناسیاله دلاور خان د مغلو (خان خانان) ئې ونیو، زندان ته ئې وا چاوه لښکري ئې د (دیپالپور) لورته پسې ورو لېږد ولې په (فیروز پور) کښې دد وی فوځونه او دبابا قشقه مغل او سلطان علاء الدین لودی کډې لښکري سره مخامخ شوای مغلو ما تې وکړه (بابا قشقه) مغل لاهور ته وتښتېد او سلطان علاءالدین لودی کابل ته مخ ونیو، (دیپالپور) د دولت خان او غازی خان په لاس کښېووت. څوورځې وروسته ئې پنځه زره شپروانی مېړونه د (سیالکوټ) نیولو ته وگمارل، مگر څکه چه له یوې خوا څخه د لاهور مغل حاکم (عبدالعزیز میرآخور) د (خسرو کوکلتاش) په مرسته راورسېد او له بلې خوا د سلطان ابراهیم لښکر و پر دیپالپور بريد وکړ پښتني لښکري بېرته

# ددولت خان اوسلطان ابراهیم جنگونه

**لمړی جنګ :**

کله چه ددولت خان لښکري د(سیالکوټ) په نیولو بوختې وې دسلطان ابراهیم واستولي لښکرې ورته رانژدې شوې دولت خان دخپلو لښکرو سره په (بچوا ډه) کښې مخه ورته ونیوله د سلطان لښکرې چه راورسېدلې' دولت خان ئې مشر سپهسالار دخان کړ' کښته امیران چه په خبر شول دشپې ئې د سپهسالار بې اجازې خپلې لښکرې ستنې کړې او بې جنګه سلطان ابراهیم ته ورغلل (۱)

**دوهم جنګ :**

سلطان علاء الدین چه ددولت خان لودی له لاسه له دیپا لپور څخه د کابل خواته ونښتېد د ۹۳۱ ه کال دلمړی په خوربه میاشت کښې بابر له سیالکوټه څخه لاهور ته رخصت کړ او لاهور بر مغلو امیرانوئې لیک ورکړ چه دسلطان ابراهیم او دولت خان برضد په جنګو کښې دده مرسته وکړی سلطان علاءالدین چه لاهور ته راستون شو دولت خان او غازی خان لودی له دیپالپور څخه مغلو امیرانو ته ولیکل:

« سلطان علاء الدین زموږ او ستاسو او کاکا ځی' شهزاده دی موږ ټول یرده سره جوړېږو ټول پښتانه امیران دا وائی چه دی به دډهلی پاچا کړو او تر سرهنده پورې به دپنجاب سیمې ستاسې مغل پاچا (بابر) ته پرېږدو' تاسې (سلطان علاءالدین) راواستوی »

مغلو امیرانو دسلطان علاءالدین په سلاد او مغلو او سلطان علاء الدین ئې ورولېږه (۲) سلطان علاءالدین چه (دیپالپور) ته ورسېد نور پښتانه امیران لکه: اسمعیل خان جلوانی دخان جهان زوی (محمود خان) او نور هم بر را غونډ

ئې تقریباً دېرش څلوېښت زره سپاره پر ډهلي ورو بهول، باندې نه چه دا لښکرې راورسېدلې شهزاده سلیمان پر ملی ئې هم مل شو او د ډهلي ښار ئې کلابند کړ (۱) دا بېله که څه هم په ښکاره د سلطان علاء الدین په نامه او مشرتوب ؤ مګر په حقیقت کښې ددې برید نقشه تۀ له او دی دو لت خان جوړه کړې وه

## د ډهلي جنګ

سلطان ابراهیم چه د ډهلي په کلابندۍ خبر شو . خپلې لښکرې ئې له نور و خواؤ څخه سره راغونډې کړې تر تولو فتنو دمخه ئې ددغې فتنې وژل لازم وبلل او خپلې درنې لښکرې ئې چه اتیازرو ته رسېدلې (۲) له اګرې څخه د ډهلي لورته راو بهولې . د سلطان علاءالدین او نورو یاغي امیرانو فوځونه مخې ته ورغلل او سلائې بردې شوه چه : دېره دا که مخ پر تندی له پاچاهی فوځو سره نه شو جنګېدلای او ملی دورځې پښتانه یو د بل له شرمه څخه میدا ن نه پرېږدي له شاؤ خوا څخه په دشپې نا څاپه برید پر کړو ، دشپې چه دسلطان علاءالدین لښکرې ناڅاپه له شاؤ خوا څخه دسلطان ابراهیم پر لښکرو چه د ډهلي په شېږ کروهۍ کښې پرتې وې (۳) ورتوی شوی د سلطان فوځ ئې خورا تر هور او کنډو کپر کړ . مګر سلطان ابراهیم ځان ورته تینګ کړ تر سپېده وېړې ئې لاس و نه ښور اوه او له خپله ځا یه څخه و نه خوځېد په خپل ځاتو بې (مقر) کښې دخوجنګی پیلانو سره په وسلو پټ چمتو ولاړ ؤ سهار ته ئې سترګې نېولې وې چه لېږه رڼا شوه ده ولیدل چه یاغي لښکرې شاؤ خوا په تالاپو ختې دي او په خورا بیغمۍ دشپې دزیار محصول تولوی په دغه ترخ کښې ئې پر خپل اکا (سلطان علاء الدین) هم سترګې والګېدلې

لښکروچه په تالابوخت ؤ،ښي له دا که وختلي او هري خواته چه ئې لارموند له ونښتېدل . ضد ی سلطان ابراهیم بری موند او ددې بلا له پاره بیاد با غیانو لښکرو کلکه مـساتی وکړه ځینې غرو ته وختل او ځینو امیرانو بابر مغل ته چه په دغوور ځو کښې ئې بیا پر پنجاب لښکرې رابهولې وې ځانونه ورسول(۱)
وائې په دغه جنګ کښې د پښتنو دپرش زره مېړونه سره وو ژل شول (۲) که څه هم سلطان علاء الدین بیا له دو آبې څخه لښکری را غونډې کړې خوبخوا ترجنګ دړاخان ، محمود خان او شیخ جمال پرملی دسلطان ابراهیم خواته ځنئی واوښتل او ده له حاجی خان لودی (د کن کوټ) ته ځان ورساوه(۳)

## دغازی خان لودی برید

کله چه دسلطان علاءالدین لښکرو دهلی کلابند کړی ؤ ، دناسیاله دولت ځان پوه او مېړه منځوی زوی (غازی خان) دیوه تکړه لښکر سره پر (کلانور) برید وکړ ، دهغه ځای مغل حاکم (محمد علی خنك جنګ) چه ئې په ځان کښې د جنګ توان ونه لید ،لا هورته ځنې ونښتېد پښتنو ( کلا نور) ونیو ، غازی خان د ( کلا نور) تر انتظام و روسته په (بیرسرور) کښې وادول څو دبابر مغل لښکری ته وې رسېدلې (بیرسرور) او کلا نور د ده په لاس ؤ (٤)

## دبابر مغل پنځم برید

د ۹۳۲ هـ کـال دصفري په لومړي ورځ بـابر مغل بیا خپلې لښـکرې د هند و ستان د نیـو لو په نیـیا مت لـه کـا بـلـه وخـو ځـولـې ، دآباسین غاړي ته چه راورسید خبر شو چه غازي خان لودی ( کـلانور)

راغوند کړی دی ، ځکه نو بابر د چناب لور ته مخ و گرزاوه او په بهلول پور کښی ئې واړول ، د سیا لکوټ ښارئې پر مخ وران کړ او د سیالکوټ او سیدونکی ئې بهلول پور ته و کوچول (۱)

دولت خان او غازی خان خپل فوځونه د (ملوټ) کلا ته ترشا کړل. غازی خان د سلطان ابراهیم دربار ته ولاړ(۲) چه د مغلو په مقابل کښې د خپل سر تمبه پښتانه پاچا سره روغه و کړی او په گډه د یلار درا بللی بلا څخه ځانونه وساتی مگر افسوس چه غښی له کړنه وتلی ؤ.

# دملوټ نیول او د دولت خان بند

بابر مغل چه سیالکوټ وران کړ د (ملوټ) کلا ته ئې لښکرې ولیږې د ولې چه ناسیاله لودی دولت خان ته د قومی غدارۍ نتیجه وښووی.

دولت خان چه د بابر مغل لښکرې نژدې ولیدلې په (ملوټ) کښې کلا بندشو څوورځی ئې ځان ټینگ کړ مگر ځکه چه خپل مخ ئې تولو پښتنو ته تور لید. او د هیڅ ادمرستې تمه ئې نه وه؛ نور ټینګیدلای نشو - کلائې مغلو ته وسپارله. مغلو چه بری موند؛ د ناسیاله دولت خان په غاړه ئې دده غبر کې توری سورمان او تورمان (۳) ورو ځړولې په خورا سپکه ورځ ئې د مغل پاچا (بابر) دربار ته ورووست - د سلام په وخت کښې د مغلو له دربار ی دود سره سم باید پر گونډ وشوی وای مگر ده چه و نه منل - مغلو سپا هیانو ترڅټ ونیوا او په زورئې دده رابللی بلا ته پر گونډ و سلامی په و کړه (٤)

بابر دی د علیخان زوی اسمعیل خان لمسی او نورې کورمې او کهاله

کړی مګر دادلودیوبند یانو قافله چه سلطان پورته ورسیده له د دولتخان په نېړشو (۱) او په دې تو که ئی د خپلی کړهنی حاصل واخیستل مغلوته چه د ملوټ کلاوسپارله شوه مغلو په تالالاس یوړې کړ تول پښتانه کهو اونه له کلاراووتل او شاؤخواؤ تهئې مخونه سره ونیول (بابر) ددولت خان خزانې او مالونه په لاس راوستل اود غازی خان خورانفیسه کتابخانه ئې هم په کوتو کښېوتله دلودی غازی خان د کلوراغوند کړی کتابوانه ئې په یوه ورځ تیت وپرك کړل څه ئې خپل زوی هما یو ن ته ور کړل او څه ئې کابل ته میرزا کامران لره واستول او څه ئې دخان له پاره و کړزول (۲) دناسیاله دولت خان مغل پر ستنه زوی د لا ورخان (خان خانان) هم په د غه وخت کښې (بابر) ته خان وروسا وه اود پرو نازول شو (۳)

## د سلطان ابراهیم ورونل

سلطان ابراهیم چه په ډهلي کښې یاغی لښکرې ماتې کړې پنجاب ته د بابر مغل دورسید لو حال وروسید، دا پلا ئی نوهغه جنګ ته لېږي راو غښتلی چه دده د قام اوځان مرګ وژوند ور پوری تړلی ؤدلښکر و ماتی کود ی ئې روغی کړی له هری سیمی ئی لښکری راو غوښتلی، یوه ر و نه لښکر ئی چه موورخین ئې شمیر یو لك سپاره او زر پیلان ښودی سره راغوند کړ .

نکل کا: سلطان ابراهیم چه دبابر مغل جنګ ته ووت که څه هم د امیرانو بیلتون او بد بینی دده دماتی ښکاره فال ؤ، بیائی هم منجمان وپوښتیدل، هغو ورته وویل: له سپتوروخر کند یږی چه زمونږ تول آسو نه او پیلا ن به د

ۋ چه زمو تېز پر آسانواو پېلانو به د مغلولاس برشي. دمنجمانو دي پيشګوبي د سلطان ابراهيم دځينو ملو غړي وتښتول د پر ښتانه اميران خو پخوالا د ده مخا لف ۋ، مګر پدې خبره ئې ځينو ملو اميرانو هم له مرستې څخه ځانونه وژغورل او ترڅو چه د سلطان ابراهيم لښکرې (سونې پت) ته رسيدلې زيات شمير اميران د مغلو فوځ ته ورواښتل(۱)

# دهمايون مغل او حميدلودي جنګ

بابر مغل چه د (ملوټ) کلا ونيوله او د(دولت خان لودي)له خوا بيغمه شو، د غازي خان لودي په لښکرو پسې ئې مغل فوځونه وګمارل او هغه ئې سره تيت پرک کړې د بابر مغل نوك چه له سخره موښتې ۋ په دغو وختو کښې شاه عماد شيرازي دسلطان ابراهيم دخانخانان (ارايش خان) اوملا محمد (مذهب) له خوا پيغا مونه ورته راورسول: «چه مه را کوره مونږ ستاراتلو ته ستر ګې په شوو (۲) بابر ته چه پخوالا د سلطان او اميرانو نفاق، بد بيني او عام بغاوت د هندوستان دنيولو تمه ور پيدا کړې وه په دغه پيغام دېر زړه وراو داړه شو سمدستي ئې د ډهلي په نيت له (ملوته) څخه لښکرې راوخوځولې په انباله (۳) ياد کهکر د سين پر غاړه چه ئې واړول خبر شو چه سلطان ابراهيم له ډهلي څخه د خپلو درنو لښکرو سره مخ پر سر هند راوتلي دي او د(حصار فيروزه) دحاکم لودي حميد خان تر مشر تا به لاندې يو فوځ د سلطان د خاص بيل سره دسلطان دمرستې په نيامت (قصد) له (حصار فيروزه) څخه را خوځيدلي دي .

بابر مغل خپل اتلس کلن زوی (همايون) له خواجه کلان، سلطان محمدولدی

ددریمې خوربر څوارلسمه (١) دهمایون مغل او حمید لودی لښکرې سره
مخامخ شوې . کلك جنګ وشو «حمیدخان خاص خیل لودی» (٢) ماتې
وکړه، وتښتېد، لښکرې ئې کنډ و کپړ شوې، همایون (قاوغونجی) په ماتو شویو
لښکرو پسې وکمار داو پخپله له سلو تنو بندیانو او (٧) یا (٨) پیلانو سره
(چه دحمیدخان له لښکره ئې راګرزولی ؤ) بریالی دپلار لښکر وته ستون شو
(٣) دپښتنو ځلمیو ککرے ئې له الجو سره پـلا رته وړاندی کړې بابر
خپل بریالی زوی (همایون) ته حصار فیروزه او جالندهر په جاګیر کښې
له یو کرور نقدو تنګو سره ورکړل (٤) (قاوغونجی) چه جصار فیروزه ته
ورسېد هغه ئې ښه تالا کړه او دالجو سره بریالی بابر ته راغی، بابر ددغې میاشتې
ددریمه خوربر یوویشتمه ئې سل سره تنه پښتانه بندیان ترتورو وکښل
(٥) په دغه وخت کښې ببن جلوانی له دروزرو سپرو سره دبابر مغل خواته
راواوښت دده په رانګ دبابر مغل زړه لا غښتلی شو او دپانی پت لور تـه ئې
دسلطان ابراهیم سره دمقابلې، له پاره لښکری وخوځولې، سرهند ته نژدې
سلطان علاء الدین لودی هم دبابر دفوځو نومل شو (٦)

## د((پانی پت))جنګ(٧)

مغلو لښکرو په (شاه آباد) کښې اړولی وو، چه ددریمې خوربر دېرشمه دسلطان
ابراهیم دلښکرو سرلان (قراول) چه شپږ یا اوه زره (٨) سپاره وو دداؤدخان

---

(١) بابر نامه ١٧١ مخ
(٢) خاص خیل د پښتنو په تاریخ کښې دپرورده (روزلی) او کله کله د (غلام) په معنی راوړل
کېږی (خواص خان ولی ٢ مخ)
(٣) بابر نامه
(٤) تاریخ فرشته لمړی جلد ٢٠٤ مخ او بابر نامه ١٧١ مخ
(٥) بابر نامه

اوحا تم خان تر مشر نابه لاندې د(پانی پت) حدود ته راورسېد ، دخلور مې خور پرا تلسمه بابر مغل پو تکړه فوځ دتیمور سلطان محمد سلطان جنید برلاس ، شاه حسین برلاس ترمشرنابه لاندی دسلطان محمدابراهیم له سرلاښ سره جنګ ته له شاه آباده څخه وګمارل (۱) دمغلو دالښکر ترجمنا پور یوت سهار امر څرګ ئې د (داؤد خان) پر لښکرو برید وکړ تر یوه کلك جنګ وروسته یښتنو ماتې وکړه پخپله حاتم خان او ه جنګی ییلان او اتیا تنه بندیان دمغلو په لاس کښېو تل (۲) پښتنا نه بند یان چه ئې بابر مغل ته راوستل په خورا عذاب او سختی سره ئې تول ووژل (۳) او دچنګېز ی وحشت دثبوت دپاره ئې یو دایل بل زیات کړ. مغلو دلوی جنګ دپاره تیاری ونیوای او دخلورمې خور په وروستیو ورځ پانی پت ته پسی وروليږ دېدل ، هلته ئې ورنهوادول . اوه انه ورځی فوځونه سره پرانه وواو یو بل ته ئی کتل له یوې خواهم په دغوورځو کښې دلوی جنګ دپاره اقدام ونشو که څه هم مغلو په کله کله دشپې ځینې بریدونه وکړل اما څه په ئې له لاسه ونشوه هری خوا دیوه لوی او فیصله کوو نکی جنګ د پاره ترتیبات نیول .

## لوی جنګ :

د ۹۳۲ ه کال ه رجب د میاشتی پراوومه یااتمه یالسمه دجمعې په ورځ سلطان ابراهیم لودی او بابر مغل پخپله دخپلو خپلو لښکرو دادارې واګی په لاس کښې ونیوای او دلوی‌او فیصله کوونکی جنګ په تیامت داګ ته سره راووتل. ویل کېږی‌چه دمغلو اښکر پلی‌او سپاره پنځه‌لس زره تنو ته رسېدل



په دې عکس کښې دسلطان ابراهیم لودی دهدیری تنګاچه (صفه) اوورختلی زینې ښکاری
(دسلطان ابراهیم دهدیری عمومی منظر)

دا فوځونه چه تناسب ئې د شمیر په لحاظ یو په اوه ؤ یو د بل جنګ ته سره ودرېدل، مګر د پښتنو نفاق، بدبینۍ او سره تورو زړو ددوی پر همت زړه ور توب او قوت هرو مرو برې موندہ، د دوی په خپل منځ کښې بېلتون ددوی د ماتې څرګند فال ؤ .

کلك جنګ ونښت، دوینو ولې سره بهېدلې، د مغلو یو فوځ د بابر دلار ښوونې او جنګي اصولو له مخې د پښتنو پر لښکر ودشا له خوا راوګرزېد او په خپل برید ئې پښتانه فوځونه سره تر هور کړل، وایي په دغه وخت کښې د سلطان ابراهیم یوه ور تیر امیر سلطان ته سلا ور کړه چه: «نن به د مصلحت له مخې جنګ پرېږدو، بیا به فکرو کړو او یو مناسب تدبیر به غوره کړو»(۱)

مګر هوډیالی سلطان چه د برې او یاد پښتنو د پاچهۍ د ختمولو هوډه کړې وه کله دا سلا منلای شوه وای ځواب ئې ور کړ:

« تاته نه ده څرګنده چه د پاچهانو خېمې سرې وي او ددوی د سر خرويۍ فال او د سر فروشۍ نخښه ده مونږ (پاچهانو) چه دا خېمې په خپلو وینو رنګ کړې دي اوس کوم لور ته مخ نیولای شو! او سر خرويي به په زړ درويۍ څنګه بدله ؤ؟!» (۲)

هغه ؤچه له څاښته څخه تر ماښینه پورې کلك جنګ وشو، ډېرې مینډې بورې شولې، سلطان ابراهیم هم تر خپلې هوډې جار شو او د جنګ په ډاګ کښې د پنځو شپږ زرو پښتنو ځلمو تر څنګ چه په وینو لړ ند مړه پراته وو د مرګی په خوب وغزېد (۳)

---

(۱) مرقع افغان ۱۹۳ مخ د تاریخ داؤدی د ٤۹ مخ په حواله

(۲) مرقع افغان ۱۹٤ مخ د تاریخ داؤدی د ٤۹ مخ په حواله .

مازدیگرته تبریزی طاهر چه دجنگ پاد گ کښې ئې مړی لټول ددهمړی وپېژاند سرئی څنې غوڅ کړ اومغل پاچا (بابر) ته ئی یووړ، تن ئې په پانی پت کښې ښخ کړ شواوقبرئی څرگند دی (۱)

داتو کالو اتومیاشتو اویوېورځې تر پاچهي وروسته ددغه هو ډیا لـې سلطان ابراهیم وژلی په ډهلی کښې دپښتنوددرې سوه کلنی پاچهي کمبله تو له کړه .

## شهید شدن ابراهیم

(۹۳۲ ه)

ددې پېښې تاریخ دی .

یوه هند وشاعر ددغې پېښې نېټه داسې راوړې ده :

(نو) سی او پر تهـا ( بیتا ) (پانی پت ) مین بها ر ت د یسا
سا توین ر جب اپت ډ ا ر ا (با بر) جیتا( براهیم) ها را (۲)

مولوی اما م بخش صهبایی ئی داسې تاریخ لیکلی دی :

کرد چون سلطان ابراهیم کوچ هفتم شهر رجب از این سرای
جست دل از ها تف اسرا ر کن سال فوت آن شه گردون سرای
گفت که در (جنت و الای پاك) یافته (سلطان ابراهیم) جای (۳)
(۵۲٤) (٤۰۹)

دبابر مغل په حدم چه په دغه جنګ کښې د پښتنو مړی، و شمېرل شو ل

## دسلطان ابراهیم هدیره

دپانی پت دښار له کلا څخه تقریبا یو میل لیری دپانی پت په خونی او تاریخی ډاګ کښې دپخوانی پاچاهی لاری څنګ ته یوه او مه غونډی شته، پخې زینې ورختلی دی، دغونډی په منځ کښې سر بېره یوه او مه دکانچه (صفه) ده چه هغې ته هم دپخو خښتو دري زینې ورختلی دی، پر دغه دکانچه دسلطان ابراهیم لودی قبر دی چه له معمولی مرمره څخه جوړ شوی دی، دقبر سر ته دغونډی په دیوال کښې یوه د مرمرو ډبره (شنخته) نجتلې شوې ده(۱) چه دامضمون پر لیکلی دی:

« قبر پادشاه ابراهیم لودی جو به مقابلهٔ ظهیرالدین بابر شاه پانی پت کی بڑی لڑایی مین اپنی فوج کیساتهه قتل هوا اسکی قبر کی مرمت اور درستی ۱۸٦۷ع مین هوی » (۲)

## دپانی پت ډاګ

دپانی پت خونی ډاګ دپانی پت دښار شمال ته پروت دی، دا ډاګ ارغوی غوندی صاف او هوار دی، ترمز لومز لو پوری دونی څرك پکښې نشته، دغه ډاګ په شمالی هندوستان کښې له لرغونه تل دخورا لویو لویو جنګو میدان شوی دی، ترمیلاد ۸۰۰ کاله دمخه یوې کورنۍ ددوو پلارو ترمنځ چه (کورو) او (پانډو) نومېدل، ۱۸ ورځې پله پوری یو خورا لوی او تاریخی جنګ دلته پېښ شو چه پای ته (پانډو انو) بری موند. په سنسکریت ژبه دهند وانو

سلطان محمود پر تهٔا نیسر برید وکا ، پههمد غه ډا گ کنبی خورا کـلك
•جنګ وشو اودمړوغو ندیـ جوړه ی شوی (۱)

په۵۸۷ه کال یا ۱۱۹۱ع کـال غوری سلطان شهاب الدین پر همد غهمیدان
دډهلی لهنومیالی پاچا( پر تهوی راج )سره چهدټول شمالی هـند مهارا جا ګـان
اوراجا ګان ئې پهمرستهراغلیوو؛ وجنـګید اوپه ماتې غزنی ته ستو ن شو.

په۵۸۹ه کال یا۱۱۹۳ع کـال بیا سلطان شهاب الدین په د غه ډاګ کنبی له
(پرتهوی راج ) سره مخامخ شو ،پر تهو ی راج ئې وواژ ه اودډهلی لښکرو
تهئې کلکه ماتې ورکړه .

په۹۳۲ه کال یا۱۵۲۹ع کال همدغهدبابراوسلطان ابراهیم لودی جنګ ددغه ډاګ
پنځم لو ی جنګ ؤ چه لکه څر نګه چه مو ولوستل دبابر په ګټه تمام شو.
تردغه وروسته همدغه ارت ډاګ په ۹٦٤ه کال یا ۱۵۵٦ع کال دا کبرمغلاو
هیمواوبه۱۱۵۲ه کال یا۱۷۳۹ع کال دنادرافشاراومحمدشاه مغلاوپه۱۱۷٤ه یا
۱۷٦۱ع کال دپښتانه ستر ټولواك لوی احمد شاه بابا اومرهټا نو د جنګ
میدان شو چهپه لومړی کنبی اکبرمغل، پهدوهم کنبی نادر افشا ر او په
دریم کنبی پښتانه سترټولواك احمد شاه بابا (رح) بری موند (۲)

## دسلطان ابراهیم سکه

(نېلسن وایټ) پهخپل کتاب (دډهلی دپاچا هانوسکې) کنبی د سلطان
ابراهیم یوه سکه فوټو ګرا فی کړې ده ددې سکې پر یوهخوا(السلطان ابن
السلطان) اوپر بله خوا ئې (ابراهیم شاه لو د ی اسـره اسـلند ر شـاه)

اوخوا چه کلان بیك ،شاه منصور اوو لی‌خان ترمشر تابه لا ندې دا گرې
دنیو لو او د پښتنو پاچها نو دخزانو دلاس ته راوستلو د پاره ولېږد اوه
پخپله بابر درجب پر دولسمه په‌ډهلی ننووت او دپښتنو پاچهانو د کې خزانې
ئې مهر و لاك کړې، ترهغو چه په ۹۳۲ ه کال همایون دېلار په نټه دا خزانې
ماتولې چالاس نه ورووړ (۱) د مغلو لښکر ې چه دهمایون په مشر تا بــه
(اگرې) ته‌ورسېدلې؛ دسلطان ابراهیم زوم‌سوري فیروز خان(۲) او کرانې
ملك داؤد کلا بند شول څکه چه‌له هیڅ خوا څخه دمرستې هیله نه وه. پنځمه
ورځ ئې دا گرې کلا مغلوته وسپا رله درجب پر دوه و یشتمه یا نه و یشتمه
چه بابر مغل اگرې ته‌ورسېدتر هر څه‌دمخه چه ئې دپښتنو پاچاها نو خزانې
و کتلې ،ارنې ورته وا خستلې سمد ستي‌ئې او یا لکه نقدی تنگې او یوه
بشپړه خزانه شهزاده‌همایون ته‌وبخښله ۱۷ لکه‌ئې کامران میر زاته ، ۱۵ لکه
ئې‌محمد زمان‌میرزاته ۱۵ لکه‌ئې‌عسکری میر زاته ، ۱۰ لکه تنگې ئې هندال
میرزاته‌ور کړې ، نوروتولوامیرانوته‌ئې‌هم چاته‌لس لکه، چا ته اته لکه او چاته
شپږ لکه تنگې‌ورو بخښلې. نورئې هم خپل ټو ل لښکر یان په اصطلاح ز رریز
کړل او د کابل دولا یت اوسېد ونکو ته ئې دسړی په سر کو چنی او لوی
ساهو اومر یی ته یو یو مثقال سپین ز رواېږلی‌د کا شغر ، خراسان سمر قند
او عراق بنو خلقو ،خپلو انواودوستانو ته ئې درا نه‌درا نه‌سوغاتونه واستول (۳)

د پښتنو دماتې سببونه

زړور توب او توريالي توب كښي مغل ددوی ګور(مقابل ) نه ؤ او نه دی که ژوند ؤ زه به دپښتنودِ اتفاق په بر كت خپله دا ادعا ثابته كړم او په هندوستان كښي به دمغلو سیوری پری نه ږدم (۱)

**مولوی ابرارحسین ليكي:**

«د پاني پت په لمړی جنګ کښي خو پښتانه په شمیر كښي تر مغلو يو په اروه زيات ؤ او بايد مغل بابر هيڅ سو به نه وای وړی مګر په دغه جنګ كښي چه لبز ومغلو پر ډير وپښتنو بری وموند سبب ئی دمغلو زړه ور توب طاقت او دجنګ پوهه نه وه بلکه د مدافعو پښتنو مړه زړونه ، شنې خواوی او ختلی اروا حا نوو چه د سلطا ن ابراهيم د ظلم له منګو لو څخه ئی په هره تو ګه خلاصون غوښت»(۲) پنډت ويشو ا ناتهه ليكي :

«دپښتنو د پاچهی وروستی پاچا(ابراهيم لودی)تور زړی بیر يدونکی او بی اوږ ه سنګدل پاچا ؤ، ټول پښتانه اميران څنی خواشينی شول، بابر مغل له دغه موقعه څخه استفاده وکړه بريد ئی پرو کړ اود پښتنو پاچهی ئی ړ نګه کړه (۳) رشتيا هم داده چه خپل نفاق دپښتنو د پاچهی دولت اوقوت رينبي وکښلی که نه د سلطان سکندر په وختو كښي چه پښتانه اميران سره په يو ه زړه ؤ د غه بابر دده په خپل قول له ۹۱۰ ه کال راهيسی په کابل كښي دهندوستان د پاچهی تمه په زړه كښي لر له مګر تر آباسين ئی پوری خواته ستر ګی نه شوای ښکاره کولای، ګټری ګټری ئی کتل او تر څو چه پښتانه په خپلو کښي سره ونه لويدل ترا باسين ئی دور پوری وتلو جرآت ونه کړ.

ئې تر پښتنو بتر کړ .

وایي همایون مغل چه له شیرشاه سوري څخه لومړی ځل ماتې وکړه او
په تیښته ئې اګري ته ځان ورسا وه کله چه ئې له خپل ورور کامران سره
ولیدل دواړو ورونو په ورت ورت سره وژړل او پر خپله بې اتفاقي او بده
ورځ ئې د کو نډیانو په شیر او ښکې واورولې (۱)
بې اتفاقۍ چه د مغلو په منځ کښې درزونه واچول، دشیرشاه سوري په مقابله
کښې بیا هغه طاقت ور پاته نه ؤ چه یو ځلمی دی ئې اووه تنه پښتانه پسې
واخلي بلکه څلورتنه ئې یوه پښتانه ته ټینګ نشوه حتی داسې هم پیښه شوه
چه د ۹٤۷ هـ کال دعا شوري دورځې په جنګ کښې اوه‌ویشتو تنو مغلو امیرانو
د شیرشاه او پښتنو له بیری څخه خپل خپل بیرغونه پټ کړل (۲)

د سقاو په مرسته د ګنګا ترسین د همایون پور یوتل او کلو نه د
ایران د پاچا (شاه طهماسب) په دربار کښې د یوه مستغیث په حیث میلمه
کیدل د شیر شاه غازي د قول څرګند ثبوتونه دی .

## د سلطان ابراهیم د وختو ارزانی

د تعجب وړ خبره داده! سره د دی چه د سلطان ابراهیم پاچهی د جنګو
خونریزیو او بد امنیو زمانه وه، بیا هم په ټول ملك کښې هرلورته ارزانی
دغې اندازې ته رسیدلی وی؛ چه تاریخ ئې په درو څلورو سوو کلو کښې د
خلجی سلطان علاءالدین بې زمانی پرته بل مثال نشی ښودلای. مګر دا هم
باید وویل شی چه د خلجی سلطان علاءالدین په وختو کښې ارزانی دغه معیار
ته په خورا زیارو زحمت او زورو زیاتی رسیدلی وه او سلطان ابراهیم د

(لس پاوه) غوړي اولس گـزه‌جامه وه! که به چاله ډهلي‌ځخه آ گر ی ته پر
خپل آس له یوه شا طره سره سفر کـوه یوه بهلو لي ئي بڼه بـس کیـدل
یوه کور داره پلي‌سپاهي‌ته دمیاشتي پنځه تنگي‌اویوه سپاره کهن سپاهي‌ته د .
میاشتي اه شلو تنگو ځخه تر دیر شو تنگو پوری ور کولی(۱) او د هـغو بڼه
گذاره په کیـد له .

**دارزانۍ سببونه:**

مولوی ابرار حسین لیکی: «هنه ځوك چه وایی دسلطان ابراهیم دو ختو
ارزانۍ دده دبڼه انتظام نتیجه وه! دمنلو ور خبره نده ځکه چه‌دده‌ا ته سره
کاله پاچهي د ورونو او امیرانو سره‌په دسیسو اوجنـگو کښي تیر ه شـوه
البته ده دایو عام حکم کړی ؤ چه هیڅ امیر‌یا جا گیر دار دي نغد ه ما لیه
نه اخلي او په سرسر ه دی هغه غله په ما لیه کښي ځني اخلي چه له هغی
مځکی‌ئی اخیستی وی»(۲)

دسلطان ابراهیم دزمانې دخاصې اوبې مثالی‌ارزانۍ سببونه اغلباً داد ی:

۱ ـ دده دپاچهي په‌زمانه کښي هرهر کال پر خپل خپل تا پي خورا ښه
او کافي بارانونه کیدل، حاصلات یو په دوه شول (۳)

۲ـ د(سلطان سکندر) داته ویشت کلنۍ پاچهۍ دښه انتظام، بشپړ ی
توجه ، زرغی اصلا حاتو اوتشویق نتیجه دسلطان ابراهیم په وختو کښي ښه
ترا خر گند ه‌شوه(٤)

۳ـ دسلطان ابراهیم دغه حکم‌چه (نقده مالیه به کړت نه‌اخلي) گدامو نه
له‌غلو‌ځخه‌ډك کړل‌اودخرید‌دقوت‌لږ‌ون تو ل‌دضرورت‌شیان خوراارزانه کړل(٥)

# د ډېرې ارزانۍ نتیجه:

د نقدی مالیې نه اخستلو له یوی خوا بزګرا نو اوباغوا نانو لره ډ ېری آسانۍ موندې کړې او طبیعي مرستی، دجوی اوضاعو مساعدت ئی حاصلات یو په دوه کړل، مګر له بلی خوا اسره اوسپین زر (چه دیو ه هېواد داقتصاد پښتې دی) پیدا کړه ور کړه کېښې خوړالنږ بلکه ورك غو ند ی شول دیوه کلهن، سپا هی پنځه تنګې میا شتنۍ تنخوا داخبره ښه ترا ا ثباتوی.

ر شتیا همدا ده چه د نقد وجنس بر ابر ی دهیوادا قتصاد برابر سره ساتلای شی ځکه چه دسکی ډیر ښت اودخرید دقوت زیا توب هغه وخت بیکاره ثا بیتېږ ی چه په بازار کېښې درانیو لو له پاره څه نه وی همد غه رنګه په بازار کېښې دمواد وعرضه بیکاره با ید وبو لو چه دخرید دقو ت او سکې نا یابی احساس شی (۱)

# ابراهیم شا هی تاریخ

نعمت الله هروی لیکی :

د کالوانی ابراهیم زوی « مولانا محمود » یو تاریخ لیکلی دی چه په دې تاریخ کېښې د سلطان ابراهیم دپاچهی دپیښو تفصیل شته اودمؤ لف له خواله همد غه امله د کتاب نوم «ابراهیم شا هی تار یخ » ایښودشوی دی ( ۲ )

# دسلطا ن ابراهیم مور

بابرمغل چه ا ګرې ته ولاړ دسلطا ن ا براهیم بوری مور ته ئې داو و ولکو تنګو یڅی «جا ګیر»ور کړ اوترآ ګرې یو کروه دبا ندې ئې میښته کړه (۳)

اوياد لو ديو خزانې ته‌رارسيدلې‌ؤ بابر مغل ته ور کړ «يائې ځنې‌واخيست» دهغه وخت جوهريا نو دهغه الماس بيه خورا ډيره وټاکله (۱) .
مګر دتاريخ خورشيد جهان په قول درې ورځې وروسته اودتاريخ فرشته په قول د ۹۳۳ ه کال په‌لمړ يوورځو کښې مغل بابر په‌دې پلمه چه ماته‌ئې ستا په‌لمسون زهر راکړي‌دي (۲) اويا دی دزهر راکولو نيت درلود (۳) د سلطان بوره مور له خپل ټاټو بې څخه راوا يستله؛ کورئې تالا کړ.
دسلطان سکندرغو ندې مېرمن‌ه‌درا نه‌او يوه پښتون پاچامل‌که ئې دخره په سپارلې (٤) ترزندا نه بو تله (٥) اويتيم لمسی ئې «دسلطان ابراهيم‌زوی» کابل ته ځنې‌واستاوه
وائي تر دی پېښې وروسته بابر مغل «غازی خان ترين» چه‌د ده د رابللو په چاره کښې ددولت خان مل او تراوسه‌دمغلو وفادارؤ، وواژه‌اود کابل او قند هار له‌سيمو څخه ئې هندوستان ته دوسله والو پښتنو و رتګ منع کړ او دهندو ستان پښتا نه ئې مجبور کړل چه له سپا هيتو به لاس واخلي او کرهنه‌اوسودا ګري و کړي (٦) :

## دسلطان ابراهيم اولاده:

د سلطان ابرا هيم لود ی يوه ښځه چه (بی‌بی فتحه) نوميدله، دکالا پهاړ «شيخ زاده محمد پر ملي» لور اودسلطان بهلو ل دخور لمسې وه، کله چه سلطان ابرا هيم د پانی پت په‌جنګ کښې ومړ، دې‌دمغلو له لاسه دهندوستا ن لمر ختيزې ډډې ته مخ و نيو، په ۹ ٤ ۳ ه کال شېر خان (شېرشا هسوری) سل منه سره زر، لس منه مرغلرې، خورا ډېر سپين زر اونور اجناس ځنې واخستل (۷)

# دسلطان ابراهیم زامن

دسلطان ابراهیم یو زوی مو نبز ته څر گندی چه د۹۳۳ه کال د لمړی خور په ۲۹ بابر مغل د ملا سر سان په لاس له اگرې څخه د کـا بل حاکم شهزاده کامران میرزا ته بندی واستاوه(۱)

## د سلطان ابراهیم لونې:

د سلطان ابراهیم درې لونې مو نبز ته څر گندې دی:

## ۱-د فیروز خان سوری ښځه

دخور شید جهان د مؤلف په قول دسلطان ابراهیم یوه لور له فیروز خان سوری څخه وه.

سلطان ابراهیم چه په پانی پت کښې وواژه شواوبابر مغل ده هلی تر نیولو وروسته خپل زوی همایون دا گرې نیولو لره وگماره، همد غه فیروز خان او داؤد خان کرانی اگره ورته کـلا بنده کړه، خو تر ښځو ورځو جنـگ وروسته ئې کلا مغلوته وسپارله(۲)

## ۲-د بنگال د پاچا ښځه

دسلطان ابراهیم تروژ لې وروسته چه پاچاهی کورنۍ لمر ختیزې ددې ته مخ و نیو، هلته د سلطان ابراهیم لود ی یو د لورد بنگا ل پا چا نصیب شا ه یا نقیب شاه (۳) (۹۲۷ ـ ۹٤۳) چه دسلطان علاءالدین بنگالی(٤) زوی ؤ وکړه، په ۹٤۳ ه کال نقیب شاه یا نصیب شاه یا نصرت شاه و مړاو دبنـگال پر پاچهی ئې یوه امیر (بنـگالی سلطان محمود) غېنړراو گرزوله چه په۹٤٤ه کال د شېر خا ن (شېر شاه سورۍ) له لاسه تېبی شو ،اوهمایون مغل ته و تښتېد(۵).

## ۲ــ مهر سلطانه

په ۹٤۳ هـ کال د شیرخان (شیرشاه سوری ) زوی جلال خان د ځان له پاره غوښته خو (بی بی فتحې) مور ئې نټه وکړه (۱) اوبیا ئې (سکندر )نامی ته چه له خپلوانو څخه ئې ؤ، ورکړه (۲)

## د سلطان ابراهیم لودی امراء

دسلطان ابراهیم امراء زیاتره هغه دسلطان بهلول او سلطان سکندر د پاچهیو امراء وو، یوڅو تنه چه نوی دده په وختو کښې دامارت رتبې ته رسېد لی دی داد ی:

## ۱ ــ علی خان پرملی

د سلطان ابراهیم په وختو کښې ئې د (خان خانان) لقب درلود (۳) دسلطان ابراهیم ترمرگ وروسته (مېوات) ته وتښتېد ، د ۹۳۲ هـ کال په پای کښې چه زوی او کهول ئې (مېوات) تهورتله، دا گری اود هلی تر منځ مغل امیر (یونس علی) له خپلو لښکرو سره ورباندې پېښ شو، تریوه سپك جنگ وروسته داوښتنه کورنۍ دمغلو په لاس کښېو تله اوبندیئې بابرته وروستله بابر مغل ئې یوزوی د (قدم ترك) له زوی (میرزا مغول) سره مېوات ته ورواستاوه اور او ئې غوښت ، علیخان چه ناموس ئې دمغلو په لاس کښې بندیؤ مجبوراً بابرته راغی بابرد «۲۵» لکوتنکو پټی «جاگیر» ورکړ (٤)

په ۹۳۳ هـ کال چه بابرخپلی درنې لښکرې د «محمدسلطان» میرزا تر مشرتابه

ئې هم د يوه امير په حيث ورسر ه کړ (۱) په ۹۳۵ ه کال چه بابر د (ببن شاهو خېل)او (شيخ بايزيد) مقابلې ته د گنگا پر دې غاړې پر وت ؤ) ،عليخان پرملي ئې له پنځو تنو نورو هندي اميرانو سره ور و ليږه چه د گنگا گدرونه و نيسي او (لکهنو) دشيخ بايزيد او « ميا ببن شاهو خېل » له حملې څخهو ژغوري (۲)

**۲ـمحمدزيتون:** د سلطان سکندر پهو ختو کښې دا گرې کو توال ؤ،دسلطان ابراهيم د پاچهي په اوا خرو کښې د (دهولپور) حاکم شو ، بابر مغل چه اگره ونيوله « باباقاي بيگ » ئې دستاځي په حيث ور و ليږ ه محمد زيتون مغلو ته د کلا سپارل ونهمنل (۳)

په ۹۳۳ه کال چه مغلو گوا ليار لهتا تار خان سارنگ خانی څخه ونيو،دي هم د(دهولپور) تسليمو لو ته مجبو ر شو، بابر د څو لکو رو پو پټې ( جا گير) ور کړ (٤)

**۳ـحسن خان:** حسن خان دشيخ مکهن زوی ؤ،دسلطان ابراهيم د پاچهي په اواخرو کښې در اجپوتانی (د کندار) حاکم ؤ ـ د سلطان ترمرگ وروسته په ۹۳۲ه کال کښې د چتوړ « رانا سنگا » بريد پر و کړ ،ده له بابر څخه د اسلام په نامه مرسته و غو ښتله مگر بابر د خپلو ملکي مصالحو له مخې مرسته ورونه ليږ له ،رانا سنگا د (کندار) پر کلا بريد وکړ او ډېر خلق ئې ووژل(٥)

## ٤ مسند عالي بهکهاري خان پرملي:

د سلطان ابراهيم په وختو کښې ئې مسند عالي لقب درلود (٦) بيا دبابر په

و ختو کښې د با بر له امراؤ څخه شو، په ۹۳۳ ه کال چه بابرخپلې درنې لښکرې د محمد سلطان میرزا تر مشر تابه لاندې د ببن شاهو خیل مقابلې ته لیږ دولې؛دی هم د یوه امیرپه حیث ورسره ؤ(۱)

**۵-نظام خان:** دسلطان ابراهیم دپاچهۍ پهاواخرو کښې دبیا نې‌حا کم ؤ (۲) بابر مغل چه‌ا ٔ رهونیوله «قلندر پیاده» ئې دستاځی په حیث ورولیږه نظام خان د کلا ورسپارلونه منل مگر لږ وخت وروستــه ئې «بیانه» مغلوته تسلیم کړه اومغل امیرشو په۹۳۳ ه کال‌چه‌بابرمغل دسلــطان محمود لو دی او رانا سنگاسره جنگیده ،دی د مغلو په لښکر و کښې دیوه امیر په حیث ولاړؤ.

**۶-ملك داؤد کرانی** :ملك داؤد کــرا نی د سلطا ن ابــر اهیم لــه امراؤ څخه ؤ د همایون په مقابل کښې ئی د ا گرې ښا ر کلا بند کړ،تر پنځو ورځو ئینگا ر وروسته ئــې مجبو رأ ا گــره ورو سپار له ،با بر د ی وباخښه او په‌خپلو امراؤ کښې‌ئې‌شامل کړ په ۹۳۳ه کال چه بابر د سلطان محمو د لودی او رانا سنــگا سره جنگیده، دی‌ئی تر څنګ د یوه امیر پــه حیث ولاړ ؤ ،بیا چه ئــې دببن شاهو خیل مقابلــې لره لښکر ې لــګهنــو تــه و لیږ دولی، دی ئې هم د یوه امیر په حیث ور سره کړ(۳) .

**۷-شیخ مکهن خان پر ملی:** د سلطا ن سکندر له‌خوا په۹۲۲ه کال د (باړی)حا کم مقرر شو،د سلطان ابراهیم له معتمد وامراؤ څخه ؤ،د ر انــا سنــگا جنگ لره ئې دده تر مشر تا به لاندې لښکرې ولیږ دولې، دلو د ــو

۹۳۳ هـ کال د سنبهلٖ سیمې ته د انتظام له پاره ولېږه(۱)

**۸-نـاسیاله آرایش خان:** دسلطان ابراهیم دوختو خان خانان ؤ، بابر چه ملو ت ونیو، ده د عماد شیرازی په لاس پیغام وروليږه چه ژر راځه مـو نږ دې ملاتړ یو (۲)

بابر چه د هلی او اگره ونیو له ده ته ئې هغه امارت ور کړ چه د سلطان ابراهیم په پاچهی کښې ئی درلود، په ۹۳۳هـ کـال چه بابر د سلطان محمو دلو دی صلاح الدین، حسن مېواتی او رانا سنګا سره جنګېده دی ئې د ګڼ فـوځ په امراؤ کښې ؤ(۳)

**۹-شیخ ابراهیم مصطفی:** دسلطان ابراهیم له امراؤ څخه ؤ، دلودیو د پاچهی تر سقوطوروسته دبـابر په امراؤ کښې شامل شو، په ۹۳۲هـ کال بابر د ګـنګا د پورې خوا د پښتنو مقابلې ته و ګماره، دی په هغه جنګ کښې ومړ، ددغه لښـکر نورو پښتنو امراؤ لکه: فیروز خان سارنـګ خانی، محمود خان لوانی او قاضـی ضیا «صبا» دمصطفی کشر ورور «شیخ بایزید» پخپل مشر توب وټاکه، بابر شیخ بایزید ته دګـنګـا په پورې خوا کښې دیو کرو ړ تنګو پټی (جاګیر) ور کړ (٤) او د «اتاوې» نیولو لره ئی دمهدی خواجه مرستې ته وګماره (٥) په ۹۳۳هـ کـال چه همایون جونپور ونیو، دی ورسره ؤ، همایون چه راستنېده؛ دجونپور حکومت ئی جنید برلاس ته ور کـړ او شیخ بایزید ئی هم د انتظام د پاره ورسره پرېښو د (٦) بابر لیکی چه: ددغه کـال په پای کښې د شـیخ بایزید له خوا

بد خبرونه راتلل(۱)اود۹۳٤ کـال تردوهمی خور پوری ئی لا صریح مخالفت
څر گند نه شو،مگرزما باور وشو چه دبایزید سره د مخا لفت فـکرشته، نومـی
سلطان محمود میرزاته چه په قنوج کښی ؤ ولیکل چه : بایزید راو غوا ړه
که راغی ښه او که نه تر نورو یاغیا نودمخه د ده دفـعو کړه (۲)
تر دغه راغونښتنی وروسته شیخ بایزید په ښکاره دمیامعروف پر ملی او ببن
شاهو خیل سره چه له مغل سره جنگیدل ،مل شو. ددریمی خور په سر کـښی
ئی لکهنو دمغلو له لاسه و کیښ او ترمر گه (۹۳۸ه کـال) پوری دپښتنو لښکرو
دو تلو امراؤ په حیث د مغلو پر ضدو جنـګیـد ل او په دغــه لا ر کـښی ئــی
سر ور کړ .
بابر دی پر ملی کښی او په مخزن افغانی کښی ئی هم پر ملی لیکلی دی (۳)

## ۱۰ــ فیروزخان سارنگ خانی :

د سلطان ابراهیم له امراؤ څخه ؤ،دلودی پاچهی تر سقوط وروسته دبابر
په امراؤ کښی شامل شو٬ بابر په۹۳۲ه کـال د گنگادپوری خوا پښتنو امراؤ
مقابلی لره و گماره او د گنگا پوری خوائی د یو کــروړ تنگو پټی (جا گیر)
ور کړ (٤)

## سلطان محمود لودی

بابر چه اگره اود هلی و نیول دشاؤ خوا تو لی سیمی دپـښتنوامراؤ پهلاس کـښی
وې اودیرو امراؤ دبابر اطاعت ته غاړه نه ایښوو وله، پهسنبهل کښی قاسم سنبهلی،
پـــه بیانــه کـــښی نظام خان، پهمیوات کښی حسن خان میواتی، په گوالیار کـښی

او په کالیې کښې عالم خان خپل خپل بیرغونه پورته کړی وو، د
گنکا پورې خوا، خو دسلطان محمد لوانی په پاچهی کښې وه (۱) مگر دې تولو امراؤ
پخپلو منځو کښې اتفاق نه سره در لوداو یوه دبل خبره نه منله، دسلطان سکندر
زوی (شهزاده محمود) چه دمیر یزی ورور (سلطان ابراهیم) له لاسه د (ها نسی) په کالا
کښې بندی ؤ (۲)

دسلطان ابراهیم له وژ لې (۹۳۲ه کال) وروسته څه پښتانه امراء پرراغونه شول
او په مشرتوب ئې ومانه، په ۹۳۳ه کال چه میواتی حسن خان، صلاح الدین او
راناسنگا (۳) په میوات او اجمیر کښې د بابر مغل پر ضد سره یو ځای شول
شهزاده محمود لودی ئې دلسوز روسپرو سره په مر ستهورغی (٤) دځلور مې خور
پر نهمه یا (۱۳) چه دبیانې په شاؤخوا کښې (جالوه) یا (خانوه) نومی
ځای کښې جنگ وشو مغلاو بری ومو ند اوشهزاده محمود لو دی چیتپور
(٥) یا (چتوړ) (٦) ته مخ و نیو، بیا (مالوې) ته لاړ په (پټنه) کښې را
غونډ شوی پښتانه امراء لکه: دلاهور پخوانی حاکم مسند عالی عمرخان،
کاکپور، دمسندعالی عمرخان شروانی زوی «مسندعالی عیسی خان» (۷)
اعظم همایون شروانی چه دسلطان محمود خسرؤ (۸)
عمرخان داجمیر پخوانی حاکم، علیزی ابراهیم خان، پنی احمد خان (۹)
یوسفزی، یوسفخان، پرملی شیخ بایزیدا ودمیاعطا لودی زوی ببن شاهوخیل

---

(۱) بابر نامه ۲۰٦ مخ
(۲) تاریخ خورشید جهان ۱۰۵ مخ
(۳) دغه راناسنگا بابر ته دسلطان ابراهیم پرضد بلنه ورکړې وه چه هندوستان ته راشی او
دهلی دبرید په وخت کښې به دی دشا له خوا پرا گره برید کوی (بابر نامه ۲۰۷ مخ)
(٤) بابر نامه ۲۱۰ مخ

دسرهند پخوانی حاکم چه په خبر شول په ده پسی ئې سړی راولیږل « او پټنې ته ئې بوت
ځکه چه په د غووختو کښې د شرقی سیمو پاچا (سلطان محمد لوانی) (۱) مړشوی ؤ، هلته ئې دی د (سلطان محمود) په نامه خپل پاچا کړ .(۲)

## د ((بهار)) نیول

په ۹۳۵ ه کال سلطان محمود پر (بهار) بریدوکړ، شیر خان (شیرشاه سوری) چه دسلطان محمد لوانی دزوی جلال خان اتالیق ؤ اودسلطان محمد لوانی ترمړینې وروسته ئې پر درست (بهار) غیږ راگرزولې وه مجبور اً ئې په دې شرط پر خپل جا گیر ( سهسرام، جونپور، تا ندہ) سکته و کړه چه کله چه سلطان محمود (جونپور) دمغلو له لاسه وکاږی (بهار) به بیرته شیر خان ته پریږدی.

## د بابر مغل جنگ

بابرمغل چه په دې خبرشوچه سلطان محمودلودی په بهار کښې پښې ټینگې کړې اوشیخ بایزید پرملی اوشا هوخیل ببن ئې دوه پرو لښکرو سره (سروا) ته استولی او پخپله ئې له یوه لوی فوځ سره د (فتح خان شروانی) په مرسته د گنگاڅړې نیولی ده (۳)

سمدستی ئې خپلې لښکری هغې خواته ولیږ دولې او په (کړه) کښې ئې ورته واړول ،یودروند لښکر ئې دمغل محمد زمان میرزا په مشر تابه د پښتنو جنگ له وگماره، سلطان محمود دا پلا د جنگ له دا گه ترشاشو، خوده پر ژرئې بیا

پخپله هم پسې ور ولېږ د يد ،د سلطا ن محمو د لښکر ی بهار ته تر شاشوې
اومغل بابرهم ا گرې ته ځنی را ستون شو(۱)

## دجو نپور نیول اود همایون مغل جنگ

په ۹۳۷ ه کال چه بابر مغل ومړ، سلطان محمود د جونپور لو ر ته لښکر ې
راو بهولې، د جونپو ر د مغل حا کم (جنید برلاس) اونورو مغلو امرا ؤ غړ ی
وتښتېدل بې له جنګه ئې تېښتې ته بډ ې را و غښتلې ،دسلطا ن محمود لښکرو
تر ( مانکپور کړه) پورې ټولې سیمې ونیولې، د بابرمغل ز و ی (هما یو ن)
چـه دا وا ورېدله ،لـه ډېرو لښکرو سره پسې ورو خوځېد پـه لـکهنو
کښې په ۹۳۸ ه۱۵۳۱ع کال (۲)دواړه لښکــر ې ســر ه مخا مــخ شوې
جنــګ ونښت، خوورځــې پلــه پسې تورې ســره و خــر چېد لــې په
استری‌ورځ دپښتنو مشهور تور یالی‌مشران: علیزی ابراهیم خان او پر ملی
شیخ بایزیدپه جنګ کښې ومړل اودشېر خان (شېرشاه) فوځوچه ښې ځنګ
ته ولاړوو، تر شاتر پلل، په پښتنو ماتې ګډه شوه (۳) سلطا ن محمو د بنګال
ته مخ ونیواو هلته د بنګال پاچانصیب‌شاه‌چه‌دسلطان ابراهیم لود ی زو م ؤ
د ه ته په د ر نه ستر ګـه وکتل پټې ( جا ګیرونه ) ئې ور ته و ر کړ ل (٤)
پس له د ې ماتې سلطان محمود بیادپاچهۍ نوم وانه خیست:

## اوړیسې ته د سلطان محمو د تګ:

غو ښتنې ائاروليدل نوئي په ۹٤۸ هـ کال بند ی کړ (۱) دده تربند وروسته په ۹٤۹ هـ ۱۵٤۳ ع کـال سلطان محمود (اوږ يسې) ته مخ و نيو او هلته پسې مړ شو (۲)

## حميدخان سارنگخاني:

په ۹۳۳ هـ کال حميدخان لودی چه د توريالی سارنگخان له اولادې څخه ؤ، دحصار فيروزه په حدود و کښې دبابر مغل پر ضد دري څلور زره پښتانه پرځان راغونډ کړل، بابر مغل يو تکړه فوځ د اچين تيمور، سلطان احمد بروانچی، ملك داؤد کرانی او محمد خان ملتانی ترمشر تابه لاندې پسې ور و يوست، په جنگ کښې ډېر پښتانه ووژل شول مغلو برې ومونډ او دپښتنو څلمو ډېر ې کـکرې ئې بابر ته را ورې، (۳)

## تاتارخان سارنگخاني:

تاتارخان لودی دتوريالی سارنگ خان له اولادې څخه ؤ، سلطان ابراهيم لودی دپاچهۍ په پای کښې دگوالیار حاکم ؤ، (٤) بابر چه ډهلی اوا گره ونيول دهٔ ئې اطاعت تهٔ غاړه نهٔ ايښووله (۵) په ۹۳۳ هـ کال چه کفارو له شاه ؤ خوا څخـه بريد پرو کـړ او نژدې ؤ چه گوالیار ځني ونيسي، ده له بابر څخه مرسته وغوښتله، بابر د (رحيمداد) ترمشر تابه لاندې يو فوځ ورو ليږه، مگر ددې فوځ مطلب دتاتارخان مرسته نه وه بلکه دگوالیار نيول ؤ، تاتار خان دگوالیار له ورسپارلو څخه تېه وکړه، رحيمداد خان دشيخ محمد غوث

گوالیار ی په‌مرسته د( هتیاپول) له در وازې څخه دښمن لښکر ی، په کلا ورننه ایستلی ، سبا تاتار خان مجبو ر شو گوالیارئې مغلوته وسپار ه ، پخپله آ گرې ته‌راغی،بابر دشلو لــکوتنگو پټی (جا گیر)ور کړ اودائې‌شرط ورسره کښېښو دچه ؛ سپا ره عسکر به‌ځان ته‌نه نیسی (۱)

دبیا نې تر فتحې ورو سته چه‌بابر جو نپور ته لښکر ی لیږ لې؛د ی‌هم په دغو لښکرو کښې دیوه امیر په حیث ؤ ،دادر نې لښکرې دبېن پښتانه مقا بلې ته دمحمد سلطان میرزا ترمشر تابه لاندې لیږ دولې شوی‌وې ، نور پښتا نه امیران‌هم‌لکه خان جهان (فتح خان سروانی)،ملک‌داؤد کرانی ، علیخان پرملی، شیخ محمد اوشیخ بهکار ی ور سر ه کړ ل شوی‌وو، دا لښکر ې چه څو جو نپو رته رسېدلې دبابر نامې په‌قول میابېن‌جو نپورخو شی کړی ؤ(۲)

## شهزاده تاتارخان‌لودی

شهزادهٔ تاتار خان دسلطان علاء الد ین (شهزاده عالم خان) تو ریا لی زوی اودسلطان بهلول لمسی‌دی (۳) ،سلطان علاءالدین چه دبا بر ترمړ گ‌و روسته دبهادر شاه گجراتی‌دربار ته ځان ورساوهٔ، فتح‌خان(٤) اوتاتار خا ن زا من ئې هم ورسره ؤ ، شهزاده تاتارخان‌یومنلی‌توریالی‌اوخورا گړندی ځوان ؤ د گجرات پاچاسلطان بهادر (۹۳۲ــ۹٤۳) ځکه چه دده په تندی کښې دپښتنو دبرم نخښې لیدلې ، نودده روزنې‌ته خو را سرا ښ ؤ، وائی سلطان بهادر په۹٤۰ ه کال د(آسیر) یا (رنتهور ) حاکم بر ها ن الملک ته ۳۰ کرو ر (مظفری)(٥)ور کړې چه د تاتار خان په سلا به ئې پر هغو لښکرو

لګوی چه د همایون مغل (٩٣٧ ـ ٩٦٣) جنګ لره ئی تا تا ر خا ن را غوندوی، په ٩٤١ ه کال تاتار خان دا ګرېدنیولو په نیامت (قصد) لښکری را وخوځولې اودبیانې کلائې چه دا ګرې په شاوخواو کښې ده و نیوله.

همایون د مغلو لښکری د خپل کشرورور میرزا هندال تر مشرتا به لاندې پسی را وایستلې د (بیا نې) په شاؤ خوا کښې لښکری سره محامخ شو ې که څه هم د تاتار خان دفوځ شمېر دمغلو پهمقابل کښې ډېر لږ ؤ، خو بیا هم مېړ نی تاتار خان له جنګه ډډه ونه کړه اوتر شاتګ ئې پېغو ر و با له دمغلو دلښکرو پر زړهئې برید و کړ ډېر مغل ئې په وینو او به کړل پای ته مغل له هرې خواپر را توی شول او ددروسو ونو میا لیو پښتنو ځلمو سره ئی وواژه، دده په وژله ئې لښکرو ماتې وکړه او مغلو بری و موند (١)

## میا ببن شاهوخپل لودی (٢)

میا ببن شاهو خپل لودی د میا عطا زوی د لودی پاچهی له امراؤ څخه ؤ، د سر هند حکومت ئیدرلود، بابر مغل چهپه ٩٣٢ ه کال د سلطان ابراهیم جنګته تللی او د ککهر درود پر غاړه ئی اړ و لـی ؤ ببن ورته ور غی او د بابر په دربار کښې به به داسی حا ل کښېچهدلاورخان خان خانان اودسلطان علاءالدین زامن ولاړوو؛ دی کښیناست (٣)

په ٩٣٢ ه کال ئی دسلطان ابراهیم تر مرګ وروسته تیت و پرك پښتانه پر ځان راغونډ کړل او سنبهل ئې کلا بند کړ، میا قا سم سنبهلی له با بره څخه مرسته وغوښتله، بابر د بابا قشقهاوهند وبیك تر مشر تابهلاندې لښکر ی

لکهنو بريد وکړ او د مغلو امراؤ له لاسه ئې وکيښې، با بر چه د بيا ئې له جنګه بريالی خلاص شو يو لوی لښکر ئې د محمدسلطان ميرزاتر مشر تابه لاندې د ببن خېلو لره وګمارهٔ دا فوځ چه تر ګنګا و ر پور يو ت د با بر په قول ببن لکهنو خوشی کړ(۱) په ۹۳٤ه کال چه پښتنو اميرانو جرګه وکړه او سلطان محمود ئې پاچا کړ، دی هم په دغه جرګه کښې منلی غړی ؤاو په ۹۳٤ه کال او ۹۳۵ه کال چه سلطان محمود لودی له بابر مغل سره جنګيد، دی ئې له لويو حربی ار کانو څخه ؤ، د ۹٤۲ه کال په شاوخوا کښې د شير خان (شير شاه سوری) مل شو (۲) په ۹٤٦ه کال لاژوند ی ؤ او شيرشاه ته ئې د تخت نشينی رسالا ور کړه (۳)

## شيخ علی سرور لودی ((رح))

شيخ علی سرورشا هو خېل لودی چه دملتان په (کهرور) کلی کښې (٤) اوسېده، دخپل وخت منلی مرتاض اومستجا ب ا لدعواة سړی نه ؤ، وايی دېرش کاله ئې پښې و نه غزولې او تل به د خدای پاك په نما نځنه بوخت ؤ، لوی کرامات به څنې څرګندېدل په سهرورديه سلسله کښې ئې ارشاد کاوه (۵) ډېر خلق ئې ګروهېدلی وو، مريد انو ته به ئې هدايت کاو خلق به ئې سمې لارې ته رابلل، دتصوف اوسلوك په رموزو ډېر ښه پوهېده، په پښتوژبه ئې تصو فی اشعار هم شته لکه دا :

| | |
|---|---|
| محبت پيالهٔ می نوش کړه په مجاز کی | د حق نور و ينم په ستر ګو دا ياز کی |
| درست وطن راته در ياب شو بې ديد نه | ديدمی نشی مګر خدای می سبب ساز کی |

ای سروره! غمازان شول بې حسابه　　　پاك الله دی صورت تش بې مغزه پیاز کی (۱)

## × دوهم شیخ احمد لودی ((رح))

شیخ احمد «رح» دا کبر مغل (۹۶۳ــ۱۰۱٤) معاصر دی، په خپل وخت کښی خو راملی ستا نه او متشرع سالك وُ، ډیرې خوارۍ ئې کښلې کرامات او خوارق ځنې ښکاره شوی دی، دپښتو په (حاجی پور) کښی او سېد.

وائی کله چه اکبر مغل پر (پښتنه) برید کا وه شیخ په خوب کښی دا پیښه لیدلی وه سهار ئې خپلو مریدانو ته وویل چه دا ملك د پښتو له لاسه ووت اومغلو ته ور کړ شو! خپلی کلای سره گوښه کوی؟

لنډی ورځی نه وې تېرې شوی چه مغل اکبر له آگری لښکری وروخوځولې او پښتنه ئې دپښتنو له لاسه و کښلې (۲)

## دشاهین خان کورنی (۳)

شاهین خان دملك فیروز خان زوی دسلطان بهلول تور بور و، په ۸٤۳ هـ کال چه دسلطان محمدشاه په حکم ملك سکندر تحفه او جسرت ککهړ پر سرهند یرغل و کړ پښتا نه د پنجاب غرونه وختل دیا چاهی لښکر و مشرانو، د پښتنو مشر ان لکه ملك فیروز او نورو په دره وهو درغل تېر ا پسته خپل فوځ ته ئې دخبر و اتر وله پاره راو بلل، بیا ئې تول ونیول او دیا ته پښتنی لښکر واوکله و دنیو لو ه پاره ئې لښکری دغر وڅو کو ته پسی و گمارلې سلطان بهلول چه هغه وخت په ( ملك بهلول) یادېده کلې ئې د غر و ځگو

دپښتنو خوښد ومیندو سا لوګـان او پېرونی دغلیم لەلاسه وژغورل پرپښتنی ننـګه ئې ځان نداى (قربان) کړ، کـکریده ئې جسرت ګـګـړ ته راوړه شوه اوغلیما نو ئې دجسرت په دربار کښې پەمېړانەآفـرینونه وویل (۱)

## شېرخان شاهوخېل لودی

ننـګیالی شاهین خان چه وواژه شو، یو کوچنیزوی ئې (شیرخان) پاتەشو سلطان بهلول دا دتور بره دژوند نخښه دخپلو زامنو په څېرور وزلەاوپه سرهند کښې ئې پټی (جاګیر) وروبا خښه، شیرخان چه ځلمی شو دسلطا ن بهلو ل د کورنۍ له مېړنیو شخصیتو څخه شو اوپه ټولو جنګو کښې دسلطان ترخنګ دیوه زمریالی پښتانەوفادار اوخورا مطیع کشرپه توګه ولاړ ؤ.

سلطان بهلول چه په ۸۹٤ه کـال کښې پوره پرې کړ، اوسلطان سکندر پاچا شو، شېرخان ئې پخپلو امیرانو کښې دا خل کړ .

شیر خان په۹۱۰ه -۱۵۰٤ع کال ومړاومحمد خان او احمدخان نومی دوه زامن ئې پاته شول .

## محمدخان لودی

شېر خان چه ومړ سلطان سکندر ئې منصب محمد خان مشرزوی‌ته ورکړ دسلطان ابراهیم په وختو کښې هم (محمد خان) پر دغه خپل منصب پاته ؤ ، په ۹۳۲ ه کـال ابراهیم دپانی پت په ډاګ کښې ووا ژه شو او پا چاهی له پښتنو څخه ولاړه، محمدخان سرهند (خپل پلارنی جاګیر) ته ولاړ، دنیائې

هم دی له ابرا هیمی امیرانو څخه ؤ په ۹۳۲ه کـال ئې د سلطان ابراهیم تر څنګ د پانی پت د جنګ په ډاګ کښې پر ښتنې ننګه سر ور کړ .

## اسدالله خان لودی

اسدالله خان د احمد خان لودی زوی ؤ، د پلار تر مړینې وروسته د خپل اکا محمد خان سره په سر هند کښې پر خپل جا ګیر او سېد .

په ۹٤۷ هـ کـال ۱۵٤۰ ع کال چه همایون مغل د پښتانه شېرشاه له توری څخه هندوستان پر ښود او بېرته په هند کښې د پښتنو پاچاهی قا یمه شوه ، شېرشاه دې ورو غوښت د زروسپرو مشر توب ئې ور کـړ او په بهار کـښې ئې جا ګـیر ورو باخښه ، تر ۹٦۰ هـ کـال ۱۵۵۲ ع کـال پورې چه (عد لی) پر پاچاهی کـښېناست، دی پر خپل منصب پاته ؤ ، مګرخو نـګه چه ( عدلی) پر پاچهی کـښېناست، دده جا ګـیرئې ځنې ضبط کـړ ، اسدالله خان هم ځنې خوابدی شو . د (عدلی) حریف سوری سـکندر ته چه د پنجاب حاکـم ؤ، ولاړ هغه د ډېر و نازا وه ، او په درنه سترګـه ئې ورته کـتل ، مـګر ډېر ژر په ۹٦۳هـ کـال پر سلطان سـکندر سوری پخپله نسـکوره شوه ، مغلو بیا د هند پاچاهی و نیو له ، اسد الله خان خپل لنډ پا ته عمر په سر هند کـښې پر خپل پخې (جا ګـیر) تېر کـړ او په هغه (۹٦۳ هـ کـال ۱۵۵۵ ع کـال) ومړ .

دوه زا من ئې پا ته شول چه یو رحمان خان او بل حقداد خان نـومېد. رحمان خان (مالوې) ته ولاړ او هلته دهغې لتې د پښتانه پاچا (باز بهـادر) په امیرانو کـښې داخل شو .

# محمد نور خان لودی

دمحمد نور خان پلار محمدشېر خان چه دعبدالله خان زوی دالله یار خان لمسی دسعدالله خان کړوسی داحمد یار خان کوسی اودنوموړی رحیمداد خان کودی دی ، د ډهلی په پاچاهی فوځ کښې منصبدار ؤ ، په یوه جنګ کښې ووا ژه شو ، محمد نور خان پخپله خورا توریالی سپاهی، منلی پهلوان، و تلی غښتلی باز ، د کسرت شوقی او بی ساری غښتلی ؤ ، دده دقوت او پهلوانی نکلو نه چه کېږی عقل هېښ پاتېږی ،

دې لودی پهلوان چه له خپلې کورمې سره د(متهرا) دسیمې په(مهابن) نومې ځای کښې اوسېد، د بیانی دشاؤ خوا پښتانه غښتلی پرځان را غونډ کړل او د (جسونت راوهولکر) (۱) مل شو ، د(هولکر) په ملګرتیا کښې ئې ځړ ګندی مېړانی وکړلې .

بیاد انګریزی جرنیل (لار ډلیك) لهخواد یوی پلټنې مشرو ټاکه شو . په ۱۲۱۹ ه کال ۱۸۰٤ ع کال چه لارډلیک دبهر تپور په کلا کښې (جسونت راوهولکر) کلابند کړی ؤ؛محمد نورخان لودی هم ور سره مل ؤ، یوه ورځ محمد نور خان د خپلو څو تنو ملو سره مخامخ پر کلاوروخوت ، مګر ځکه چه تر شائې څوك په مرستهورونه رسیدل، محمد نور خان مجبوراً له کلا څخه بېر ته را کښته شو ، په دغه جنګ کښې د محمد نور خان ټول سرت (جسم) د ګولیو له لاسه غلبېل غلبېل شوی ؤ،لار ډلیك ددغه خدمت په بدله کښې دمیرټهه پهسیمه کښې یو کلی محمد نور خان ته دجا ګیر پهتو ګه ورکړ چه تراوسه پوری ئې دلمسیانو پهلاس کښې دی ، پخپله محمد نور خان

# الهداد خان لودی

الهداد خان دمحمدنور خان زوی ، لمړی دانګریزی حکومت له خوا په (علی ګړه) کښې مامور ؤ، بیا چه انګریزانو دستلج دسیندرا په دې خوار یاستو (لکه پټیالې او نابهه ریاست) سره دسرحداتو تاکلو لره یوهیئت وګماره ، الهدا د خان هم په دغه هیئت کښی ؤ او دنابهه دریاست یوې علاقی (املوه) ته ولاړ ، په دغه وخت کښې دنابهه ریاست دمړه جسو نت سنګهه د ښځی (رانهی چاند کور) ترمشر تابه لاندې ؤ ، ځکه چه (مهارا جابهر پور سنګهه) امسی ئې لا کمکی ؤ.

(رانهی چاند کور) چه د الهداد خان لیاقت ولید؛ دی ئې د (املوه) تحصیلدار وټاکه، څو ورځی وروسته د (املوه) تهانه‌دار شو. په ١٢٧٤ هـ کال ١٨٥٧ ع کښې چه د انګریزانو پر ضد دهند مسلمانان او هندوان را پاڅېدل، او اله ګولهٔ ئی جوړه کړه، انګریزانو د لودهیانې د سیمې انتظام دنابهه دریاست ځلمی مها راجا (بهر پور سنګه) ته وسپاره (مهاراجا بهر پور سنګه) چه کوم فوځ د لود هیا نی ساتنې لره وګماره، الهدادخان دغه فوځ مشر ؤ، هلته ئی په یوه جنګ کښی ملی یا غیانو ته ماتې ور کړه او ددغه غیر قومی خدمت په بدله کښې دنابهه د ریاست جوډیشل حاکم (دعدالتی محکمې مشر) مقرر کړ شو، بیا د مها راجا دخاصی عدالتی محکمې مشر منشی وټاکه شو په ١٢٨٠ هـ کال ١٨٦٣ ع کال ومړاو دا دری زامن ئې پاته شول:

## محمد عبد الحکیم لودی :

**« دشوکت افغان مؤلف »**

محمد عبدالحلیم خان لودی دالهداد خان لودی کشر زوی دی پلارچه ئی په ۱۲۸۰ هـ کـال . کښی مړ کیده، دی دلبر عمر ؤد نابهه د مهارا جاله خوا پر کور تنخوا ورمقرره شوه (۱)

څو کـاله پس چه محمد منور علیخان ورور ئی د پنجاب د لفټنټ گورنر منشی وتا که شو ،دی دهغه پر ځای د نابهه دریاست دمهاراجا دخاصی عدالتی محکمی میر منشی مقرر شو (۲)دی یو قانون دان وکیل ؤ(۳) تاریخ جامع د ده تالیف دی چه په ۱۳۲۵ هـ کال۱۹۰٦ع کال کښې ئی لیکلی دی شوکت افغان دتاریخ جامع دریم ټوك دی .

## محمدحسن خان لودی :

محمد حسن خان لودی دالهداد خان کشرورورؤ. عربی،اوپارسی متداول تعلیم ئی کړی ؤ .

تر ۱۲۷٤ هـ کال ۱۸۵۷ع کال دمخه دلود هیانی ده پټی کمشنر(ر کټوس) سرشته دارؤ، بیاداود یانی دمقنن مجلس صدر شو ،بیا دنابهه دریاست مدارالمهام شو، په۱۲۹۷هـ کال۱۸۸۰ع کال حج ته ولاړ له هغه ځایه چه راغی په۱۲۹۸هـ کال ۱۸۸۱ ع کال ومړ .

## دخانجهان لودی کورنی (٤)

د(خانجهان)خطاب که څه هم دخلجیانو له دورې څخه بیاد مغل شاه جهان تروختو پورې په هند کښې تقریباً ٤٥٠ کاله رواج ؤ، خو په دغه اوږده

او دغه کور نۍ چه اوس ئې مونږ بحث کوو، همدغه (خانجهان لودي) ته منسوبه ده:

وائې: د سلطان سکندر لودي په وختو کښې چه د تاتارخان زوی (ناسیا له دولت خان لودی) دپنجاب واکمن ؤ، دده دیوه خپل، احمد خان مابی خپل (۱) یوسف خپل (۲) لودی ځلو رزامن: دولت خان (چه بیا شېرخان شو) (۳)، نصرت خان، پهاړخان (بهادرخان) اوموسی خان لاهور ته ورغلل، ناسیاله دولت خان دوی ونازول مناصب اوجاگیرونه ئې ور کړل نصرت خان ته ئې لورهم پسې ورکړه (٤)

سلطان سکندر چه خبر شو دوی ئې خپل حضورته راوغوښتل، وئې نازول اوبېرته ئې خپلو جاگیروته رخصت کړل (٥)

په ۹۳۲ هـ کال چه بابر مغل پرهند یرغل وکړ، اود پښتنو پاچاهۍ ئې ړنګه کړه. شېرخان، نصرت خان او پهاړخان یابها درخان (بهار) ته ولاړل او هلته په ۹۳٤ هـ کال د (سلطان محمود لودی) په مغولښه کړو کښې وتل چه دمغلو جنګ لره راغونډېدلی. (٦)

---

(۱) حیات افغانی ۲۸۳ مخ

(۲) شوکت افغان ۳ جلد ٦۸ مخ مګر د ماثرالامرا په لمړی جلد ۷۱٦ مخ کښې شاهو خپل ضبط دی.

(۳) ځکه چه دده اود پنجاب دواکمن (ناسیاله دولت خان) نوموته سره یو شی

ؤ، نودالتباس دورکولو دپاره ناسیاله دولت خان له خوا دده نوم شېرخان کړ شو، او په

# شېرخان لودی

دملك احمدزوی (شېرخان) دسلطان محمود لودي په لښکرو کښې دشېر خان (شېرشاه سوری) سره چه په هغوو ختو کښې د بهار د یو ې سیمی واکمن او دسلطان محمود د فوځ منصبدارؤ، وپېژاندل له همدغه امله ئې په شېر شاهی پاچاهی کښې ز ښت ډېرا عتبار وموند .

په ۹٤٦ ه کال چه شېرشاه خپل نمشرزوی قطب خان د (مالوې) حکومت لره وګماره همدغه شېرخان لودی د(اتالیق) به‌حیث ورسره ؤ.

په۹٤۲ ه کال چه مغل همایون د میرزا ناصریادګار اوسکندر سلطان (۱) ترمشر تابه‌لاندې لښکری په(مالوه) وروبهولې(کالپی) ته نژدی(۲) دقطب خان دلښکر واومغلو جنګ سره ونښت، په‌جنګ کښې قطب خان او شېرخان لودی دواړه په‌خورا میړانه‌ووژل شول اودقطب خان ککرئ آ ګری ته واستول شوه (۳)

شېر شاه چه‌دشېرخان لودي په وژله خبرشو دده څلور زامن :

عمرخان ، کمال خان ، قاسم خان اومحمود خان ئې له‌پټنې راوبلل ډېر ئې‌ونازول ، هریوه‌ته‌ئې بیرغ ونغاره‌چه‌دسرداری نخښې وې، ورکړې، عمرخان ئی له‌ځانه سره وګرزاوه اونورئې بېرته خپلو جاګیروته رخصت کړ ل (٤)

## عالم خان لودی

(دعمر خان خسر)

په ۹٤۳ ه کال چه شهزاده لطیف خان زوی ، ددوهم سلطان مظفر لمسی

گجرات کښې پاچا کړ شو ، د پاچاهۍ ټول واک دده وزیر (دریاخان غوری) (۱) او عماد الملك په لاس کښې ؤ پرده د پاچهۍ تش نوم پر وت ؤ ، مګر عماد الملک هم ډېر ژر له منځه واخیست شو او د ملک او پاچهۍ واک یوازې دریا خان ته پاته شو (۲) .

ټکل کاچه : سلطان محمود په ۹۵۰ ه کال کښې د (احمد آباد) له ارګه ښخه د شپې په یو چم « دولقې » (۳) او « دندوقې » (٤) جاګیر دار عالم خان لودی ته ځان ورساوه ، عالم خان ئې ډېر احترام وکړ ، دریا خان وزیر چه په دې خبر شو سمد ستې ئې یو هلک د « مظفرشاه » په نامه د (احمد اباد) پر تخت کښېښنا وه او لښکری ئې د ( دولقې ) لور ته وخوځولې ، د سلطان بهلول لودی زوی ( سلطان علاء الدین ) چه د سلطان بهادرشاه ګجراتي په وخت کښې ئې د ګجرات دربار ته پناه وړی وه هم په دغه جنګ کښې د دریاخان ملګرؤ (۵)

میړنی عالم خان چه په خبر شو ګجراتی سلطان محمود ئې له فوځ سره په کلا کښې پریښود او پخپله د شلو زرو سپرو سره جنګ ته راووت ، په لومړی حمله کښې د دریاخان غوری سرلاری (مقدمته الجیش) ماتې وکړ او عالم خان په وژلو وژلو د غلیم د لښکرو په منځ پسې ور ننوت چه له جنګه راووت خپل ملګری ئې تر پنځو تنو زیات نه وه ورسره پاته .

د ځانه سره ئې فکر وکړ چه د دریا خان د لښکرو مخ کښې ماتې هر ومرو اوس احمد اباد ته رسېدلی ، او خلق د دریاخان په مغلوبیت خبر شوی دی باید

میړنو سره آسونه پونده کړل اوځانو نه ئې ښارته ورسول، په پاچهی دربار چه ننو تل د خپلی سو بی د ننه وره ئې وو هله - د ښا ر خلقو چه د مخه لاد دریاخان دلښکرو ماتې لیدلې وه، پررا غونډ شول، دریاخان غو ری چه دعالم خان پاته لښکرو ته ما ته ور کړه، اوپه پوره زړه ښار (احمد اباد) ته راروان ؤ. ښار ته لا نه ؤرارسېدلی چه دښار دروازې ورته تړلې او کورئې تالاشوی ؤ، داحال چه د(دریاخان) ملوامیرا نو ولید، ځکه چه دډېر و کورونه او کهولونه د ننه په ښار کښې پا ته ؤ، له در یا خان څخه عا لم خا ن ته واوښتل. په دغه وخت کښې گجراتی سلطان محمود (پــاچا)چه عا لم خان دمخه لا خپل سړی (شیر خان) پسې لېږلی ؤ هم ښار ته راورسید دریاخان نوره ټینگه ونه کړای شوای(برهانپور) ته ئې مخ ونیو(۱)
او له هغه ځایه د کن ته ولاړ(۲)
گجراتی سلطان محمود، دعالم خان لودی په توره بیا پاچهی ومونده، خودا پاچاهی ئې هم د نامه پاچهی وه او دملك تول وا ک تردې حده پورې دعالم خان امیر الامر اء اوسپهسالار په لاس کښې ؤ چه دسلطان محمود دېوخورا ورتیرملگری (چر چی صیاد) ئې سره د دې چه سلطان ئې پر سیله کلك ولا ړؤ ، دده تر تخت لا ندې د سلطان علاء الد ین لودی دوژلی په بدله کښې په توره ټوك ټوك کړ (۳)
گجراتی سلطان محمود د دریا خا ن غوری له بند ه خلا ص شو، خو د عالم خان لودی په بند کښېووت، دعالم خان دایسته کولو له باره ئې په ۹۵۲ھ کال کښې څه امیران له ځان سره مله کړ ل ، او ناڅاپه ئې یوه شپه دعالم خان پر کور چه تر ښار دباندې (جمالپور دروازې) ته نژ دې ؤ کلك برید

عالم خان چه خبر شو پخپله ئی (پیټهاپور) ته ځان ځني ورساوه، مگر کورئی تالا او د کهول کوچني ولوی ئی د غلیم په لاس کښېوتل، سلطان په خورا درناوی له ځان سره وساتل، عالم خان چه (پیټهاپور) ته ولاړ، خپل تښتولی غلیم (دریاخان غوری) ئی له د کښنهځخه راوغوښت سره پخلا شول او د سلطان محمود د خرابیډ له پاره ئی په گډه کوششونه شروع کړل، میړنی عالم خان ته چه د کورمې په بند خوب نه ورته، ترهرڅه د مخه ئی د ځینو هغو پر خوا امیرانو په وسیله چه د سلطان محمود پهدربار کښې ؤ دخپل ورور صفدر خان دیر غمالتوب په بدله کښې (چه هغه هم دیرژر ځان ورته را ورساوه) د کها له، وارهاوزارهخوشی کړل، له دې خواچهد ادهشو توري ته ئي لاس کړ اود (سلطان محمود) له فوځو سرهئي ځوپلا جنگونه وکړل مگر سوبه ئي په نصیب نهشوه. پای تهئي لهدریاخان غوری سره دپښتانه سترتولواك (شېرشاه) دربار تهځان ورساوه، شېرشاه دوی دوا ړه ز ښت دیر ونا زول په مالوه کښې ئي دریاخان ته (اجین) اوعالمخان تهئي (سارنگپور) پهجاگیر کښې ورکړل (۱) او دعالم خان لورئي خپل یوهخورا پر گران امیرزاده دشېرخان او دی زوی عمر خان ته (چهدمشهورخانجهان لودی نیکه دی) وغوښتله (۲)

دریاخان پهمالوه کښېومړ اوعالم خان دسلیمشاهسوری تر مرگ (۹۶۱هـ) وروسته اغلباً په۹۶٤ هـ کال بیر ته گجرات تهولاړ او هلته دسلطان احمدشاه (چهدسلطانمحمودترمړینېوروسته پاچاشویؤ) په امیرانو کښېشامل او (برودہ) دهته (جانپا پیر) ددهیوخپل (أعظمهمایون) تهاو (کودهره) ئي الفخان مصاحب

داحمد شاه ددربار امیرانو دعالم خان غونډی تکړه اوا دعا طلبه امیر چه یو وخت وددغه دربار خورا مقتدر امیر ا لا مر اءاو سپهسا لار ؤ، موجودیت ځان ته خطر ګاڼه په ۹۶۶ هـ کال سیدمبارك اعتماد خان اوعما دالملك غونډی درنو امیرانو په سید پو ر کښې دعالم خان دخرابی دپاره لاس سره یو کړ اوعالم خان ته ئې حال ور کړ چه میدان پریږ د ه ، مګر میړ نی عالم خا ن دا کلمه ورای شوای، ځواب ئې ور کړ اوس چه تاسی پرما برید کوی ، میدان پریښو ول دمیړا نې ګوډنه دی، امراء پړاراغلل ، احمد شا ه کمکی پا چا ئې هم دځان مل کړی ؤ، جنګ و نښت په جنګ کښې دعالم خان مشر زوی قطب خان او یو وز تیر خپل ئې (اعظم همایون) له ډیر و پښتنو میړو سره ووژل شول اوعالم خان مجبور شو چه (جانپانیر) ته تر شاشي د ګجراتی امیرانو لښکرې سمی په پسې وی هلته ئې هم تپلنه ورنه کړ ه ، عالم خان د (پال ، غرو ته ځنی وخو ت او ګجراتی امیرانو خپلی لښکری احمد آباد ته راستنی کړی (۱)

دپښتون پښتانه جاګیردار (پولادی شیرخان) چه د ګجرات په امیرانو کښې په ثوره اومیړانه مشلی ؤ دعالم خان دا بده ورځ و نه زغملای شوای اوعالم خان ئې (پټن) ته و روغوښت، عالم خان هم له خپلی کوډمی او پاته لښکر و سره د شیر خان په بلنه دپال دغرو په لمن کښې ځان (پټن) ته ورساوه، هلته ئې د اعتما د خان دجاګیر پریو هسیمه (کړی) په ګډه برید و کړ اوځنی وئې نیو له ، اعتماد خان چه خبر شو، اختیار الملك اودریاخان حبشي ئې له درنو لښکرو سره له احمد آباده پښمی راوا پستل، جنګ ونښت په دغه جنګ کښې عالم خا ن پخپله وواژه شو، پولادی شیرخان اودعالم خان زوم عمرخان لودی پټن ته ترشا شول (۲)

## شجاع الملک لودی:

# عمر خان لودی

په۹٤٦ه کال کښې چه شیر خان په جنګ کښې ومړ او زامن ئې سوری شېر شاه و نازول نور ئــې خپلو جا ګیروته واستول یو عمر خان ئې په خپل دربار کښې را و ګرزاوه کله چه د ګجرات دپا چهی وزیر (عالم خان لودی) د شیر شاه دربار ته پناه ور وړه، شیر شاه دده لور عمر خان ته ور کړه. په۹٥۲ه کال چــه سوری شیر شاه شهید او سلیم شاه ئې پر ځای کښېنا ست، عمر خــان اودده ورور (محمود خان) ئې دقنوج . ګوالیار، بیانې او سنبهل خواوته د ملکی انتظام له پاره ولېږل .

په۹٦۱ه کال کښې چه د سوری سلیم شاه تر مړینې و روسته (عــدلی) پا چاهی ومو ندله دعمر خان دری سره ورونه (محمود خان، کمــال خــان، قاسم خان ) ئې دچپاړ په کلا کښې بند یان کړل، خو عمر خــان ځــان (مالوې) ته ځنې ورساوه او هلته د خسر (عالم خان لودی) په جا ګیر کښې پټ شو.

د۹٦٤ه کال د محرمې پر دوهمه چه پښتنو دپانی پت په ډا ګ کښې دا کبر مغل (۹٦۳ـ ۱٤ ۱۰) سره جنګ و کړ په دغه جنګ کښې دعمر خان دری سره ورونه (چه عدلی بېر ته خو شی کړی ؤ) په خو رامېړا نه ووژل شول.

عمر خان چه دوروڼو په ماتې خبر شو ګجرات ته ئې مخ و نیو برابر د ګجرات پای تخت ( احمد آباد ) ته ولاړ او هلته دعالم خان په مغر فی د ګجر ات

بی بی راجې نومېد لهعمر خان تهور کړله(۱)

په۹۸۰(۲) یا ۹۸۲ ه کال کښې(۳) چه اکبرمغل پر گجرات لښکری وروبهولې؛ شېرخان پولادی (٤) داحمد آباد کلا (د گجرات پای تخت) کلابنده کړېوه. سلطان مظفر گجراتی چه دغه له پاره شېر خان احمد آباد د نیوه اکبر مغل ته ځنې وتښتېد . دشیر خان اومغلوترمنځ چه جنگ وشو په هغه میدان کښې عمر خان لودی اودشېرخان پولادی یوزوی چه هغه‌هم عمر خان یامحمد خان نومیده ووژل شو•

# مسندعالی دولتخان لودی

مسند عالی دولت خان لو دی دعمرخان زوی په ۹۵۷ ه کال د گوالیار په کلا کښې وزېږېد موروثي دوزیرعالم‌خان لودی لوروه(دولت خان) چه ځلمی شو ، دحاجی خان‌امیر(٥) سره نوکراود (احمد آباد) په شاؤ خوا کښې (اتاوه) نومې ځای دده‌جا گیروتاکه شو ، پلار ئي چه‌په۹۸۰ یا ۹۸۲ ه کال لهمغلوسره په جنگ کښې‌ومړ ،دولت خان (سورت) (٦) بندر ته مخ‌ونیو.

---

(۱) مخزن افغانی قلمی ۱٤۷ مخ

(۲) تاریخ فرشته دوهم جلد ۲۳۳ مخ

(۳) خان جهان لودی ۸ مخ

(٤) پولادی‌شیرخان پښتون دگجرات یوخوراتوریالی امیرتېرشوی‌دی‌دده د توری اومېړانې نکلونه تردېروختو پورې په‌خولوکښې‌وو، یو وخت ئې په پنځوسو وپښتنو ځلمو دگجرات دېرش زری‌لښکر چه د (عمادخان نایب‌السلطنه) ترمشرتابه لاندې دفتح خان بلوڅ په مرسته پروړغلی‌ؤ مات کړ ( تاریخ فرشته دوهم‌جلد ۲۲۹ مخ)

(٥) حاجی خان‌ترین دسوری سلیم شاه‌پنځه‌زری‌امیراو دخواص‌جان‌ولی دخورمېړه‌ؤ دسوریو پاچهی‌چه ړنگه شوه، گجرات‌ته‌ولاړاوهلته‌دگجرات دنائب‌السلطنه (اعتماد خان)

په۹۸۳ ه کال د گجرات دمغل وا کمن ( میرزاعزیز کوکه خان ا عظم) له‌مصا حبینو څخه شو ، اوپه (جهانداره) کښې ئې جا گیرور کړ، په (سروهی) کښې چه‌را جپوتو پر میرزاعزیز کو که‌چه‌له گجراته‌ا کړي ته‌ئې بر یڼد و کړ دولت خان په توره دراجپو تومشرووازه شو او راجپوتو ماتې و کړه په دغه جنګ کښې دولت خان هم پر مخ ټپي شو په۹۸۵ (۱) یا ۹۷۹ ه کال (۲) چه دا کبر مغل لښکری دشهباز خانؒ کښبوپه مشری درا ناپر تاپ ځپلو لره پر (او دهی پور) اومیواړ ور وختلې او (رانا) ئې د (با نسوا ړې) غر و ته وتښتاوه دولت خان هم ورسره ؤ او دستاینې وړتوره ئې و کړه .

وایي په دغه سوق الجیشي کښې شهباز خا ن دخپلې بهادری دڅر گندولو له پا ره دټولو لښکرو تر مخ ته، مګر دولت خان به خپل آس ترشهباز خان وړاندي بیوه - دشهباز خان‌ورور عبدل‌خان آس پسې پونده کړاوددولت خان آس ئې پراوربوز په‌لر ګېی‌وواهه،دولت خان‌مخ پرراو گرز اوه او دخوشال خانؒ له دې بیته سره سم‌ئې:

که‌په‌توره ئې ځواب ور کړې‌مردئ ده
چه‌وجودي ځوك آزار کاندي‌په چوب

دعبدل‌خان آس پر کوناتي باندې‌داسې په‌توره وواهه چه بیارا پورته نه شو دشهباز خان په حکم دمغلو لښکری له هری خوا پرراتوی شوې - مګرتو ریالی دولت خان دخپلې غښتلی موټ او تېرې تورې په بر کت تردرست لښکر روغ رمې، ووت او خپل پښتانه‌سپاهیان چه پر را غونډ شول‌بیامغلي لښکرو خوله ور ته‌چوله‌نه کړای‌شوای، سباچه‌دعبدا لرحیم‌خان‌خانان‌په‌واسطه‌له شهباز خان سره پخلا شو ، شهباز خان یوآس وهرو باخښنه نورئې‌هم‌دپر خلاتونه ور کړل

سرلان واوسي، تردي وروسته د تو او لښکرو په مخ مخ کښي ځه » (۱)

په ۹۸۹ ه کال چه د اکبر مغل له خوا میرزا عبدالرحیم خان خانان دسلطان مظفر گجراتي ځپلو لره وگماره شو، دولت خان هم ور سره ؤ په دغه جنگ کښي دده اتلمېړانۍ په باب دماثر رحیمي مؤلف داسي لیکي :

« هغه مېړانی ، زړه ورتوب او بریدونه چه دولت خان اودی و کړل دزماني دهیخ نو موړي توریالي په وس نه دي پوره » (۲)

د (سند ه) په جنگ کښي دده دتوري نوم ولاړ . سره ددې چه اتیا کروه لار ئې په دو و روځو و هلي وه په د وو زړ و ستړو ستوما نو مېړ و ئې دمیرزا جاني بیگ مندهي لس زره (۳) یا پنځه زره (٤) لښکر ی ما تې کړې ځکه نو د سند ه سو به دده په نامه شوه او اکبر مغل دوه زري منصب ور کړ (٥)

په ۱۰۰٦ ه کال دد کن دوا کمن شهزاده دانیال له خواد ( مسند عالی) لقب ور کړه شو او خپل (مدار المهام) ئې وټا که کله چه شهزاده د خپل پلار (اکبر) په بلنه برهانپور ته ولاړ، دد کن نیابت ئې ده ته وسپاره دولت خان په دغه نیابت کښي دېر ښه اصول کښېښوول او غوره ضوابط ځني پاتې شول چه تر دېره پورې ئې دده داداري استعداد او تدبیر نمایندگي کوله (٦)

دولت خان داکبرشاه نجیب آبادي په قول د ۱۰۱۰ ه کال د برات پراته ویشتمه په احمدنگر کښي (۷) او دماثر رحیمي دمؤلف په قول په ۱۰۰۷ ه کال په برهانپور کښي (۸) او دمأثر الامراد مؤلف په قول د ۱۰۰۹ ه کال په پای کښي

---

(۱) ماثر الامرا ۲ ج ۹ مخ

(۲) ماثر رحیمي ۱٦۲۸ مخ

کښې دقولنج په ناروغۍ ومړ . (۱)

اکبر شاه لیکي: جنازه ئې برها نپورته یووړه شوه او هلته ښخ کړ شوه.

عبدالباقي نهاوندي وايي: خان جهان زوی ئې پر هدیره باندې یو خورا عالي عمارت ودان کړ او شاوخوا ته ئې یو لوی باغ جوړ کړ، خان جهان هلته یو کلی هم ودان کړ، چه (لودي پوره) ئې بولي (۲)

دولت خان دخپل وخت منلی زړور، وتلی توریالی او نوموړی مېړه ؤ، دتهټي او دکن په جنگو کښې دده توره او مېړانه تر ډېر وخت پورې یادېده له (۳) دده زړه ورتوب او توره د ټول هندوستان توریالیوا عیانو منله (٤) اکبر مغل تل دده له زړه ورتوبه څخه په بېره کښې ؤ، وايي کله چه د دولت خان د مرګ خبر ورورسېد شکر ئې وکیښ او د ربار یا نو ته ئې وویل:

«نن شېرخان سور له دنیا ولاړ!» (٥)

دده دزړه ورتوب خبرې تر ډېره وخته پورې خورا مشهورې دي نکل کا چه: یو وخت داکبر مغل خورا ورتېرا وپر ګران وزیر شیخ ابوالفضل په یوه مجلس کښې وویل:

«هندوستانۍ توره کتابورا وړې ده مګر موز تر او سه لید لې نه ده!»

دولت خان په دې کنایه وپوهېد؛ په مجلس کښې پاڅېد توره ئې وکښله او ورته وئې ویل: «هندوستانۍ توره دغه ده که مې پرځړېد ووهلې

ترکونې پورې به دې دوې ټوټې کړم»

ابو الفضل وزیر یو پیل اوه پر خلا تومه د دولت خان ته ور کړ ل . (۱)
یو لقلی بیگ انیسی دده په ستاینه کښې وائی:

به دولت‌خان که دولت خانهٔ او ست  می بهرام در پیمانهٔ او ست
چو عزم کین کند بر قیمانی است  چوحزم آئین کند فاروق ثانی است

نظیری نیشاپوری، مولانا عرفی شیرازی او ملا شکیبی اصفهانی هم دده په ستاینه کښې اشعار لری (۲)

## محمدخان لودی

محمد خان ددولت‌خان مشر زوی ؤ

وائی په نوی ځلمیتوب کښې له پلاره خوابدی شو او له خپل کشر ورور پیرخان سره ئې بنگالې (۳) ته مخ ونیو، هلته چه ورسیدل کله چه دوی غوښتل چه ترسپن پوری وزی او ښارته ورشی پر بېړ یو جنگ پیښ شو، په دغه جنگ د بنگالې د راجا (مان سنگه) د وړو یرونه د محمد خان او پیر خان د ملگرو له لاسه ووژل شول، راجا چه په دی نکل خبر شو دیرش زره روپۍ ئې ورته راولیږلې اوددی له پاره چه له راجپوتو څخه ځو رونه وینی له هغه ځایه څخه ئې بیرته رخصت کړ ل (٤)

محمد خان د پلار تر مړینی وروسته د مغل شهزاده (دانیال) مصاحب شو داکبر شاه نجیب آبادی په قول په ۱۰۱۱ هـ کال او د مآثر الامراء د مؤلف په قول په ۱۰۱۰ هـ کال ځوانیمرگ شو .

# خان جهان لودی (۱)

دخان جهان نوم (پیرخان) دی په۹۹٤ه کال زیږیدلی دی(۲) دپلارتر مړینی وروسته دمغل شهزاده (دانیال) مصاحب شو، دده لیاقت ډیر ژر مغل شهزاده مجبور کړچه ددده دپلار (دولت خان) ټولی چارې ده ته وروسپاری او په ډیره درنه ستر گه ورته وگوری.

د۱۰۱۳ ه کال په پای کښې شهزاده دانیال اوورپسې په۱۰۱٤ ه کال ئې پلار (اکبر) ومړ جهانگیر مغل پرتخت کښیناست-پیرخان ئې اگرې ته وغوښت (صلابت خان) خطاب اودرې زری منصب ئې ور کړ (۳)

په۱۰۱۵ ه کال چه جهانگیر کابل ته ته، له ځانه سره ئې کابل ته بوت چه بیرته راستون شو پیرخان ته ئې د(خان جهانی) لقب پنځه زری منصب او د(زوی والی) دخطاب اعزاز ور کړ.

و ایی خان جهان پرجهانگیر پاچا تردې حده گران ؤ چه غوښتله ئې دبا بری پاچا هی کورنۍ یو مغله نجلۍ ور کړی خو خان جهان داونه منله او پښتنی وینه ئې له گډونه ځخه وژغورله.

جهانگیر مغل دده هری خبری ته غوږ نیــو اودده خواهش ئې هیڅکله نه رداوه دده په زړ په دخان اعظم مرزا عزیز کوکه، عبدالرحیم خان خانان اوماسنگهه تروژلو تېرشو ، په هره خبره کښې ئې له ده سره سلا کوله او هیڅکله ئې دنوکر په ستر گه نه ورته کتل په۱۰۱۹ ه کال دد کن وا کمن شهزاده پرویز ته دیوه سیاسي مشاور او حربی سپهسالار په حیث ورولیږل شو، دده په ورتگ دد کن دجنگ نقشه واوښتله، د(احمدنگر) دپاچا (نظام الملک) لښکر و څو پلاما تې ځنی

سره روغه و کړي.

تردې سوبو وروسته دد کن منتظم اودشهزاده پرويزاتا ليق عبدالرحيم خان خانان ا کړې تهوغو ښتشو اودد کن انتظام اودشهزاده اتاليقي خان جهان ته وسپارله‌شو.

په ۱۰۲۱ ه کال چه‌خان اعظم ارادت خان دشهزاده پرويزاتاليقي لره و گماره شو ده‌ته يوائې دد کن سپهسالاري ورپاته‌شـوه‌ډبالا گـهاټ اوخاندیس ترسوبو وروسته په‌پاچاهي حکم ديوې ياغي اوسرحدي سيمي (برار) وا کمن وتا که شو اوجهانګير مغل دپرخلاتو نه ورواستول.

په ۱۰۲۳ ه کـال د گجرات دولايت حاکم‌شو خو يو کـال لانه‌ؤ بشپړ شوی چه شهزاده پرويزبياد پاچاپه‌اجازه برهان پور ته وغوښت.

په ۱۰۲٤ ه کـال پاچا پايتخت ته‌وروغوښت خان‌جهان چه‌اجمير (۱) ته درې مزله ورنژدې‌شو مغل پاچاخپل زوی شهزاده خرم (شاه‌جهان)مخې تـه ورته راويوست چه‌داجمير يوه مزله ته‌وررورسيد پاچاخپل درې وزيران آصف‌خان وزيراعظم،دنورجهانی ملکې پلار(اعتمادالدوله) اومهابت خان هر کـلي ته ورولېږل په‌اجمير کښې دده‌له‌پاره‌دپاچا په‌حکم‌يوه‌خوراد رنه‌خيمه‌ودرولې‌شـوې‌وه چه‌در بارته‌ورغی‌پاچادغېږي روغبړ (معانقه)ورسره‌و کړه‌اوزښت‌ډېرئې‌ونازاوه.

## دملتان حکومت

په ۱۰۲۹ ه کال ددهلي دربارو غوز يدیء چه دايران‌صفوي‌پاچهی دقندهار دنيولو نيت لري ځکه ئې ژوخانجهان دملتان حکومت ته‌و گماره ، په ۱۰۳۱ ه کال چه شاه عباس صفوي پر قندهار يرغل‌و کړ ، خانجهان‌غوښته چه‌خپلې

دقندهار له نیولو او دقزلباشو له مقابلې څخه جداً منعه کړ .

وایي خان جهان چه په ملتان کښې ؤ ، دقندهار دپښتنو جرګې ور ته راغلې چه زمونږ مالی وضعیت وران دی که ته سپاره ته(پنځه تنګې) دو رځې او پلی ته (دوې تنګې) دورځې تنخواو تا کې مونږ بهستا په مشر تا به تر اصفهانه پورې ټول ملك درونیسو ! خان جهان چه دمغلو او قزلباشو د غبرګو مقتدرو پاچهیو دمخالفت توان په پښتنو کښې نه لید؛ منفی ځواب ئې ورکړ او ورته وئې ویل :

« که مغل پاچا (جهانګیر) زمونږ اوستاسی دا اتفاق وو یني ریښه به مو په نوسی. وکاږي او زماد اپر خپل کام نه پرېږدي » . (۱)

## دګجرات حکومت

په پای تخت کښې دو لی عهدۍ له پاره له ډېره وخت شخړې روانی وې پخپله جهانګیر غوښتل چه شهزاده پرویزدې ولیعهد شي ، مګر دپاچا محبوبې ملکې (نور جهانی ) دخپل زوم شهزاده شهریار (۲) له پاره زیار یوست، اوشهزاده خرم (شاه جهان) دځان له پاره کوښښ کاوه .

په ۱۰۲٤ ھ کال له شهزاده پرویز څخه دخانجهان بیلو نه د دې نکل یوه برخه ده او نور جهانی ملکې په پاچادا کار ځکه وکړ چه غوښته ئې له یوې خوا دشهزاده پرویز په چارو کښې څه و رانی راشي او دپاچا زړه ځنې بدشي اوله بلې خوا خانجهان غوندې منلی مدبر او تو ریالی شهزاده شهریار په ولیعهدۍ کښې دځان منل کړي ، مګر باوفا خانجهان چه دربار ته راغی په هیڅ چم دچمو د نورجهانی ملکې (چه دپاچهۍ ټول چارې ئې په لاس کښې وې)

در بار کښې دپاچا تر مخ دشهزاده پرویز پر مخا لفت وتړاته .

وفا او مرت ورو ، ورو پر خانجهان ددربارغولی تنګ کړ ، دیوې ګرانې ملکې اویوه مقتدرشهزاده بدۍ په پسې شوې ، کرار کرار مخالفین بریالی شول په جهانګیرئې شاهزاده پرویز دبنګال وا کمن کړ اوخان جهان ته ئې په۱۰۳۳ ه کال دګجرات حکومت ور کړ یو دهیوادلمرختو اوبل دهیواد لمرلویدوته ولاړه ، مګرژر دشهزاده خرم (شاه جهان) بغاوت جهانګیرمجبور کړچه شاهزاده پرویز بیرته برهانپور ته را تبدیل اوخانجهان ئې ور اتالیق او مدار المهام کړی په ۱۰۳۵ ه کال چه شهزاده پرویز ناڅاپه په (برهانپور) کښې ومړ دبرهانپور خاندیس او برار حکومت خان جهان ته تکیه وکړه . خان جهان په دغووختو کښې د ملک عنبرحبشی زوی (فتح خان) ته کلکی ماتې ور کړې

## دشهزاده خرم اتالیقی

بلارته پورته شوی شهزاده خرم چه دشهزاده پرویز له تورۍ بریښه دا پران په نیامت ترټټهی (سند) تېر بده؛ دشهزاده پرویز په مرګ خبر او بېر ته راستون شو . پاچاهی در بارته ئې دخانجهان قربوسیله کړ . جهانګیر هم دخان جهان په زړه وباخښه او دد کن چاری ئې ور وسپارلې ، خان جهان ئې په اتالیقی ورو ګماره .

## د(مالوې) برید

د۱۰۳۷ ه کال دصفری پراته ویشتمه جهانګیر مغل ومړ ، مغلی شهزاده ګان یو پر بل سره راو غورځیدل ، دری میاشتې دتاج او تخت له پاره د مغلو په خپلو منځو کښې جنګونه روان وو ، خان جهان لودی چه دښتنو دپاچاهی

دا ړودوړدخپلی آرزوله پاره یوه مناسبه موقع و گڼله او داحمد نګر له نظام شاهی
حکومت سره ئې چه له ډیرو کلو راهیسی دمغلو دهلی پاچهی دښمن او حریف
ؤ دبالا گهاټ دسیمی ( چه پنځه پنځوس زره درمه ئې کالنی مالیه وه ) به
ور کړه روغه وکړه (۱)

خان جهان چه دبرهانپور، خاندیس او برار له ورڅرمه حریف
حکومت سره روغه وکړه له اوله دې خوائې زړه، پوره شو - برهانپور ئې
سکندر دوتانی ته وسپاره او پخپله ئې لښکری دمغلی پاچهی یوې ورڅرمه
سیمی (مالوې) ته وخوځولې چه دمغلی حاکم (مظفرخان) له لاسه ئې وکاږی
مگر دپښتنو له بده مرغه په دغه وخت کښې (شهزاده خرم) پر خپلو حریفانو
بری ومومند او ددغه کال دخلورمی خورپه میاشت کښې ئې د(شاه جهان) په
نامه دپلار پر تخت قدم کښېښود، دشاه جهان دا سی ژر کامیابی دخان جهان
نقشه په خاور وولړه له او مجبور رأ ئې لښکری بېرته د مالوې له پایتخت
(ماندو) څخه برهانپور ته ستنې کړې (۲)

## اووه زری منصب

شاه جهان چه څرنګه پر تخت کښېښوست، خان جهان ته ئې بېرته دېخوا په
څېر دکن، برار او خاندېس حکومت ورکړ، ور پسې د۱۰۳۷ه کال د رجب
په لومړی ورځ چه شاه جهان دامیرانو دنازو لواورتبو تاکلو له پاره شاهی
جشن جوړ کړ، خان جهان ته ئې په غیاب کښې اووه زری منصب (چه دغه وخت
په اصطلاح سره دوه اسپه او سه اسپه سپاره وو) ورکړ (۳)

یمین الد وله آصف‌خان تر خان جهان زیات منصب درلود او بس (۱)

## د(مالوې) حکومت

دشاه‌جهان مغل دشهزادگی په وختو کښې لاخان جهان‌ته تورپر تندی شوی ؤ خود جها نګیر تر مرګ وروسته دپاچهی په‌شخـړو کښې د شاه جهان سره نه‌مرستې، دنظام شا هی حکومت سره‌روغی‌او پر خپل سر دمالوې ربېدې اورته بښه‌لمن ووهله ــ مګرمدبرشاه جهان د وخت له تقا ضا سـره سم‌پرمخ ته اوتر خوچه‌ئې ځان ښه نه‌ؤ سره چمتو کړی، ددې مخا لفت لـه څر ګندولو څخه‌ئې ځان ژغوره، خو کله‌چه‌ئې خپل‌موټ‌مړوچولید، سمدستی ئې د۱۰۳۷ ه کال دروژې‌پر پنځلسمه له‌خان جها نه څخه دد کن خا ند پس اوبرار حکومت واخیست او خپل یوه معتمدامیرخان‌خانان‌مها بت خان ته‌ئې وسپارهٔ،او خا ن‌جهان‌ته‌ئې دما لوې کو چنی حکومت ور کړ (۲)

شاه‌جهان په‌دې‌تبدیلی‌سره‌له‌یوې‌خواخا نجهان‌اوور سره‌روغ نظام‌شاهی‌حکومت سره‌بېل کړاو له‌بلې‌خوائې‌خان‌جهان‌له سرحدی‌سیمو څخه‌پا یتخت‌را نژدې کړ.

## دجهجار سنګهه جنګ

څر ګکه چه‌خان‌جهان مالوې ته ورسپږدستی، دیاغی جهجهار سنګه‌بندیله ځبلو لزه دمهابت خان خان‌خا نان‌په‌مرسته‌و ګماره‌شو ــ خان جهان د( نرور) له‌خوا خپلی‌لښکړی دجهجار سنګهه‌پر کلا (اوندجه) وروستلې اود کلا په‌درې کرو هی (کندار) کښې ئې‌ورته واړول، مهابت‌خان‌د ګوالیار له‌خوا پر راغی جهجار سنګه ئې‌دروغی د رخواست ته‌مجبور کړ اودمها بت‌خـان په‌وسیله دشاه جهان دربارته په ننواتوورغی ـ پا چا د جهجار سنګه څه‌جا ګیر خان

## دآگرې نظر بندي

خان جهان چه دتخت نشینئ دمبار کي له پاره پا یتخت ته نه ؤراغلـی دجهجار سنگه دا پلېدلوزېرې ئې پامه کړ، دا گري دربارته له (کنداره) څخه ورغی دتخت نشینئ مبار کې اودسو بې زېرې ئې ورکړ او یوز را شرفې اوشپېزویشت پیلا ن ئې دنذرانې په نامه دپاچاحضو ر ته وړا نـدې کـړ ل پاچاهم ښه راشه درشه ورسره وکړه خاص خلات او زرین مو ټی خنجر ئـې وروباخښه - مگر دا د او مړي ورڅې وضعیت جعلي ؤ بیائې خا نجهان (مالوې) ته پرې نه ښو داوخو م اشتی په اگره کښې دیو ه نظر بند پـه حیث پاتـه کړه شو.

## له (آگرې) وتل

د ۱۰۳۸ ه کال په لومړیو ور څو کښې دمخلص خان زو ی ( لشکر ی) دخان جها ن زا منوته چه آشنا یان ئې وو ، حال ورو وړ چه « نن یـا سـبا پا چا ستا سی کور ي توله زندا ن ته اچوی احتیاط کوئی!»

دې خبر ی دخان جهان تشویش لا پسی زیات کړ او پا چاهی در بار ته ئې دسلا می له پا ر ه ور تگ پر ښبود، د ۱۰۳۸ ه کال دصفری په شپېزو یشتمه شپه (۱) چه دهندوا نو ددیوالی شپه وه، خان جهان له دووز رو پنبتنو (چه زیا تره ئې خپلوان وو) دوولسوزامنو اوزومانو ، دوودرو سو وتنونو کرانو او کو رو کهو لسر ه له آگرې څخه په ډول او نغاره ووت اودد کن لور ته ئې مخ ونیو.

## د (چنبل جنگ)

خان جهان چه له آگري راووت شاه جهان مغل یو نیم ساعت ور وسته

راجا ببتهل داس په مشري پسی راو یستلې لمرخاته چه خان جهان لودی دا دهولپور) په حدودو کښې د (چنبل) (۱) ترسین پوری ووت د مغلو لښکری پسی ور ورسېدلې، خان جهان پخپله د مغلی لښکرو مخه ونیوله او ښځی او کوچنیان ئې ترسین پوری وتل، د ننګو ناموس او مالو دولت جنګ ؤ د وو زرو پښتنو ځلمو هغه توری وکړې چه د مغلو دېرش، څلو ښت زره لښکری ئې په ځان پوری حیرانی کړې په دې جنګ کښې د پښتنو له خوا دخان جهان دوه تور یالی زامن (عظمت خان او حسین خان) (۲) یوزوم ئې شمس خان لودی، دشمس خان دوه ورو نه (محمد اومحمود) (۳) پنځه تنه نور په توره مشهور پښتا نه سر دا ران او شپېته تنه سپا هیان ووژل شو ل (٤) د مغلو له خوا اولس تنه درا نه امیران لکه خدمت پرست خان (٥) او نور . . . له ډېرو سپاهیانو سره د پښتنو په تورو ومړ ل .

خان جهان، اومله ئې غرمې ته د چنبل تر سین پوریوتل مګر دمغلو دیرشو زرو لښکرو ترسبا د غه و خته پوری د ور پسې تللو ( تعاقب ) توان په ځان کښې نه ولید

## نظام شاهی پاچهۍ ته او ښتل

خان جهان چه دچنبل ترسین پوری ؤت، د ګوالیار، چندیری اوبند هیلکهندله لاری ئی ځان (ګو ند وا نې) ته ورساوه اوهلته ئی واړول، څه وخت پس دلا نجې او برار له لاری د احمد نګر نظام شاهی پا چهۍ (بالا ګهاټ) ته واو ښت، د با لاپور جا ګیر دار بهلول خان میا نه او سکند ر دو تانی چه هم ځا نو نه

(۱) دچنبل سین له اګری څخه ۱۵ کروه لری دی

(۲) شوکت افغان حسین خان د خان جهان زوم بولي مګر بادشاهنامه اوماثر رحیمي ئې

وروړسول، خان جهان د نظام شاهي پاچهی پایتخت ته پسی ورتېر شو نظام الملك ئې مخې ته راووت او پر تخت ئې ورسره کښېناوه څوورځې هلته ؤ، نظام الملك د جنګی تجهیزاتو له پاره ډېری روپۍ ورکړې او خان جهان بیرته د مغلی پاچهی سر حد (بیر) ته ځنی راغی.(۱)

## د شاه جهان وروتل

د ۱۰۳۹ ھ کال ددر ېمی خور په میاشت کښې شاه جهان له خپلو خوراد رنو لښکر وسره د خپلو هغو دېر شو زرو لښکرو په مرسته له آګرې څخه د کن ته وخوځېد چه په خان جهان پسې ئې ا یستلی وې .

مغل پاچا درجب دمیا شتې په نهمه ورځ د (نربدا) ترسین ور پور یوت او د (خاندیس) (۲) په سیمه کښې ئې واړول.

درجب په شلمه ئې پنځوس زره نوری لښکری دد کن دوا کمن (ارادت خان خان اعظم) را جه ګجهه سنګهه اوښایسته خان په مشری دخان جهان نیولو لره دبالا ګهاټ لورته وخو ځولې، پخپله درجب د میاشتې پرشپېږو یشتمه دخاندیس پایتخت (برهانپور)(۳) ته پسی ورغی، د ګجرات حاکم شېرخان او دبنګلاتی راجا ئې همو ګمارل چه په خان جهان پسې خپلې لښکرې و روباسی .

## د دریاخان او ښتل

د ابرا هیم خان داؤدزی زوی دریا خان داؤد زی (٤) چه د مغلی پاچهی خلورزری امیراود خاند ېس دیوې سیمې جاګیردارؤ د ۱۰۳۹ ھ کال دبرات پراته ویشتمه د شاه جهان له لښکرو څخه چه په برهانپور کښې ؤ، دخان جهان د مرستې له پاره مخ پر (دولت آباد) روان او پرلارې د خان جهان مل شو (٥)

---

(۱) ماثرالامراء (ا) توك ۷۲٦ مخ

# د (روه) اړو دوړ

دخان جهان دلیکنو اوتحریك په اثر په روه کښې دشیخ رکن الدین روهیله زوی، کمال الدین چه دجهانګیر مغل پاچا له خوا ځلور زري منصب اود (شېرخانۍ) لقب ور کړه شوی ؤ، پورته شو (۱) دپادشاهنامې په قول له اټکه څخه نیولې تر کابله پوری ټول پښتانه ورسره مله شول د پیرروښان کړوټې (عبدالقادر) د جلال الدین روښاني دزوی (کریمداد) اودمیرداد روښاني دزوي (محمدزمان) په ملګری دخټکو، ځاځیواوتوریوانښکرې له تیراڅخه مخ پر پېښوور راوخوځوله او د پېښور په اوه کروهې (یواګذر) کښې دشیرخان رو هیله مل شو، داشغر اوپېښور دشاوخوا محمدزی، ګګیانۍ، خلیل، مهمند، داؤدزي او یوسفزي ئې هم دځان مله کړل د ۱۰۳۹ ه کال دلوی اختر په درېیمه ورځ ئې پر پېښور لههري خوابریدو کړ (۲) پهدغهوخت کښې د کابل مغلی حاکم (لښکرخان ابوالحسن مشهدی) ؤ په پېښور کښې دلښکرخان نایب پښتنو وواژه او مغلي پاته امرا په پېښور کښې کلابند شول دبنګښو مغلي حاکم (سعیدخان) ځان پېښور ته ورساوه اودمغلي امیر دلاورخان کاکړ له زامنو (جلال خان او جمال خان) سره په پېښور ننووت د پښتنو په مقابل کښې ئې پښې وخرلې کلا بندي ئې ټینګه کړه. مګر له بده مرغه د مغلو طرفدارانو دپښتنو په منځ کښې درزونه واچول، عبدالقادر روښاني دشپې، له مخې تیراته وکوچېد، پر پاتو پښتنو مغل فوځونه راوغور ځېدل اوښه ئې وځپځېړل - شاه جهان سعید خان ته د دې خدمت په صله کښې ځلورزري منصب او ورپسې په ۱۰۴۰ کال دکابل

## د انګرېزانو او مرهټو سره جنګ

له يوې خوا د مغلو لښکرې پر څو ځايه د احمدنګر پر نظام شاهي پاچهي ور توی شوې له بلې خوا د مرهټو او انګرېزانو ګډې لښکرې د احمدنګر پر سيمه ورغلې، خان جهان لودي يو ځای د مغلو د تر ټولو لوی لښکر (چه د ارادت خان خان اعظم تر مشر تابه لاندې ؤ) مخه، نيولې وه او له بلې خوا ئې د مرهټو او انګرېزانو د ګډ لښکر سره چه پر احمدنګر ئې بريد کړی ؤ مقابله کوله پای ته ئې د مرهټو او انګرېزانو لښکرې پسې وا خيستلې او يوا ځې د مغلو مقابله پاته شوه (۱)

## د (راجوړې) جنګ

خان جهان چه د مرهټو له جنګه فارغ شو ـ څه لښکرې ئې د بهلول خان ميانه او مقرب خان تر مشر تابه لاندې د بالاګهاټ په (د هارور) کلا کښې پرېښې وې، څه لښکرې ئې د دريا خان داودزي سره په (بنوسه) کښې وې څه لښکرې چه له ده سره وې د ماليې د ټولولو له پاره شاو خوا ته سره ولاړې (۲) ده په خپله د (بير) د سيمې د (راجوړې) په کلي کښې (۳) له درو څلورو سوو پښتنو او کډو سره اړولی ؤ د پشکال د موسم د تېرېدلو په انتظار کښې ئې شپې او ورځې سبا کولې چه ناڅا به د مغلو هغه لښکرې (چه د خان اعظم ارادت خان تر مشر تابه لاندې وې) پرور توی شولې، د خان جهان زوی (عزيز خان) د مغلو د سر لاړ فوځ (چه د صف شکن خان تر مشر توب لاندې ؤ) مخه ونيوله په خپله خان جهان د مغلو د لوی لښکر مخه ونيوله د رو څلورو سوو پښتنو د څو زرو مغلي لښکرو په مقابل کښې توری راو کښلې او مغلي لښکرو ته ئې بيا د چمبل د جنګ ننداره ورو ښوده له کلک جنګه وشو، د سرو کوټې جوړې شوې خان جهان

مناسب و نه گڼل په جنګ کښې دغره لمنې ته تر شاشو، په مغلي امراو کښې تر ټولو د مخه د دریاخان داؤدزي مغل پرستهزوی ناسیاله بهادر خان د ناهرداس او اهتمام خان په ملګرۍ هڅه پسې وکړه (۱) د خان جهان تور یالی وراره (بهادر خان) ئې مخه ونیوله، ناهر داس ئې ووژه ناسیاله بهادر خان ئې درء ځایه ټپی کړ.

وائې ناسیاله بهادر خان په داسې حال کښې چه د ټپو له لاسه د پاسیدلو توان نه درلود، د یوه پښتانه ځلمي د توجه نخښه شوو ئې غوښتله چه بې ننګه ککړیږ ئې ځنې غوڅه کړي، مګر کله چه ناسیاله بهادر خان ناري کړي چه زه ددریان خان داود زي زوی یم تور یالي پښتانه لاس ځنې وا خیست او دا د پښتنو والي پیغور ئې ژوندي پر ینبود.

خان جهان په دغه جنګ کښې دغرو په لمنو کښې د پاته پښتنو ځلمو او کهو سره ځان (سیو ګاوڼ) ته ور ساوه او له هغه ځایه (بیضا پور) ته ولاړ، له بیضا پوره څخه ئې (ایر کهتلې) ته چه ددولت آباد په نیم کروهي کښې وه ځان ور ساوه (۲)

## د (چالیس ګاون) برید

خان جهان چه په (ایر کهتله) کښې وا ړول، دریا خان داؤ دز ی له زړورتنو پښتنو ځلمو سره دا ندول او چالیس ګاون دسیمو دنیولو په نیامت (چا ندور) او (چالیس ګاون) نه رهي شو - شاه جهان چه په خبر شو دمغلو لښکر ی ئې دعبدالله خان په مش توب پسې راوا یستلې، دریاخان چه په خبر شو، اند ول ،دهرن ګاون او دچالیس ګا ون ځنې کښته برخې ئې تا لا کړي او بالا ګهاټ ته وخوت (۳)

## دبهلول خان او مقرب خان ماته

دراجوړی له جنګه پس (خان اعظم ارادت خان) خپلی مغلی لښکری د(مانك دوده) لهلاری دبهلول خان میانه(۱) اومقرب خان جنګ ته چه په (انبه جوکالی) او(دهارور) کښېوو، ولېږ دولې دغره په لمن کښې پښتنو مخهور ته ونیوله د پر مغلی سپاهیان ئې ووژل مګر مغلی لښکری پسې، وروختلی اواحمد نګر په شل کروهی (دامن ګاون) کښې ئې واړول دمغلو لښکری چه د(دهارور)دوولس کروهی ته پسې ورغلې، مقرب خان او بهلول خان د (انجن دوده) له ګهاټه را کښته شول، او ددولت آباد سیمو ته ئې ځانونه ورسول (۲)

## د پښتو نخوانیت

د ۱۰۳۹ھ کال په پای کښې ساهوجی بهونسله مرهیټې هم له خپلو لښکرو سره دمغلو مل شو. دمغلو لښکری له درو خواو څخه پر نظام شاهی پاچهۍ را وګرزېدلې او نظام الملك ئې دومره وارخطا کړ چه نژدې ؤد خان جهان پهور کړه دمغلو سره روغه وکړی. خان جهان چه خپله نقشه چه د پښتو نخوا له خوا به شېر خان روهیله اود کن له خوا بهدی دمغلو کمبله پسې ورتولوی په دکن کښې ناکامه ولیدله، نوئې دپښتنو مشرانو لکه دریاخان داؤدزی، ایمل خان غرین اوصدر خان یاسکندر خان په ملګری دمالوې، راجپوتانې او پنجاب لهلاری د پښتو نخوا په نیامت (۳)دخاندیس سیمی ته (چه دمغلو پاچهۍ وه) خپلی لښکری راوا یستلی شاه جهان چه په خبر شو ۱۰٤۰ھ کال دلومړۍ خور پر پنځه ویشتمه ئې سید مظفر بارهه،

دسین گودرونه ورته ونیسي دعبدالله خان ترمشراتا به لاندې لښکرې دشا له خوا په پسې وې. مگر بیا همسره ددوه ۱۰ ستحکاماتو مېړنی خان جهان د (دهرم پورې) پر گودر د (نربدا) ترسین پورې ووت اودمالوې اوراجپوتانې له لارې ئې دپنجاب (دیپالپور) ته ځان ورساوه.

خو هلته چه ئې و کتل د پنجاب ار شو گانی او دآبا سین غا ړه دو مره ورته تینگه کړه شوې وه چه په هیڅ تو گه دپښتنو نخوا جگو غر و ته رسېد ل ممکن نه و ځکه ئې نو بېر ته (ما لوې) ته دبنگال په نیامت مخ ونیوه په لاره کښې ئې (اوجین) تالا کړ (نولاهی) ته پسې ور تېر شو اوله هغه ځایه (تال گاون) ته ولاړ او دځلور مې خو ر پر دولسمه تر (سرونج) تېر شو. (۱)

## د (بکرماجیت) جنگ

خانجهان چه تر (سرونج) تېر شو، دځلورمی خور پراوولسمه دجهجار سنگه بندیله زوی (بکر ما جیت) له پنځلسو ز روسپرو سره مخه ورته و نیوله په دغه وخت کښې له خانجهان سره صرف تقریبا یوزرتنه داسې ځلمي پاته وو، چه میدان ته وتلای شوای، نور نویوه لویه قافله کېږې، کوچنیان، رنځو ران او ټپیان ورسره وو، چه دهغو ساتنه او تر یو ځایه پورې رسول هم ددغو زرو تنو ځلمو وظیفه وه پههر صورت دریا خا ن داؤدزی له څلور و سو و ځلمو سره دبکرماجیت د پنځلسو زرو سپرو مخه ونیوله او پخپله خا نجهان له پنځو سوو تورزنو ځلمو، کډو او ټپیانو سره (بهانډیر) ته چه د (اله آباد) په دیرش کروهی کښې دی ځان ورساوه او هلته ئې وا ړول.

شهید ان شول او په خورا میړا نه له سهار څخه ترماښامه پوری کړی‌ور ځ وجنګیدل.

ظبا طبایی لیکی: «دریاخان او مله ئی درستم په څېرو جنګیدل، بله پسې بر یدونه ئی وکړل‌او د لیو نیو په دوډئې‌د جنګ ډاګ تر ډیره پور ی تو د وساته څو چه پخپله دریاخان، یوزوی ئی(۱)او څلور سوه سره پښتانه و مړل (۲) بکر ماجیت د دریاخان اوزوی ککړی‌(برها نپور) ته‌شاه‌جهان‌ لره‌ولیږ لې ،شاه جهان. ددې خدمت په صله کښې بکرماجیت‌ته‌(چه‌یوزری‌منصب‌ئی‌درلود) دوه زری منصب ور کړ او یو خاص خنجر یوه زرین موتی تو ر ه او تو غ ونغاره ئی خلات‌ورواستاوه(۳)

## دبهانه‌پرجنګ

سید مظفر بارهه‌چه دخان جهان په‌حال خبر شو سمد ستی‌ئې پاچـاهی لښکرې پسې راوبرولې،خان‌جها ن یوه‌ورځ تر مخ ددوی له را ر ســېد لو خبرشو ، کله‌ی او کو چنیان ئې دڅو میړو سره یومنزل پر مخ ولیږ ل، په دوې پسې دسید مظفربارهه لښـکری‌راور سېد لې ،خو را کلك جنګ ونښت طباطبا یې‌ددې‌جنګ په‌باب کښې لیکی: «خانجهان له شپږ وسو و تو ر یالیو میړوسره‌مخ پرړا و ګرزاوه او هسی‌جنګ ئې و کړ چه دتو ر ې پـــه‌آب‌ئې درستم اوافراسیاب کار نا مې پر یولې،ډېر مله ئې دجنګ په‌ډا ګ کښې ومړل،اولږ ئې تپیان له‌ډا ګه ووتل». دمنتخب ا لباب مؤ لف‌چه دپښتنو دښمنی ئې له‌لیکنو څخه‌له‌ورا یه‌څر ګند ه‌ده‌دسید مظفر دملګر و دستا ینی په ضمن کښې لیکی :

ورتو ئېدل پښتنو هم هغه مېړا نې و کړې چه دد ښمنا نو سيد ا نو خولې ئې
و نه دړېدلې او آ فرينو نه ئې پرو ويل »

په دې جنګ کښې دخا نجهان زوی (محمود) او په توره منلی امير (صدرخان) ووژل
شول. خا نجهان د پاته پښتنو مېړو سره د کالنجر خوا ته مخ و نيو، (کالنجر) ته چه
ورسېد دهغه ځای حاکم نياز خان (۱) يا سيداحمد (۲) مخه ور ته و نيوله،
خا نجهان دز مر يو په څېر وجنګېد (۳) حسن خان يا حسين خان زوی او څه
نور تيا ن مله ئې له (۲۲) پيلا نو سره و نيول شول، پخپله خان جهان د (کالنجر)
تر کلا تېر شو اودسندره يا (سهيند ير) خوړ پر غاړه ئې واړول .

# استری جنګ

خا نجهان چه دخوړ پرژی واړ ول خپلو ملوته ئې وويل :

« نور زما به اورځانو نه مه راسره سوځی ، تر دې چه توره مو سره بېلوی
ښه ده هرې خوا ته چه اوس ځانو نه کښلای شی ه وخوزی ه او ما پرېږدی ه، زما عمر
پای ته رسېدلی دی او له دې ځا یه بل لور ته نه ځم، زه پو هېږم اوزما قسمت » (٤)
تولو ملو ئې چه ترسل تنه زيا ت نه وو ځواب ور کړ :

« ننګيالی له ميدا نـه څخه دتيښتی پښې نه لری ، مونږ چه ځا نو نه پښتا نه بولو
دا پېټ نه شو وړلا ی » (٥)

د سيدمظفر او راجاما دهو سنګه لښکری پسی را اورسېدلې خا نجهان، عزيز خان
زوی او ملو چه ئې دمخه لا له ژونده لاس پر يو لی ؤ چمتو ولاړ ؤ په جنګ ئې لاس پو رې
کړ طبا طبا يی ليکی :

« هر پښتو ن دمېړا نې اوزړه ور تيا د اوريو بخری ؤ پر غليم ورتوی شو ل
او خپل نو مو نه ئې رو ښا نه کړ ل ، خا نجها ن پخپله تر څو غشی لړل ليندی

ئې لهلا سه وا نه چوله اوتر څو ئې چه په پښو اولاسو کښې سبک (قوت) ؤ لهحملو څخهئې ځان و نه ژغوره ترهغو ئې پهخوراميړا نه دتوروڅو ګوته ځا نو نه ور کول، څو دی،او عزیز خان زوی ئې دغلیم پهتورو ټو ک ټوک شول»

محمد هاشم خافی خان د پښتنو مخالف مورخ لیکی:

«خا نجهان لکه تېږی زمر ی غږ مبېدهدر ستم په څېر جنګو نه ئې و کړل دجنګ په دا ګ کښې ئې ترمر ګه پوری ښې توری ووهلی کهڅههم د(مادهوسنګه) په بر چه پر خوله ومونښت اوبل تمپ ئی پرپښه پسیواخست بیاهم را کښیناست تر وروستۍ سلګۍ پور ی ئی د غلیم د حملو ځواب پری نه ښو و دو ست او د ښمن ئی پر میړا نهآ فرینو نهوویل» .

په دی جنګ کښې چه د۱۰٤۰ ه کال داسترۍ خور پهآ خره او یادرجب په لمړی ورځ ؤ که څه هم خا نجهان،عزیز خان زوی ئیاو نور توریالی مله ئی په خورا میړا نهووژل شول خو ډیر مغل ئې ترځا نوجار کړ ل او ډیری مغلی ئی په وای وای وژړولې او دا ئی ثابته کړ ه چه د پښتنو وینې وړ یا نه دی په دی تو ګه له هغو دووزرو پښتنو میړو څخه بیله هغو څو تنو چه کلای ئی تر یو ځایه ورسولی نور هیڅوك پاته نه شول چه په ژوند دیٖد دی انګی له دا ګه څخه سروباسی .

د خا نجهان ا یمل خان(۱)،عزیزخان(دخانجهان زوی) اوصدرخان سرو نه شا ه جها ن ته و لیږل شول،شاه جها ن ښار په ښار و ګرزول او دبرهانپور په کلاکئی وځړول د خا نجهان تن په برها نپور کښې د پلار ترڅنګ ښخ کړهشو شا ه جها ن سید مظفر خان بارهه‌ته ددیخدمت په صله کښې د (خا نجها نی)

فتحنامې جوړې شوې ،شاهجهان(کليم) شاعر تهدلاندنۍ رباعۍ خورادرنه صله ور کړه:

اين مژده فتح از پی هم زيبا بود   اين کيف دوبالا چه نشاط افزا بود
در رفتن دريا(۱) سر پيرا(۲) هم رفت   گو ياسر او حباب اين دريا بود (۳)

د خانجهان د وژلې نېټه دا ده :

«که (آه) و (ناله) ز (افغان) برآمده» (٤)

$$٦ + ٨٦ + ١١٣٢ = (١٠٤٠)$$

## د خان جهان رشې

اکبرشاه نجيب آبادي ليکلي دي :

«خانجها ن يو عالم، فاضل او توريالی سړی ؤ د رائی اصا بت ئې منلی ؤ د ۱۰۲۱ هـ کال د برات په مياشت ئې دايلچپور په ښا ر کښې د جمعې په شپه په خوب کې د حضرت محمد(ص) زيارت و کړ، سهار ئې په دغه شکر انه کښې ټول شته(مال) پر غريبانو وويشل(٥)

د خانجهان معاصرمورخ دمأثر رحيمي مو لف ليکي:

«خا جهان دزمانې لهتوريالیو څخهدیاوپه دې لار کښې ساری نه لری»(٦)

د(مأثرالامراء) مؤ لف ليکي :

خانجهان لودي خورا د روند زغمونکې رښتنی او سم سړ ی ؤ در وه او دو مخې ئې نهوه زده هيڅکله ئې زيان نهرساوه اودهيڅچا پهزيان خو ښ نهؤ درست ژوند ئې په برم کښې تير شوی ؤ چا ته ئې سر نه کښېښود ځکه هر چا رخهورسره لرله دنو کريدول ئې هم نهؤ خوزمانې روغهورسرهونه کړه.

او پخپلوا رزو گانوئې بريالی نه کړ، دجهانګير په پاچهی کښې ګر دو امير انو دده خولې ته کتل، حتی دهندوستان پاچا (جهانګير) له خپله هغه برمه سره دده له خبرې غاړه نه غړوله.

وايي چه شاه جهان مغل يوه ورځ خپل خان جهان سيد مظفر بارهه ته وويل: «دا خطاب (خان جهانی) دهغه چاؤ چه زه اونورتول شهزادګان ئې يوه نظر ته تېزی ؤ اوده به له استغنا څخه نه را ته کتل.

خانجهان وتلی مېړه اوتراندازې زيات غيرتمن سړیؤ، کله چه ئې دشاه جهان په وخت کښې هغه آب وعزت ور پاته نه شول اوهر کس وناکس ئې مقابلې ته په برېتو ګوتې وهلې، دده غيرت داونه منلای شوای مخکه پرسره شوه او دبې غيرتی تر ژوندئې دعزت مرګ غوره کړ، خانجهان ته دژوند په وروستيو کلو کښې دبرهانپوری شيخ فضل اللّٰه دصحبت په اغيزه دتصوف شوق و مونده شو، د شېې او ورځې به له ستانه ؤ خلقو اوعلماؤ سره ؤ، اوله دنيا څخه ئې کړه کښه کېده، دده په دربار کښې دبدعتونو (لکه ساز، سرود، رقص، او شراب) څرک هم نه ؤ دهغه وخت دمغلی سياست خلاف ئې هندوانو ته هيڅ التفات نه در اود.

دده دربار دېوې مياشتې مصارف درې لکه روپۍ وې اوعايدات ئې هم دومره ؤ چه لږی روپۍ لاله دغه خرڅه زياتېد لای شوای(۱)

## دخانجهان اولاده

د خانجهان دپرزامنؤ حسين خان (۲) عظمت خان (۳) محمود خان، عزيز خان او څو تنه نور ئې دمغلو سره په جنګو کښې ووژل شول اودپلار تر مخه دنيا ته

ننګی په‌اور کښې سپېلنی‌شول اوه‌تنه دپلار ترمړينې وروسته هم‌ژوندی‌وو،

۱ـاصالت‌خان: دری‌زری منصب‌ئې درلود،دپلارترمرګ وروسته ئې‌ژوند په‌پرد پسی کښې تېرشو،اوپه(دولت‌آباد) کښې‌ومړ.

۲ـمظفر خان: کله چه‌ئې پلار له‌مغلو سره په جنګ اخته ؤ، دی ځنی بېل شو اوشاه‌جهان مغل ته‌ورغی.

۳ـفريدخان: په‌جنګ کښې مغلو ونيو.(۱)

٤ـجهان‌خان: دمأثرالامراء مولف ليکی:جهان‌خان په جنګ کښی مغلو ونيو مګر د بادشاهنامې مؤلف ئې نوم (جان‌جهان) راوړی‌دی او ليکی‌چه: دخان جهان لودی‌ترمرګ وروسته جان جهان د دريا خان کوندې ته چه دبهادر خان‌مور وه‌اودخپل زوی (بها درخان) په جاګير(سهېنده) کښی اوسېدله، پناه ورووړه،مغلی امير عبدالله خان ،فيروز جنګ خپله خوا جه سرا( اقبال) پسی ورولېږ ه‌او له هغه ځا يه ښخه‌ئې ددرياخان دکشر زوی جلال خان سره بندی راووست ،او عبدالله‌خان‌دیکه‌تازخان‌په لاس شاه‌جهان ته واستاوه.(۲)

۵ـ عالم خان :هم دپلار ترمرګ وروسته وتښتېد پای ته مجبور شو چه مغلو ته‌ځان وسپاری .

٦ـاحمدخان :هم دپلار ترمرګ وروسته وتښتېد خوپای‌ته‌مجبور شو چه مغلوته ځان‌وسپاری:

۷ـ حسن‌خان :خان‌جهان چه دکالنجرد کلاد حاکم‌سيد احمد سره جنګېدو، په هغه جنګ کښې حسن خان مغلو ونيو.

## ۸، توریالی بهادرخان لودی:

بهادرخان دخانجهان لودی ورا ره‌او دمحمدخان زوی ؤ دمغلو په دربار کښی
ئې یوزری منصب درلود څلور سوه ئې سپاره وو(۱) د(راجوړي) په جنګ
کښې چه په ۱۰۳۹ هـ کال کښې پیښ شو دده توره اومیړانه غلیمانولاهم ومنله،
خافی خان لیکی:

بهادر خان توریالی د(راجوړي) په‌جنګ کښې ښې توری ووهلې، پای ته‌دده ورو
تپو له لاسه غوزار شو، له ډیره غیرته بیرته را وغورځید توره ئې و کښله او
په‌خورا میړانه ئې پرغلیم برید وکړ، آخر دغلیم په‌توپك وویشته شواوولوید
پای ته (پر سرام) نومی راجپوت (چه د راجا پهاړ سنګ له ډلې ؤ) (۲)
پر را و ځغستل، غوښته ئې چه ددې میړنی زمری ککری غوڅه کړی،
خوهغه زمریالی پښتانه په‌دغه حال کښې (جمدر) له‌ملاراو کیښ اوهغه راجپورت
ئې پر ورانه وو یشت او د (پرسرام) جمدر دبهادر خان پر غاړه برابر شو،
ککری ئې ځنی پرې کړه او د لاس د ګوتمی، آس، توری او سپر سره ئې
خان اعظم ته ورووړه، خان اعظم دتوریالی بهادرخان ککری د( بیر) د کلا په
وره وځړوله اودلاس ګوتمی ئې چه‌دده نوم پر لیکلی ؤ؛ شاه جهان لره برهانپور ته
ولیږله اوشاه جهان مغل ډیر په‌خوښ شو.

## قطب خان لودی

قطب خان شاهوخیل لودی دشیرشاه له امیرانو څخه ؤ، د ۹٤۷هـ ۱۵٤۰ع کال
دعا شورې په ورځ چه شیرشاهی اوهمایونی لښکرې جنګ ته سره‌ودریدلې،

«هاچه لهځایه و نه خوځېږ اوس به د لښکرو په خیال ورشي چه دلښکروزړه هم ترشاشو، مخا مخ دغلیم پر لښکرو برید کوه!»

شیر شاه دننګیالی مد بر قطب خان په خوله و کړه، د همایون پر لښکر وئې بریدو کړ، اودمغلي فوځ کینړ ښنګ (میسره) ئې پسې واخیست، دشیر شاهي فوځ ښي ښنګ (میمنه) بیر ته تښتیدونکي شو او مغل ئې پسې واخیستل (۱)

## شیر خان لودی (۲)

شیر خان لودی دعلي امجد خان زوی (۳) دشاه جهان مغل (۱۰۳۷-۱۰٦۸) په باچهی کښې زیږیدلی دی (٤) دمیرزا عبدالقادر «بیدل» معاصر اودخپل وخت لهښو نثر لیکونکو او شاعرانو او د مغل ددربار له امیرانو څخه ؤ. مرآة الخیال چه مطبوعه نسخه ئې ۳٤٤ مخه ده اودشاعرانو پر تذکره سربیره دعروض، قوافي، شعري صنایعو، موسیقي، انشاء، طب، علم الرؤیا علم السحر، اخلاق، تصوف اوعرفان څخه بیانات پکښې شته، ده اثر دی او په ۱۱۰۲ ه ۱٦۹۱ ع کال ئې له لیکنې څخه فارغ شوی دی لکه څنګه چه وایي:

این چمن زاریکه مرآة الخیالش خوانده ام
دار دازحسن معانی یك جهان رنگ کمال
صورت تاریخ انجا مش توان بی پرده دید
گر تأمل «پرده» بردارد ز (مرآة الخیال) (۵)
۱۳۱۳ — ۲۱۱

د کتاب په شروع کښې د توفیق له پاره داسې دعا کوی:

---

(۱) شوکت افغان ۳ جلد ۲۵۵-۲۵۸ مخ او مخزن افغان ۹۹ مخ

یا رب بدلم نو یدا کرام رسان ـ نقدی بکفم ز گنج انعام رسان
در ساحت امید من این گام مراد ـ بنیاد نهاده به اتمام رسان

د کتاب په باب کښې وائي :

بگداخته ام دل و زبان را ـ کاین نقش نموده ام جهان را
صد سحر و فسون بتار بستم ـ کاین نغمه بروی کار بستم

د نثر بلگه ئې :

« مخدومی مظفرخان...... کاش فلک کجرفتار در باره اش راستی از اعتقاد من می آموخت وزمانهٔ بوقلمون برنگ خواهش تلون مینمود لکن چه چاره که کیسهٔ روزگار از نقد آرزو خالی است و مینای آسمان از می مقصود تهی ، ابر ازین غم چشم گریان دارد وسینه بریان ، گل گریبان چاک است و بلبل با نالهٔ درد ناک ، آه نیمشبی عشاق در جست محبوب است و سوز سینهٔ پروانه در طلب نور مطلوب(۱)

پلار ئې هم لکه څنگه چه دی لیکې دخپل وخت لـه منلو فضلاو څخه ؤ او پـه ۱۰۸٤ هـ ـ ۱٦۷۳ع کال مړ دی. ورور ئې عبدالله خان لودی په ۱۰۸۷ هـ کال د کابل په غرو کښې شهید شوی دی(۲)

## × سلیم خان لودی

محمد سلیم خان دلودی مشهور خانجهان له لمسیانو څخه ؤ ، په دهلی کښې اوسید ، شاعر ؤ او ښه قریحه ئې لرله.

لاندې بیت ئې د شعر بلگه ده:

گر خدا ناخواسته آهن شوی آئینه باش

# استاد هدایت الله خان لودی

استاد هدایت الله لودی د شاه جهان آباد (ډهلی) اوسېدونکی په بلاغت او فصاحت کښې مشهور ؤ، په خپل وخت کښې ئې په اردوشاعری کښې ساری نه درلود، (هدایت) ئې تخلص ؤ، دیوان ئې نه زوره بیته دی، او یوه بله رساله ئې د (چراغ هدایت) په نامه لیکلې ده(۱) نور مثنو یات ئې هم شته، د اردو ډیرشاعران ده ته دشاگردی نسبت لری، د(مجموعه نغز) مؤلف (میر قدرت الله قاسم) ئې هم له شاگردانو څخه ؤ.

د اشعارو بلگه ئې دا ده:

کوئی بهی چشم (هدایت) هی اشک سهی خالی
بهرا هوا هی یه هر یک حباب مین دریا

* * *

(هدایت) اس کی گلی مین یه کیا خجالت هی
که صبر بې ادب و ناله و فغان گستاخ

* * *

صبا شبنم بهی آتش پر گویا روغن چهڑ کتی تهی
که جڑن جون دامن گل کو بجهاتی تهی بهڑ کتا تهی

* * *

خبر هی تجهه کو ای صیاد وه تها مرغ دل میرا
تری ڈ بهتکی مین کویی جانور بهی کل پهڑ کتا تها

* * *

با دهٔ عشق سی معمور سدا رکھ دل کو
خالی رهتا هی تو بهر تا هی هوا سی شیشه

* * *

میر قدرت الله قاسم د ده د اخلاقو په باب کښی لیکی :

« د د غه فقیرمشر به خان، حلم او حیا مروت او ځوانمردی محبت او پاك طینتی مثلې وه د هر چا زړه ئی ساته ما په ټلو ینبتو کالو کښی داسی خوك و نه لید چه له ده ښخه دی خوابدی وی» (۱)

مصطفی خان شیفته لیکی :

« استاد (هدایت) د اردو د مشهور شاعر خواجه‌میردرد(رح) شاگرد او مرید ؤ ، طبعی ئی د نظم په ټولو فنونو کښی قدرت درلود او د شعر په نکاتو او غوامضو ښه پوهید» (۲) میر تقی میر چه په ۱۸۲۰ع کال مړ دی پخپله (تذکرة الشعراء) کښی لیکلی دی :

« اردو شعر ډیر ښه وایی د خواجه میر له ملګرو ښخه دی که څه هم دی ځان کښته بولی مګر د قلم آس ئی د شاعری په‌میدان کښی‌زیات ګرندی او تر ډیرو مخکښی دی» (۳)

په( تاریخ نظم او نثر اردو) کښی لیکلی دی :

« تر میر تقی علاوه میر حسن هم(هدایت) ستایلی دی او ویلی ئی دی چه په شاعری کښی ئی د ستاینی وړ کمالات لرل»(٤)

استاد (هدایت) په ۱۲۱۵ هـ۱۸۰۰ع کال کښی مړ دی (٥)

# حکیم ثناء الله خان لودی

دډهلی نامتو حکیم ثناءالله خان لودی د مشهور استاد هدایت الله خان (هدایت) وراره او د خواجه میر درد(رح) مرید ؤ په شعر کښې ئې (فراق) تخلص ؤ. خپل اشعار به ئې د خپل اکا او د اردو د مشهور شاعر میرزا محمد رفیع (سودا) او یا خواجه میردرد تر نظر تېرول په نورو علومو کښې هم ښه ؤ خو په طبابت کښې ئې حذاقت منلی ؤ په ډهلی کښې اوسید د گلشن بیخار مؤلف په ۱۲۵۰ کښې لیکلی دی چه څو کاله کیږی مړدی د مجموعه نغز د تالیف تر کاله (۱۲۲۱ ه) پوری ئې ژوندیقیني دی دارد واشعارو نمونه ئې داده:

چراغ لاو نه گل چړ هاو هما ری تر بت په آپ هی آو

که تم ہی گل هو تمهین چمن هو تمهین هو شمع مزار عاشق.

* * *

عشق کی سر کار مین هو تی هی بټتی هین مدام

مر دمان چشم کی هوتی هی نت تنخواه اشك

* * *

ترا خط لی کی قاصد سی نهین پهولی سماتی هین

کبهوانکهون پهر کهتی هین کبهوسر پرچړهاتی هین (۱)

دپاړ سو شعر نمو نه ئې:

دا رباعی ئې د(مجموعه نغز) د تالیف دنیټې په باب کښې ویلې ده:

چو فارغ شداز نظم این تذکره ابو القاسم استاد عالی جناب

(فراق) از سر جان بتاریخ آن خرد گفت(مجموعۀ انتخاب) (۱)

«مصحفی او میرحسن د (فراق) ډیری ستاینی کړی دی» (۱)

## نصر اللہ خان لودی

نصر اللہ خان د حکیم ثناءاللہ خان (فراق) زوی ؤ. په طب کښې ئې لوی لاس درلود دخپل پلار شاګرد اوډیر وښو اخلاقو تښتن ؤ (۲)

شاعری ئې هم کوله «وصال» ئې تخلص ؤ، دائې داردو شعر نمونه ده:

آینه ګهورنې کوسب سې، نرالا نکلا

مونهه تودیکهو یه براچاهنې والا نکلا

ګرمی عشق کا کیا کیجی بیان تجهسی (وصال)

دل جلا، جسم جلا، جیب مین چهالا نکلا (۳)

ژوندئې د ګلشن بیخار تر تالیف (۱۲۵۰ ھ کال) پوری یقینی دی (٤)

## صاحبزاده عبدالقیوم لودی (٥)

صاحبزاده عبدالقیوم، سوابۍ (صوابۍ) دسیمې په (توپۍ) کلی کښې په ۱۸٦۲ ع=۱۲٤۲ ش کال وزیږید او دخپلې کورنۍ یو نومیالی سړی شو.

پلار ومورئې په وړ کینه کښې ومړل اودی دپېښور په (مشن سکول) کښې داخل او ترمتوسطو تحصیلاتو وروسته سرکاری نوکری ورکړه شوه له تحصیلداری څخه د پولټیکل اجنټۍ رتبې تهور سېداوداڼګریزانو دخدمتو په صله کښې ئې دخان بهادر، سر، نواب، کې، سې. آی، اې خطابونه اونښانونه وا خیستل او په ۱۹۱۹ ع=۱۲۹۹ ش کال له سرکاری وظیفې څخه تقاعد کړشو.

ده په ۱۳۱۳ ع=۱۲۹۳ ش کال دصوبه سرحد د نائب الحکومه جارج روس

له۱۳۰۳ش کال څخه تر۱۳۱۲ ش کال پورې دمتحد هندوستان په مرکزي اسامبله کښې دشمالي پښتونستان (صوبه سرحد) دنماینده په حیث مقرر کړ شوی ؤ ددغه خدمت په دوره کښې په۱۳۱۱ﻫ کال لندن ته دصوبه سرحد دنماینده په نامه د ګول میز په کنفرانس کښې د ګډون له پاره ولاړ، په۱۳۱۲ﻫ ش کال چه دصوبه سرحد لومړی د اسامبله جوړه شوه دی وزیر اعظم کړ شواو ددې وزارت عظمی په دوره کښې ئې اجباراً اردو دصوبه سرحد تعلیمی ژبه کړه په۱۲۱۷ش کال د۷٥ کالو په عمر دزړه ددرېدلو په اثر ومړ.

دی مصر، یونان، ترکیې، بلغاریې، اسټریا، هنګری، جرمني، فرانس، سایبریا، چین جاپان، هانګ کانګ، ملایا، امریکا، هسپانیې، شام، فلسطین او حجاز ته تللی ؤ او په انګریزي، اردو او پښتو ژبو کښې یو ښه مقرر ؤ(۱)

## غلام رباني لودی

دسرحد عالم و فاضل شخصیت، لوی جرنلست او منلی مشاق غلام رباني په ۱۲۷۸ ﻫ ۱۸۹۹ ع کال دپېښور دهزارې ضلعې په (سرای صالح) کښې زېږېدلی دی، متوسطه ښوونځی (میټرك) ئې په ایبټ اباد کښې و لوست او د پېښور په اسلامیه کالج کښې ئې د بکلوریا (B.A) امتحان ترڅ دی ؤچه د (ترك موالات) د تحریك په لړ کښې جامعه ملیه ته ولاړ هلته تر شپږو میاشتو سبقلو وروسته خپل وطن ته راستون شواو دخلافت په تحریك کښې ئې زیار یوست، ځکه نو انګرېزانو درې کاله له ۱۳۰۰ ش، ۱۹۲۱ ع څخه تر ۱۳۰۳ ش، ۱۹۲٤ ع کال پورې له خپلې سیمې فرار کړ په دغه وخت

۱۹۲۹ع کال د لاهورد(مساوات) او په ۱۳۰۹ش۱۹۳۰ع کال د لاهورد
(احسان)اخبار معاون شو(۱)
په ۱۳۰۹ش ۱۹۳۰ع کال کښې یو کال بندی شو، په۱۳۱۸ ش۱۹۳۹ع کال ئې د
(رښتینی خدایی خدمتګار) اخبار را ویوست، په ۱۳۱۸ش ۱۹۳۹ع کال ئې
اووه ورځنی (ترجمان)اخبار جاری کړ چه په۱۳۲۰ش ۱۹٤۱ع کال د
انګریزو حکومت وربند کړ(۲)

په۱۳۲۱ ش۱۹٤۲ع کال (M.A) شو او دلاهور په کالج کښې
دعربی ژبې پروفیسر شو، په پښتو، پارسو، عربی، اردو او انګریزی ژبو پوره
پوهیږی او له عربی څخه ئې څو کتابونه په اردو ترجمه کړی دی، پیښور ته
د ناول نویسۍ نوی طرز ده را وړ دده (دختر سمرنا) ناول خورا محبوب
او مشهور دی، درست عمر ئې په سیاسیاتو کښې تیر کړ او د(هزارې) ضلعې
د بزګرانو په تنظیم کښې ئې لوی لاس درلود (۳)



**په (۴۱) مخ پوری:-**

د زاړه ډهلي جنوب ته د (کهررا) په کلي کښي د قطب ر و ډ پر څنګ یوه شنخته مخ پر لمر خاته ولاړه ده چه دا مضمون ئې پر لیکلی د ی :

« بسم الله الرحمن الرحیم چون قبة الاسلام دارالملك ډهلی فی بلاد ممالك ، از شر مغول ملاعین و فساد کفره و شیاطین روبخرابی آورده و مسکن وحوش وطیور گشته مساجد و مدارس و خوانق و نماز گاه وسایر خیرات مندرس و بایر مانده بعون عنایت یزدانی و فیض رأفت سبحانی بندهٔ درگاه ربانی (اقبال خان) عرف (ملو سلطانی) توفیق رفیق شدو اقبال مساعدت نمود تادارالملك دهلی و بلاد ممالك وسایر خیرات را بسعی جمیل و کوشش جلیل احیا کرده وآبادان گردانید و این نماز گاه که از شعایر دین مسلمانی و ازاعلام شرع رحمانی است از خالص مال خود بنا فرمود تا عامه مسلمانان نفع گیر ندو باقی خیر را بدعائی خیر مدد نمایند فی السادس من شهر شعبان عمت بركاته سنه سبع و ثمان مأته (۸۰۷) بنای این عمارت روحانی بفرمایش بنده دل پسند خانی »

له دې کتیبې څخه څرګند یږی چه په زاړه ډهلی کښي د ملو اقبال خان لودی په امر او مصرف دتیمور تر ناتار وروسته په ۸۰۷ هـ کال دامسجد ودان شوی دی دا کتیبه علی اصغر حکمت په خپل کتاب (نقش پارسی بر احجار هند) کښي د (کتیبه عید گاه کهرار) په نامه ضبط کړې ده (مجله روابط فرهنگی هند وایران شماره دسمبر ۱۹۵۷ ع)

**په (۴۴) مخ پوری:**

« د پنجاب (سلطان پور) سلطان دولت خان لودی جوړ کړ ی دی .

مرگ وروسته دسرهند پر جا گیرخوا بدی‌شو، نوئې‌لو مړی دسلطا ن‌محمد شاه وزیر(حسام خان) ته چه په(بدا یون) کښې ؤ پناه‌وروړه.

په(۷٦)مخ‌پوری:

د تاریخ داؤدی په۱۳ مخ کښې د سلطان بهلول‌دخوا ښې نوم (متو بی بی) ضبط شوی دی،د مرقع افغان(مستو بی‌بی)نوم غلط غوندی‌ښکا ری ځکه چه د مرقع افغان مأخذ ددغه نکل په‌باب کښې تاریخ داؤد ی دی

په(۷۷)مخ‌پوری:

د تاریخ داؤدی په ١٤مخ کښې د شرقی فوځو د هغه افسر نو م چه مستو بی‌بی د کلا کلی‌ورولیبزلې‌دریا خان یامبارك‌خان‌ضبط شوی دی.

په(۱۰۴)مخ‌پوری:-

گنجینه سروری په ١٧٤ مخ کښې د سلطان بهلول د مړینی تاریخ په‌دی رباعی کښې راوړی شوی دی :

«چو اندر ملك جنت یافت شا هی | شه دین شاه حق اگاه بهلول
عیا ن شد سن و سال‌انتقالش | ز (حق‌آمو دشاهنشاه‌بهلول)»

۸۹٤

په(۱۰۴)مخ‌پوری :-

د تاریخ داؤدی په ۲۱مخ کښې لیکلی دی« په کوم‌باغ کښې چه سلطان‌بهلول ښخ کړ شو دهغه باغ نوم‌هغه‌وخت (وجودباغ) ؤ»

**په (۱۳۱) مخ پوری:-**

د تاریخ داؤدی په ۳۱ مخ کښې لیکلی دی: شهزاده نظام (سلطان سکندر) چه د تاتار خان جنگ ته ووت، میا حسین د پنځو ورونو سره او دریا خان د شیر خان زوی هم ورسره ؤ .

**په (۱۳۳) مخ پوری:-**

تاریخ داؤدی په ۳۲ مخ کښې د شیخ سعید پرملی د هغه زوی نوم چه د جنګ میدان ته د اویاتنو سره وتلیؤ (میا حسن) راوړی او مله ئی ۱۷ تنه بولی

**په (۱۳۴) مخ پوری:-**

دتاتار خان د ورور نوم دتاریخ داؤدی په ۳۳ مخ کښې حسین خان ضبط دی.

**په (۱۳۷) مخ پوری:-**

د تاریخ داؤدی په ۳٤ مخ کښې د سلطان سکندر عمر د تخت نشینی په وخت کښې ۱۸ کاله لیکلی دی او د سلطان فیروزمانړی د (آب سیاه) پرغاړه بولی چه غالباً (سیاه آب) د کالی ندی پارسو ترجمه ده «کالی ندی یو وړو کی سین دی چه په گنگا کښېږی» (رو هیله افغانز (۱۰۱) مخ)

د (ډاینسټك هسټری آف نارتهرین انډیا) په دوهم ټوك کښې دجمنا سین ته چه دډهلی ترخنگ تیریږی (کالی ندی) لیکلی ده .

**په (۱۵۷) مخ پوری:-**

تاریخ داؤدی په ۵۹ مخ کښې لیکلی دی دفتح خان دپورته کولو په شخره

**په (۱۸۱) مخ پوری:-**

دتاریخ داؤدی په ٤٤ مخ کښې لیکلی دی «د ریا خان لوانی وکیل به کړی ورځ او د شپې تر یوې پېرې (پهرې) پورې د عدالت پر تنګا چه حاضرؤ»

**په ۱۸۲ مخ پوری:-**

د تاریخ داؤدی په ۷۰ مخ کښې لیکلی دی «دوه بمهڼ (برهمن) ورونه د ګوالیار ؤ.»

**په (۲۳۴) مخ پوری:-**

اته دیرشم امیر تکرار دی اووم امیر (کالاپهاړ) او اته دیرشم امیر شیخزاده محمد پر ملی سره یو دی.

**په ۲۹۲ مخ پوری :**

دشیر شاه سوری په ۲۳ مخ کښې د (کمبرج هستری آف انډیا) په حواله لیکلی دی: «سلطان محمود لودی داوړیسې په (کاها ګون) کښې ومړ.



## فهرست


| گڼه | مضمون | مخ |
| --- | --- | --- |
| ١ | لمړی خبری | ١ |
| ٢ | لودی ټبر | ٣ |
| ٣ | لودی اوسامیت | ٤ |
| ٤ | پښتانه او ملتان | ٩ |
| ٥ | سلطان حمید لودی | ١٠ |
| ٦ | دملتان د پاچاهۍ حدود | ١٣ |
| ٧ | شیخ رضی (رح) | ١٥ |
| ٨ | سلطان نصر لودی | ١٦ |
| ٩ | قرمطیت او ملتان | ١٧ |
| ١٠ | ابوالفتوح سلطان داؤد لودی | ١٩ |
| ١١ | غازی ملك سلیمان لودی | ٢٢ |
| ١٢ | کوچنی داؤد لودی | ٢٣ |
| ١٣ | ملك محمود لودی | ٢٤ |
| ١٤ | ملك شاهو لودی | ٢٤ |
| ١٥ | شیخ احمد لودی (رح) | ٢٤ |
| ١٦ | سلطان فخرالدین لودی | ٢٤ |
| ١٧ | لوی خان ظفر خان لودی | ٢٦ |

| گڼه | مضمون | مخ |
|---|---|---|
| ٢٢ | عادل خان لودی | ٤١ |
| ٢٣ | ملك خضر لودی | ٤٢ |
| ٢٤ | **سلطان دولت لودی** | ٤٢ |
| ٢٥ | اختیار خان لودی | ٤٤ |
| ٢٦ | اسد خان لودی | ٤٥ |
| ٢٧ | ملك الهداد لودی | ٤٦ |
| ٢٨ | دریاخان لودی | ٤٨ |
| ٢٩ | تاتار خان لودی | ٤٨ |
| ٣٠ | **دشاهو خېلو پاچهی** | ٤٩ |
| ٣١ | سلطان شه «اسلام خان» لودی | ٥٠ |
| ٣٢ | **المتوکل علی الرحمن سلطان بهلول لودی** | ٥٤ |
| ٣٣ | **ابو المظفر غازی سلطان سکندر لودی** | ١٢٥ |
| ٣٤ | سلطان ابراهیم لودی | ٢٤٢ |
| ٣٥ | سلطان محمود لودی | ٢٩٢ |
| ٣٦ | حمید خان سارنګ خانی | ٢٩٦ |
| ٣٧ | تاتارخان سارنګ خانی | ٢٩٦ |
| ٣٨ | شهزادهٔ تاتار خان لودی | ٢٩٧ |
| ٣٩ | میابلبن شاهوخېل | ٢٩٨ |

| ګڼه | مضمون | مخ |
|---|---|---|
| ٤٤ | محمد خان لودی | ۳۰۱ |
| ٤٥ | احمد خان لودی | ۳۰۱ |
| ٤٦ | اسد الله خان لودی | ۳۰۲ |
| ٤٧ | محمد نور خان لودی | ۳۰۳ |
| ٤٨ | الهداد خان لودی | ۳۰٤ |
| ٤٩ | محمد عبدالحکیم خان | ۳۰٥ |
| ٥۰ | محمد حسن خان | ۳۰٥ |
| ٥۱ | **دخانجهان یوسف خېل لودی، کورنۍ** | **۳۰٥** |
| ٥۲ | شېرخان لودی | ۳۰۷ |
| ٥۳ | عالم خان لودی | ۳۰۷ |
| ٥٤ | شجاع الملك لودی | ۳۱۱ |
| ٥٥ | عمر خان لودی | ۳۱۲ |
| ٥٦ | مسند عالی دولت خان لودی | ۳۱۳ |
| ٥۷ | محمد خان لودی | ۳۱۷ |
| ٥۸ | **خانجهان لودی** | **۳۱۸** |
| ٥۹ | نور یالی بهادر خان لودی | ۳۳۸ |
| ٦۰ | قطب خان لودی | ۳۳۸ |
| ٦۱ | شېر خان لودی د «مرآت الخیال» مؤلف | ۳۳۹ |
| ٦۲ | سلیم‌خان لودی | ۳٤۰ |
| ٦۳ | هدایت الله خان «هدایت» | ۳٤۱ |

## تصاویر:


۱ المتوکل علی الرحمن سلطان بهلول لودی د (۵٤ـ۵۵) مخو ترمنځ

۲ دچراغ کلاورله دباندې خوا څخه د (۱۰٤-۱۰۵) مخو ترمنځ

۳ دچراغ کلاورله دننی خوا څخه د (۱۰٤-۱۰۵) مخو ترمنځ

٤ دالمتوکل علی الرحمن سلطان بهلول
لودی هدیره د(۱۰٤-۱۰۵) مخو ترمنځ

۵ دالمتوکل علی الرحمن سلطان بهلول
لودی دهدیرې یوشیشك د (۱۰٤-۱۰۵) مخو ترمنځ

٦ د المتوکل علی الر حمن سلطان
بهلول لودی قبر د (۱۰٤ - ۱۰۵) مخو تر منځ

۷ دشیخ نصیرالدین چراغ دهلی
هدیره د (۱۰٤ - ۱۰۵) مخو تر منځ

۸ ابوالمظفر غازی سلطان سکندر
لودی د(۱۲٤ - ۱۲۵) مخو تر منځ

۹ ابوالمظفر غازی سلطان سکندر
لودی دهدیرې ور د(۱۷٦ - ۱۷۷) مخو تر منځ

۱۰ دابوالمظفرغازی سلطان سکندر
لودی دهدیرې گومبته د(۱۷٦ - ۱۷۷) مخو تر منځ

۱۱ برا گنبد (اویه گومبته) د(۲٤۰ - ۲٤۱) مخو تر منځ

۱۲ دشاهوخیلو دپاچاهی کور نۍ دنورو

۱۶ دسلطان ابراهیم لودی سرلوځی
هدیره د(۲۷۸ - ۲۷۹) مخو ترمنځ
۱۷ دسلطان ابراهیم لودی دهدیرې
عمومی منظر د(۲۷۸ - ۲۷۹) مخو تر منځ

## نقشی :

۱ په څلورمه هجری پیړۍ کښې دملتان
دپاچهۍ حدود د(۱٤ - ۱۵) مخو ترمنځ
۲ دسلطان سکندر دپاچهۍ حدود - د(۱۷٤ - ۲۷۵) مخو تر منځ
۳ دخانجهان لودی دجنګ دډاګو
نقشه د(۳۳٤ - ۳۳۵) مخو تر منځ



# مأخذونه


۱- منتخب التواریخ (پارسو) دملاعبدالقادر بدایونی تالیف

۲- تذکرة الاولیاء افغانی ( » ) دحسینی تالیف قلمی

۳- زین الاخبار ( » ) دابو سعید عبدالحی گردیزی تالیف دطهران چاپ

٤- تاریخ فرشته ( » ) دمحمد قاسم هندوشاه تالیف دنولکشور »

٥- سیر المتاخرین ( » ) دغلام حسین طباطبائی تالیف د » »

٦- روضة الصفا ( » ) دمحمد خاوند شاه هروی تالیف د » »

۷- تاریخ خورشید جهان ( » ) دشیر محمد خان گنداپور تالیف داسلامیه لاهور »

۸- پټه خزانه (پښتو) دمحمد هوتك تالیف د کابل »

۹- حیات و اوقات (پارسو) دعبدالغفور سلطان محمود امنی ترجمه » »

۱۰- خان جهان لودی (پښتو) دیوسفزی اکبر شاه نجیب آبادی تالیف او دمولانا عزیز الرحمن

۱٤- تزك بابری «بابر نامه» (پاړسو) دمغل بابر پاچا ترکی تالیف او دخان خانان پاړسو ترجمه «چترا پر بها پریس بمبی چاپ
۱۵- اصابه فی تمیز الصحابه (عربی) دابن حجر عسقلانی تالیف د مصر چاپ
۱٦- فرهنگ نوبهار (پاړسو) دمحمدعلی تبریزی تالیف، دتبریز چاپ
۱۷- طبقات ناصری ( « ) دمنهاج جوزجانی تالیف د کویټې چاپ
۱۸- مرقع افغان (اردو) دمولوی ابرارحسین تالیف دعلی گړد انجمن ترقی اردو چاپ
۱۹- دهند طلائی تاریخ (هندی) دویشوا ناتهه جگناتهه دجالندهر چاپ
۲۰- د ۱۳۱۵ کال کالنۍ • • د کابل چاپ
۲۱- د کابل مجلی دشپږو
یشتم کال کلکسیون • • د کابل چاپ
۲۲- د کابل مجلې دشپږم
کال کلکسیون • • د کابل چاپ
۲۳- تاریخ افاغنه (اردو) دشهاب الدین خان «ثاقب» جلوانۍ تالیف دلاهور چاپ
۲٤- تاریخ فیروز شاهی (پاړسو) دشمس سراج عفیف تالیف د کلکتې چاپ
۲۵- عرب وهند کی تعلقات (اردو) دسید سلیمان ندوی تالیف داله ابا دچاپ
۲٦- تاریخ سلطانی (پاړسو) دسلطان محمدخان بارکزائی تالیف دبمبی چاپ
۲۷- دلیل ساطع ( « ) دمهدی واصف تالیف دمدراس چاپ

۳۳ کتاب الهند (اردو) دحکیم ابوریحان بیرونی تالیف او دسید اصغرعلی ترجمه دډهلی چاپ

۳٤- مفتاح التواریخ (پارسو) دمستر تامس ویلیام بیل تالیف د... چاپ

۳۵- پهډهلی کښې دلودیو دهدیرو کتیبې

۳٦- حیات افغانی (اردو) دډپټي حیات خان تالیف دلاهور چاپ

۳۷- مأثررحیمی (پارسو) دعبد الباقی نهاوندی تالیف دلاهور چاپ

۳۸- مرآت سکندری (پارسو) دسکندر خان تالیف دبمبیئی چاپ

۳۹- آریانادائرةالمعارف (پښتو) دآریانا دائرة المعارف دانجمن تالیف دکابل چاپ

٤۰- حدودالعالم (پارسو) دطهران چاپ

٤۱- مخزن افغانی (») د نعمت الله هراتی نورزی تالیف قلمی

٤۲- مسالك الممالك (عربی) دابو اسحاق ابراهیم بن محمد اصطخری تالیف دلیدن چاپ

٤۳- تحفة البشتون (اردو) دموج حسین مهمند تالیف قلمی

٤٤- اشوك اعظم (») دسید حفیظ تالیف دډهلی چاپ

٤۵- مرآت احمدی (پارسو) » »

٤٦- فرهنگ نظام (») دسیدعلي داعی تالیف دحیدرآباد دکن چاپ

٤۷- کاروان خیال (اردو) محمدعبدالشاهدخان شروانی دبجنور چاپ

۵۲- گنجینه‌سروری (پارسو) دمولوی غلام‌سرور لاهوری تالیف د نولکشور چاپ
۵۳ تاریخ گجرات (») دشاه ابوتراب ولی تالیف د کلکتې د اشیاټک سوسایټی چاپ
۵٤ نسب افاغنه (اردو) د محمد عبد السلام عمر خېل تالیف قلمی
۵۵ شوکت افغان (اردو) دمحمد عبد الحکیم لودی تالیف
۵٦ تاریخ کیاهی (») دباری تالیف دلاهور چاپ
۵۷ خلاصة الانساب (پارسو) دحافظ رحمت خان بړېڅی تالیف قلمی
۵۸ عجایبات هندوستان (اردو) دخان احمد حسین خان تالیف
دلاهور چاپ
۵۹ مرآت الخیال (پارسو) دشیرخان لودی تالیف دبمبئی چاپ
٦۰ ماثر الامراء (») دصمصام الدوله شهنواز خان عبدالرزاق خواقی
تالیف د کلکتې چاپ
٦۱ مجموعه نغز (») دمیر قدرت الله قاسم دهلوی تالیف د کلکتې چاپ
٦۲ تذکرهٔ علمای هند (») دمحمد عبدالشکور رحمان علی خان تالیف
دلکهنو چاپ .
٦۳ ادبیات سرحد (اردو) دفارغ بخاری تالیف دپېښور چاپ
٦٤ اخبار الاخیار (پارسو) دشیخ عبدالحق دهلوی تالیف دډهلی چاپ
٦۵ قاموس المشاهیر (اردو) دنظامی بدایونی تالیف دبدایون چاپ
٦٦ تاریخ یمینی (پارسو) دابونصر عبدالجبار عتبی تالیف او دابواشرف
ناصح پارسو ترجمه دایران چاپ

۷۰ هندوستان مین قدیم اسلامی درسگاهین (اردو) دابوالحسنات۔
۔ عبدالشکور ندوی تالیف داعظم گړه چاپ
۷۱ المنجد (عربی) الاب لویس معلوف الیسوعی دبیروت چاپ
۷۲ برهان ماثر (پارسو) سیدعلی طبا طبا د مطبع جامعه د هلی چاپ
۷۳ خواص خان ولی (اردو) دیوسفزی اکبرشاه نجیب آبادی تالیف ددهلی چاپ
۷٤ روهیله افغانز (انګریزی) دچار لس هملټن تالیف
۷۵ بایزید روښان (پښتو) دقیام الدین خادم تالیف دکابل چاپ
۷٦ دشمالی هند د پاچهیو تاریخ (انګریزی) داچ-سی-رای تالیف دکلکتی چاپ
۷۷ مجلهٔ روابط فرهنګی هند و ایران (پارسو) او (انګریزی) ددهلی چاپ
۷۸ ۔ شیرشاه سوری دعثمان صدقی تالیف دکابل چاپ



# دسړیو او قبیلو نومونه

## الف

(سلطان) ابراهیم (لودی) ۸ - ۵۰ - ۱۰۵ - ۱۰۶ - ۱۰۷ - ۱۱۳ - ۱۱۵ -
۱۲۰ - ۱۲۱ - ۱۶۶ - ۱۷۴ - ۱۷۶ له ۲۱۹ نه‌تر ۲۳۱ پوری په‌هرمخ کښې
۲۳۳-۲۳۶-۲۳۷ له ۲۴۱ نه‌تر ۲۶۶ پوری-له ۲۶۸ نه‌تر ۲۹۳ پوری-
۲۹۵ - ۲۹۶ - ۲۹۸ - ۳۰۱ - ۳۰۲ -

(شیخ) ابراهیم - ۲۳۵

ابراهیم - ۳

ابراهیم خان (داؤدزی) ۳۲۶

ابراهیم (شروانی) ۱۳۰ - ۱۳۱ - ۱۳۳ - ۱۳۴ - ۲۳۴

(شیخ) ابراهیم مصطفی ۲۹۱

(شرقی) ابراهیم شاه ۳۹ - ۴۳ - ۴۴ - ۴۵ - ۴۶ - ۴۸ - ۴۹ - ۸۴

ابراهیم خان (علیزی) ۳۹۳ - ۳۹۵

ابراهیم خان (دسلطان حسین ورور) ۹۸

ابراهیم خان (لوانی) ۹۸ - ۱۶۹ - ۱۷۰

ابراهیم (کشمیری) ۱۷۴

ابراهیم (کالوانی) ۲۸۵

ابرار حسین ۲۴۷ - ۲۸۲ - ۲۸۴

ابراسحاق - ۱۲

ابن حوقل ـ ١٩
(سید) ابن رسول الله ـ ١٠٤
ابی حاتم ١٧
(شیخ) ابوالعلاء ١٢٧
(شیخ) ابوالفضل ٣١٦ ـ ٣١٧
ابوالفتوح (کالپوی) ١٢٣
ابوالفتوح = داؤد
ابوالحسن تربتی ٣٢٤
ابدالی (درانی) ١٠٧
ابوشکور (سالمی) ١٨٨
احمد شاه بابا ٥ ـ ٢٨٠
احمد شاه (خلجی) ١٥٩
احمد یار خان (لودی) ٣٠٣
احمد خان (پنی) ٢٩٣
احمد خان (یوسفخیل) ٣٠٦ ـ ٣٠٧
احمد خان (لودی) ٣٠١ ـ ٣٠٢
احمد (لودی) ٥٠
(سلطان) احمدشاه (گجراتی) ٦٤ ـ ٣١٠ ـ ٣١١
احمد خان (میواتی) ٦٦ ـ ٨٢ ـ ٩٠ ـ ٩١ ـ ١٢٢
احمد خان (جلوانی) ٩١ ـ ١٤٢

